# د پښتو ادب لنډ تاريخ

## د پوهنتون د دريم او څلورم ټولګيو له پاره

ليکوال
علامه عبدالحي حبيبي

١٤٤٦ش

# د پښتو ژبي موقعیت د ژبو په ویش کي

د ایشیا په ژبو کي دوه قسمه ژبي په منځنۍ او غربي ایشیا کي سته:
۱. یوه ډله یې اروپایي یا هندو اروپایي بولي، چي په هند او افغانستان او ایران او ماوراء النهر کي ویل کیږي او په اروپا کي هم دغه ژبي سته، لکه لاتین، جرمني، انګریزي، فرانسوي او نوري. دا ژبي اریایي له دې جهته بولي چي له پخوانیو اریایي اقوامو څخه پاته دي. دغه اقوام څلور زره کاله تر میلاد دمخه له یوه شمالي ځایه څخه چي هغه یې (اریانا ویجه) باله د افغانستان سیمو ته راغله، دوی په دغه وخت کي یوه ژبه ویله چي د هغې کومه بولګه او نخښه نه ده پاته او علماً یې (اریك) بولي یعني هغه ژبه چي اریائیانو ویله.
۲. بله ډله د ایشیایي ژبو څخه سامي ژبي بولي، چي په دغه کي عبري او عربي او سریاني او حبشي ژبي داخلي دي او د دغو ژبو څېړنه زموږ په بحث اړه نه لري.

# د اریایي ژبو ویشنه

اریایي ژبي پر دوه ډوله دي، یوه ډله یې سیتم بولي او بله ډله یې سنتم بولي. پوهانو فقط یوه کلمه د سنسکریت او لاتیني څخه اساس ګرځولې ده، یعني "سل" چي په سنسکریت کي سیتم او په لاتین یې سنتم بولي، لومړۍ ډله نون په دغه کلمه کي نه لري او دوهمه ډله یې لري چي د دې جدول څخه دغه تقسیم څرګندیږي :

| سیتم | | سنتم | |
|---|---|---|---|
| سنسکریت | سیتم | تاتیني | سنتم |
| دري | سد | یوناني | هیکاتون |
| پښتو | سل | انګلیسي | هنډریډ |
| هندي | سو | الماني | هنډریډ |
| روسي | ستو | فرانسوي | سانت |

د سنتم او سیتم پر علمي اساس ټولي هندواروپايي ژبي په لاندي ډول وېشلي کيږي :




له دې لاندي جدول څخه د دغو هندو اروپايي ژبو نزدېوالی سره معلوميږي:

| فرانسوي | جرمني | انگليسي | لاتيني | اوستا | سنسکريت | دري | پښتو |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| پير<br>مير<br>سور<br>فرير | وانر<br>موتر<br>شوستر<br>برودر | فادر<br>مدر<br>سستر<br>برادر | پتو<br>ماته را<br>سوردر<br>فراتر | پيتر<br>ماتر<br>هوگهر<br>براتر | پنتري<br>ماتري<br>سواچر<br>بهراتر | پدر<br>مادر<br>خواهر<br>برادر | پلار<br>مور<br>خور<br>ورور |

# اريايي اقوام

کله چي څلور زره کاله تر ميلاد دمخه اريايي اقوام د باختر ځمکو او د هندوکش لمنو ته راغلل دوی پسله ډېره وخته څخه دلته ډېر سول او د شرق او غرب خوا ته يې هجرتونه وکړل، د شرق په خواکي تر اباسين تېر سول او په شمالي هندوستان کې خپل مدنيت خپور کړ، هلته دوی په هغه ژبي چي له اصلي اريايي ژبي څخه جوړه سوې وه يو کتاب وليکه، چي (ويدا) نومېږي او اوس يې څلور برخي موجودي دي :

١. ريګويدا

٢. سامه ويدا

٣. يجورويدا

٤. اتهرواويدا

دا اريائيان چي د ويدا سندري يې ويلې له افغانستانه هلته تللي وو، نو په ويداکي د افغانستان د ځايو او خلکو او قبيلو او مشرانو او غرو او دريابو نومونه راغلي دي، چي د دغو ټولو مطالعه د پښتو ژبي په تاريخ کي زموږ سره کومک کولای سي.
دوهمه ډله غربي خوا ته تلونکي اريايان وو، چي دوی د افغانستان په غربي خواکي تر استانبوله پوري خپل مدنيت خپور کړ، له دوی څخه په دوو ژبو ځيني نوشتې پاته دي، يو د اوستاکتاب دئ، چي زردشت له بلخ څخه خپور کړ او په ټول اېران کي ومنل سو، داکتاب ټول (٨١٥) فصله او (٢١) نسکه و، په اوستاکي هم ډېر د افغانستان د ځايو او پاچاهانو او خلکو نومونه راغلي دي، او ډېر کلمات يې د پښتو ژبي سره نزدې دي، له دې جهته اوستا هم د پښتو په ادبي تاريخ کي زموږ په درد خوري.
بله ژبه چي د غو غربي اريايانو له خپلي قديمي ژبي څخه جوړه کړه هغه زړه پارسو بولي، چي ځيني نوشتې يې پر ډبرو باندي پاته دي او مطالعه يې د پښتو په ادبي تاريخ کي مفيده ده، د افغانستان په شمالي خواووکي د دريای امو پر ها بله څنډه له اريايي ژبو څخه سغدي او خوارزمي هم داسي ژبي دي، چي د پښتو سره نزدېوالی لري نو د دغو ژبو مطالعه هم د پښتو له پاره ګټوره ده.

# پښتو او اريايي کلمات

هغه ژبه چي تر اريايي هجرت دمخه ويل کېده دغه قديمه ژبه وروسته په نورو ژبو تبديله سوه او پوهان داسي وايي، چي دوه زره څلور سوه کاله ق م د اريايي اقوامو ژبه يوه وه، خو يو زرکال پس يعني د (١٤٠٠ ق م) په شاوخواکي تر اوسه د دوی ژبي سره بدلي سوي دي. د بعضو قديمو اريايي کلماتو له څېړني څخه داسي ښکاري چي په پښتوکي تر اوسه پوري هم هغه قديمي ريښې سته، چي د مثال په ډول يو څوکلمې دلته ښوولي کيږي :

**اول - د اريا کلمه :**
د اريا دکلمې معنی اوس مؤرخين اصيل او نجيب يا زارع بولي، ډاکټر جيګر الماني محقق وايي، چي د اريا کلمه له (آر)

څخه مشتقه ده، چي په سنسکریت کي د اصل او بنیاد په معنی وه.
د دې په مقابل کي مکس مولر یو بل عالم وایي چي (آر) کرهني او زراعت ته وایي، نو له دې جهته (ارین) کرونکی او بزګر دئ، د دې دواوړو خبرو تحلیل د پښتو کلماتو په اساس کېدای سي. مثلاً که موږ (ار) د اصل او بنیاد په معنی واخلو نو دا کلمه په پښتو ادب کي مستعمله ده، مثلاً ملا الف هوتك وایي :

دی له "آره" و ښاغلی
څه که شو په ویر نتلی

بل شاعر پیرمحمد میاجي داسي وایي :

شیخ متي چي خلیلي و
دی له آره لـــوی ولي و

که داسي وي چي د آر کلمه د زراعت او کښت په معنی واخلو نو دا کلمه هم د پښتو په یوه خاصه محاوره کي موجوده ده چي د کښتونو د ربېلو پر وخت کله چي زارعین لوکوي نو د هغه خلکو حال داسي بیانېږي :
"اره اره لور پر غاړه" چي په دې ځای کي هم اره د زراعت معنی لري او دا ښکاره ده چي قدیمو اریایي اقوامو زراعت ته په ډېر ښه نظر کتل او زراعت د هر اصیل او شریف اریایي سړي کار و، نو له دې جهته لومړی قول او دوهم سره نزدې کېدای سي.

**دوهم - ایانا وېجه :**
هغه وخت چي اریایي قبیلو له خپله اصلي او قدیمه ټاټوبي څخه د باختر خوا ته هجرت نه وکړی، دوی هغه خپل قدیم د استوګني ځای (اریانا وېجه) باله.
د دې کلمې ریښه هم اوس په پښتو کي ژوندۍ پاته ده. په کندهار کي اوېجه د سرزمین په معنی وایي، مثلاً : "احمد محمود د خدای پر اوېجه نه پرېږدي" له دې څخه ثابتېږي چي وېجه هم پخوا دغه معنی لرله.
چي معنی يې هغه د ښاغلیو او اصیلو ټاټوبی ده، دغه کلمه اوس په پښتو کي د ورشو په شکل موجوده ده، چي معنی یې د څړ ځای دئ، ځکه چي د قدیمو اریائیانو ژوند په مالداري و، نو دوی د خپلي استوګني ځای او د څړ سیمه ورشو بلله. ورته او رشه دواړه یوه ریښه لري، هر وخت (س) په (ش) اوړي، مثلاً کتل او کسل چي (ت) په (س) باندي اوښتي ده، او د (س) اوښتل په (ش) هم ډېر سته لکه راسه او راشه.

# پښتو او ویدي ژبه

ویدي ژبه اریائیانو په هند کي د اریایي هجرت سره نږدې ویله، له دې ژبي څخه هم یو څو کلمې د مثال په توګه دلته د اوسنۍ پښتو سره مقایسه کوو.
**سیند :**
دا کلمه په ریګویدا کي سیندهو او په اوستا کي هندو وه، په اوسنۍ پښتو کي سیند هم په هغه قدیمه معنی هر رود ته وایي او اباسین هم له دغي قدیمي ریښي څخه د لوی والي په سبب پر اوسني دریایي سیند باندي ایښوول سوی دئ.
**کولا :**
قدیمو اریائیانو کورنۍ او خاندان ته (کولا) ویله او دغه کلمه اوس هم په پښتو کي د کهول او کاله په شکل موجوده ده، چي

**معنی یې هغه خانواده ده.**

**ستان :**

دا کلمه په سنسکریت کي د ځای او مرکز او مملکت معنی لري، چي په پښتو او دري کي اوس د (ستان) په شکل مستعمله کلمه ده، لکه ګلستان، افغانستان، هندوستان وغیره، کله چي اریائیان په هندوستان کي خپاره سول دوی هغه مملکت دیوستهان وباله، چي معنی یې د عبادت ځای دئ، دغه کلمه په مفرد ډول هم په پښتو او دري کي استعمالیږي، مثلاً ښکارندوی د پښتو د غوري دورې شاعر وایي :

د اسلام د دین شهاب د نړۍ لمر دئ
تور "ستان" یې کـــړ رڼا په جهادونه

دغسي هم د فارسي ژبي لیکوال فخر مدبر لیکي :

**"به ستان لوهور در میان شدند"**

**سوما یا هوما :**

پخواني اریایي اقوام چي د افغانستان په غروکي اوسېدل دوی یو مقدس بوټی سوما باله او له هغه څخه به یې یو مشروب جوړاوه چي هغه به یې د عبادت پر وخت استعمالاوه، دغه نوم په اوستا کي هوما او په ویدي ژبه سوما راغلی دئ، چي په عربي یې (هوم المجوس) بولي، دغه کلمه اوس په پښتو کي د اومه یا هومان په شکل پاته ده، چي هغه خپل قدیم شکل یې **خوندي کړی دئ.**

**اشلوك :**

دا کلمه په سنسکریت کي د نظم او شعر په معنی ده، او دې ډول نظم په هندي اریائیانو کي رواج درلود، چي د هند د اشعارو په کتابو کي ذکر سوی دئ. په پښتو قدیم ادب کي دغه کلمه هم مستعمله وه، مګر معنی یې فقط منظوم کلام و او پیودلي ویناوي وې، چنانچه دغه کلمه په همدغه معنی د غوري شاعرانو په پښتو اشعارو کي راغلې ده، لکه ښکارندوی غوري چي وایي :

په بر بڼ چي ږغ د چونیو نغوږېده شي
ته وا چـــــندي سره پیودي اشلـــــکونه

په دې بیت کي بر بڼ د لوړ باغ او چونی د بلبل، نغوږېدل د اورېدل، چندي د شاعر او اشلکونه د نظمونو په معنی دي.

**دسیو :**

په اریایي ژبو کي د (ش) یا د (ژ) یا د (ښ) یا د (س) یو پېشوند (سابقه) وه، چي د نفرت او بدۍ او کرکي مفهومونه یې لرل له دغي سابقې څخه په قدیمو او اوسنیو ژبو کي ډېر کلمات راوتلي دي، چي له هغو څخه په ویدا کي دسیو یا داسه کلمې جوړي سوي دي او مطلب هغه خلك وه، چي پخوا په هند کي اوسېدل او د اریایانو دښمنان وو. په پښتو ژبه کي له دغه ریښې څخه د (نون) په ننبلولو سره یو صفت جوړ سو، چي معنی یې هغه د کرکي مفهوم لري، لکه دښن او دښنه په فارسي هم له دغي ریښې څخه دشمن او دشنام، دشوار، دوزخ، دزد او داسي نور کلمات جوړ سوي دي، چي ریښه یې هغه د پښتو **سره مشترکه سابقه ده او تاریخ یې تر رګویدا پوري رسیږي.**

**کشتري :**

په پخوانو اریانانو کي د پاچاهانو او لښکریانو ډله کشتري بلله کېده، دا کلمه هم په ویدا کي ذکر سوې او بیا په سنسکریت او ویدي ژبو او هندي کي تر اوسه موجوده ده. په پښتو ادب کي دغه کلمه د پیر روښان په خیرالبیان کي د تورکښي په شکل راغلې ده، یعني هغه څوك چي توره کاږي او مقصد یې هم عسکري او د جنګ خلك دي، د لومړۍ کلمې لومړۍ ټوټه هم کښ او دوهمه ټوټه تري کټ مټ دغه معنی لري او د دغو ژبو سره نزدېوالی څرګندوي : کښ (توري) کشتري یعني شمشیري. له دغو مثالو څخه د پښتو ژبي مشارکت له ویدا او اوستا سره ښه معلومیږي مګر له دغو قدیمو ژبو څخه چي په غربي اریایانو او ایران کي ویله کېده زړه پاړسي هم ده، چي تر میلاد دمخه تقریباً (۵۰۰) کاله ژوندۍ وه، په دې ژبه کي کوم کتاب نه دئ پاته مګر ځیني ډېرلیکونه سته، چي پر هغو باندي د زړې پاړسو یو څه نوشتې پاته دي.

# پښتو او زړه پاړسي

زړه پاړسي (۲۵۰۰) کاله دمخه په پارس کي ویله کېده او د هخامنشي پاچاهانو د دربار ژبه وه، خو د دې ژبي کوم کتاب نه دئ پاته، فقط د ایران او مصر پر ځینو ځایو باندي د دې ژبي یو څو ډبرلیکونه په میخي خط پاته دي، چي ټول (٤۰۰) لفظونه کیږي.
د هخامنشي کورنۍ یو لوی پاچا داریوش دئ (۵۲۲ تر ٤۸٦ ق م)، د ده په امر د بهستون پر غره یو ډبرلیك کیندل سوی دئ، چي په څلورم ستون کي درې مسرۍ یوه اخلاقي حماسه لیکلې ده او هغه په دې ډول ده :
دا درې مسرۍ داسي لوستل کیږي :
نې ارې که اهم.
نې دروجه نه اهم.
نې زوره که ره اهم.
د دې شعر هره مسرۍ شپږ شپږ هجاوي لري او که موږ ورته ځیر سو، نو دغه درې مسرۍ په لږ تغیر داسي په پښتو را اوړي :
نې اړیکه اوم.
نې دوره جنه اوم.
نې ځورکړه اوم.

# د کلماتو تطبیق

اول : نې Né د نه مخفف دئ.
دوهم : اړېکه Arika په پښتو کي د اړ له مادې څخه اړیکی اوس موږ استعمالوو چي معنی یې پای بند او مسامع او عضو ده دغسي اړتیا مشکلي او احتیاج ته وایي.
دریم : اوم د وم یا ومه یو شکل دئ چي اوس یې هم بعضي پښتانه (اوم) وایي.
څلورم : په دوهمه مسرۍ کي د دروجنه کلمه اوس کټ مټ د دروه جن په شکل موجود ده چي معنی یې مکار او فریبنده ده.
پنځم : ځورکړه – اوس د پښتو ځورکړه یعني ځورکوونکی او ظالم او ستمګر ځني جوړیږي او په دې ډول دغه کلمات په لږ تغیر د پښتو له اوسنۍ کلمو سره برابر کېدای سي او دا موږ ته د پښتو او زړې پاړسي نزدیکي راښیي، چي تر اوسه په دې لار کي نوره وسیعه مقایسوي مطالعه نه ده سوې.

# پښتو او زړه دري

د افغانستان په شمالي خواوو او د هندوکش په لمنو کي (۳۰۰۰) کاله دمخه یوه ژبه ویله کېده، چي د اوسنۍ دري ژبي مور ګڼل کیږي، له دې ژبي څخه فقط یو ډېرلیك په (۱۹۵۱ م) کال د بغلان په سرخ کوتل کي پیدا سوی دئ، چي (۲۵) سطره او (۹٤۷) یوناني حرفونه لري او ټول کلمات یې (۱٦٥) دي خو د هري کلمې په منځ کي یوه فاصله په دې شکل (٥) موجوده ده. په دې کتیبه کي (۲۸) حرفونه په دېواني رسم الخط استعمال سوي دي:

الف او زور
ب
پ
ف
ت
ث خ
خ
د
ر
ز
س
ش
ښ
ك
ګ
نګ
ل
م
ن
و
حفیف (و)
هـ
معروفه (ي)
مجهوله (ې)
فتحه
پېښ
کسره
فاصله

# د پښتو او قديمي دري مشابهت

دغه (۲۸) علامې چې د بغلان په کتيبه کې په (۱٦۰) کلموکې استعمال سوي دي د پښتو سره يې ټول حروف بېله (ف هـ) مشترك دي، مخصوصاً (٦) نمبر حرف، د پښتو (ځ) ته نژدې دئ، دغسې په دغه الفبا کې (۷) نمبر حرف د (خ) آواز لري مگر په (۱۳) نمبر حرف (ښ) کې (ش) او (خ) سره يو ځای سوي دي او د پښتو (ښ) ږغ ادا کوي، او له دې څخه ښکاري چې دغه ږغ قديم دئ او په قديمه دري کې هم و، ځکه نو په پښتوکې اوس هم دغه درې سره آوازونه بېلې بېلې معناوي افاده کوي، مثلاً :

شندل -پراگندن

ښندل -بخشش

خندل -خنديدن

له دې څخه معلومېږي چې په قديمه دري کې هم د (ښ) صوت موجود و، مگر د پښتو خاص ږغونه لکه (ټ، ړ، ډ، ڼ) په قديمه دري کې هم نه وو او په دې کتيبه کې هم نه ليدل کېږي، نو دلته بايد سړی ووايي چې د ژبو د تقسيم له پاره د اباسين او هلمند تر منځ يو ايزوگلاس (هغه ځای ته وايي چې په هغه کې دوې ژبې سره يو ځای کېږي) پيدا کېږي، د پښتو او دري ږغونه اوکلمات سره مشترك کېږي دغه دوې ژبې په ځينو نوروگرامري خصوصياتوکې هم سره نژدې دي، مثلاً :

اول حالت (condition) په اوسنۍ پاړسي کې د کلماتو شکل يا حرکات دگرامري حالت په تغير سره نه تبديلېږي، مگر په پښتوکې ډېر کلمات دگرامري حالت په تبديل سره خپل شکل يا آواز اړوي او په دغه خاصيت کې زړه دري د پښتو سره شريکه ښکاري، مثلاً په دغه ډبرليك کې د کانيشکا نوم کله کانيشکي او کله کانيشکو راغلی دئ او ځيني نور نومونه هم دغسې سته، چې د فاعلي يا مفعولي حالت په تغير سره اوښتي دي.

دوهم په توصيفي ترکيب کې هم په زړه دري کې لکه اوسنۍ پښتو صفت تر موصوف دمخه ويل کېده، مثلاً (مشت خرگومن) يعني لوی خرمن يا لکه (بك شا) يعني لوی شاه.

دريم : ابتدايه ساکن : اوسنۍ دري ژبه ابتدايه ساکن نه لري، مگر په قديمه دري کې لکه پښتو په ساکن ابتدا کېدله، مثلاً د بغلان په کتيبه کې (STAD) ستاد د اوسني (ايستاد) په معنا يا د اوسني فرمان کلمه په قديمه دري کې فدومان (Fadoman ) غرومان د (ف) په سکون تلفظ کېده.

# د ځينوکلماتو سره نژدېوالی

د بغلان په ډبرليك کې چې کومه دري قديمه ژبه استعمال سوېده، ځيني داسې کلمات لري چې اوس د پښتو په يوه لهجه کې کټ مټ يا په لږ تغير موجود دي، چې دلته يې د نمونې په ډول يو څوکلمې ښوول کېږي :

بگ : دا کلمه پخپله د بگ لنگ په نامه کې موجوده ده، چې پخوا د بغلان نوم و، په اوستا او قديمه پارسي کې بگه (Baga) او په سنسکريت کې بهاگه (Bahaga) و، په روسي کې هم اوس بغ د خدای په معنا موجود دئ، دا کلمه په دغه کتيبه کې د يوه بل نامه په سرکې هم سته او دا کلمه بکپور (Bagpur) ده، چې معنا يې شهزاده وه. دغه بگ چې په ډبرليك کې جلا په معنا د خدای او عظيم يا بادشاه او د کلماتو په سرکې هم په دغو معناو ذکر سوی دئ، اوس د پښتو په محاوره

کي د لوی او عظیم په معنا سته. په کندهارکي وایي : پلانی بګ سړی دئ، یعني جسماً لوی دئ، د پښتو شاعر شمس الدین کاکړ، چي د (۱۲۵۰ هـ) په حدودوکي ژوندی و داسي ویلي دي :

هسي شوم طالع زما دئ
باطن ووړ په ظـــاهر بګ

د بګپور دوهمه ټوټه یعني (pur) هم د پښتو سره مشترکه کلمه ده، چي په تربورکي ژوندۍ پاته ده، نو د دې کلمې تاریخي تحول داسي دئ :

زړه دري (پوهر puhar) اوسنۍ پارسي پور، لکه شاهپور، پښتو بور لکه تربور، (تره بور). یوه بله کلمه چي په دغه ډبرلیك کي پښتو ته ډېره نژدې ده ایر(EIR) ده، چي د آتش پر ځای استعمال سوې ده او دا کلمه تر اوسه هم د پښتو په وزیري لهجه د (ایر) او په نورو لهجوکي د (اور) په ډول پاته ده، خو د پښتو په یوه بله کلمه کي چي (ایره) د خاکستر په معنا ده په ښه ډول موجوده ده، دغسي هم (مال) په ډبرلیك کي د وخت او هنګام په معنا راغلي دئ، چي تر اوسه هم په پښتو کي (مال یا مهال) وخت ته وایي او د پښتو په قدیمو اشعاروکي دا کلمه راغلې ده او دا ثابتوي چي دغه کلمه اصیله پخوانۍ کلمه ده او له عربي څخه نه ده اخیستل سوې. یوه بله ډېره ښه کلمه چي په دې کتیبه کي راغلې ده الوښال (ALOSHXAL) ده، دا کلمه که موږ تجزیه کړو اوله ټوټه یې الو ښکاري، چي د پښتو او اوسنۍ فارسي (اروا) یې اوسنی پاته سوی شکل دئ او په اوستا کي دا کلمه اورونت وه، چي په پهلوي کي اوروان او په فارسي کي روان څني جوړ سوی دئ، نو د زړې دري (الو) د اوسنۍ پښتو د (اروا) له فارسي ژبي (روان) سره له یوې ریښې څخه دي.

د کلمې دوهم جزو پښتو اوسنی (ښاد) او د فارسي (شاد) او د پهلوي ژبي (شات) او د اوستا (شاته) او د زړې فارسي (شیاتي) و، د (د) او (ل) او (ت) ابدال په اریایي ژبوکي ډېر دي، لکه دست او لاس یا لس یا ده، نو مجموعاً د زړې دري الوښال د پښتو اروا ښاد دئ، چي معنا یې هم د عربي (مرحوم) او فارسي ژبي شاد روان ته نژدې ده، یعني هغه څوك چي له دې دنیا څخه تللی وي او په بله دنیا کي اروا خوښه وي.

تر دې ځایه د پښتو ژبي او قدیمو اریایي ژبو مقایسه او پرتله وسوه، چي د دغو ژبو پخواني روابط سره ښکاره کوي. ځینو پوهانو پښتو له هندي ژبو څخه د سنسکریت له لمسیانو څخه ګڼلې او ځینو هم ایرانۍ ژبه بللې او د یو څو پوهانو دا هم عقیده ده، چي د ساکا له ژبو څخه پیدا سوېده. د سنسکریت او هم له اوستا او هم له نورو اریایي ژبو سره اشتراك لري نو نه خالصه هندي ده او نه ایراني. بلکي د افغانستان په لساني او فرهنګي ایزوګلاس کي له اصلي اریایي ژبي څخه راپاته ده، چي ډېر قدیم ممیزات یې هم تر اوسه خوندي کړي دي، چي په تېرو څېړنو کي د پښتو نزدېوالی له سنسکریت او اوستا او زړې پاړسي او دري سره په لنډ ډول بیان سوي دي.

د تفصیل له پاره یې د پښتو ادبیاتو تاریخ لومړی او دوهم جلدونه وګورئ او هم هغه کتاب وګورئ، چي ما په دري ژبه د بغلان پر ډبرلیك باندي د (مادر زبان دری) په نامه کښلی او چاپ کړی دئ.

# تر خوشحال دمخه
# پښتو ادب ته یو لنډ نظر

د پښتو ادب لیکل سوي آثار فقط په اسلامي دوره کي پیدا سوي دي، چي تر ټولو قدیمتر شاعر امیر کروړ د غور پادشاه پېژنو او د (۱۳۹ هـ) په شاوخوا کي ژوندی و.
هم په دغه زمانه کي د غزني او ګردېز له پاچاهانو څخه د لویکانو کورنۍ سلطنت کاوه، چي له دوی څخه هم فقط یو پښتو بیت لاس ته راغلی دئ، تر دي زمانې وروسته د غوریانو په دربار کي پښتو ادب نشو نما وکړه او ډېر شاعران او مؤلفان او نثر لیکونکي پیدا سول، په دغه زمانه کي د ملتان د لودي پاچاهانو کورنۍ د (۳۰۰ – ٤۰۰ هـ) تر منځ پښتو ویونکي پاچاهان وو، چي له دوی څخه هم پښتو شعرونه پاته دي.
په عمومي ډول داسي ښکاري، چي د پښتو ژبي د ادب ساحه له ملتانه بیا تر غوره پوري خپره وه، له دغي زمانې څخه بیا د خوشحال تر عصره پوري تقریباً زرکاله تېر سوي دي او په دغو لسو پېړیو کي موږ د پښتو ژبي ادبي سیر په لاندي ډول تلخیص کوو:

پښتو ادب د امیر کروړ له عصره څخه یو خاص رنګ درلود، ژبه یې سوچه او سپېڅلې پښتو وه، ډېر داسي پښتو کلمات ژوندي وو، چي اوس یې موږ نه استعمالوو او داسي ښکاري، چي پر پښتو باندي د نورو ژبو اثر هغه وخت ډېر لږ و، او وروسته ورو ورو د عربي او فارسي او هندي ادب تاثیرونه پر سوي دي.

د فکر او موضوع له پلوه هم د پښتو پخوانی اثر خاص یو پښتني او محیطي شکل لري، یعني د شاعر او لیکوال د تخیل غورځنګ په یوه داسي محیط کي دئ، چي هغه له نورو محیطو څخه ځیني خاص امتیازونه لري، شاعر د یوه غرني او کلیوالي محیط څخه الهام اخلي، ملي او پښتني اخلاق او دودونه او رسمونه تصویر کوي، او په دې ډول خپل هنر ته یو خاص محیطي جوله ورښندي.

د دې دورې پاته سوي آثار یوه ښکلې او نفیسه ادبي مجموعه ده، چي له یوې خوا څخه خپلي محیطي ښېګڼي او مزایاوي لري او له بلي خوا څخه د نورو مجاورو ملتونو له ادبه څخه ځیني اثرونه قبلوي، نو په اشعارو کي د پښتو د ژبي خپل اوزان هم ساتل کېږي او د عربي او فارسي شعرو وزنونه او قواعد هم منل کېږي، نو د دغي دورې اشعار او آثار د معنی له پلوه حماسي، اخلاقي، دیني، تصوفي، تبلیغي، عشقي او کله کله فکاهي رنګونه لري، مګر په ظاهري جوړښت کي علاوه پر ملي اوزانو باندي قصیده، غزل، رباعي، مثنوي هم میندل کېږي.

تر خوشحال خان دمخه په (۱۰۰۰ هـ) کال کي د پښتو ادب د سیاسي تحولاتو څخه هم اغېزمن سوی دئ، په دې لسو پېړیو کي د پښتو ژوند د خپلي آزادۍ او پښتونولۍ د ساتني له پاره په یوه مسلسله مبارزه کي تېرېده، لوی لوی تاړاکونه پر دې مځکه باندي راغلل، غټ غټ سیاسي او دیني او مذهبي تحولونه پېښ سول، خو پښتنو په دغو تحولاتو کي د دین او فرهنګ او ثقافت له پلوه ډېر نوي او ښه شیان ومنل، مګر خپله آزادي تر هر څه پر دوی ګرانه وه، نو سره د دې چي دوی د اسلامي جامعې کلك ملګري وه، او د اسلام د خپرولو له پاره یې تر بنګاله پوري جهادونه وکړل، مګر د ساسي تسلط قبلولو ته حاضر نه سول او که به زور ور باندي راغی نو د سمې څخه به غرو ته ولاړل او عمر به یې په کوچي ګري تېراوه، نو د پښتو ادب په دغسي یو کیفیت سره تر خوشحال خان پوري راورسېد، کله چي خوشحال خان دنیا ته راغی د پښتو ادب نظم پوخ سوی و او ډېر کتابونه هم پکښې موجود وه. د نثر کتابونه هم لیکل سوي وه، چي بهترینه نمونه یې د سلېمان ماکو د (تذکرة الاولیا) نثر دئ، چي په (٦۱۲ هـ) کي لیکل سوی دئ او دغه نثر لکه د پښتو شعر یو ښه سبك او ښکلې جوله لري. دلته دا نکته هم نه هېرو، چي د (۹۰۰ هـ) په حدودو کي پیر روښان په خپل خیرالبیان کي یو داسي نثر لیکلی دئ، چي هغه د نظم او نثر تر منځ یو

مصنوع او متکلف نثر دئ، که څه هم د پیر روښان د آزادي خواهۍ جګړې او د پښتنو د ساسي وحدت له پاره د ده سعیه ډېره ښه او مشکوره ده، مګر په ادبي حرکت کي د ده د خیرالبیان نثر د پښتو ژبي یو ښکلی او هنري اثر نه دئ، نو خوشحال خان په داسي یوه ادبي او سیاسي محیط کي پیدا سو، چي په هیڅ ډول په زړه پوري محیط نه و. د پیر روښان په پیروي اخوند دروېزه او د ده کورنۍ او نورو لیکوالو قلمونه را اخیستي وه او په پښتو ژبه کې د مصنوعي او متکلف نثر لیکلو پیروي کوله، په سیاسي لحاظ هم پښتانه د هندوستان د مغولو تر اثر لاندي او مظلوم واقع سوي وه او خوشحال خان ناچاره و، چي په داسي یوه چاپېر کي په دوه ډوله مبارزه وکړي :

لومړۍ سیاسي او جنګي مبارزه د پښتنو د آزادۍ له پاره.

دوهم ادبي او واقعي مبارزه د پښتو ژبي د ادبي ارزښتونو د ساتلو له پاره.

# خوشحال خان

د پښتو ادب منځنۍ دوره له خوشحال خان څخه شروع کېږي، دی د خټکو د ملك اکوړي له کورنۍ څخه و، د سرای په کلي کي د ربیع الثاني په میاشت (۱۰۲۲ هـ) د شهباز خان ختك په کورنۍ کي پیدا سو، دا کورنۍ د پېښوره تر اباسیند پوري د خپل عصر په سیاست کي پېژندل سوې کورنۍ ده او خوشحال خان د پښتنو د قومي سیاست په مرکز کي تربیه سو، ده د خپل عصر علمونه ولوستل او د قلم خاوند سو، په دغه وخت کي د ډهلي د مغلو له کورنۍ څخه شاه جهان پادشاه و او د سلطنت غربي سرحدونه یې تر قندهار او بلخ پوري رسېدلي ښارونه او لویي لاري د مغلو تر ادارې لاندې وې، د قبایلو داخلي کارونه قومي جرګو سمول، د خوشحال خان د کورنۍ د استوګني ځای د پېښور او کابل پر لویه لار باندي واقع و، نو همېشه د مغلو د دربار له خوا د دغي لاري ساتنه د خوشحال خان پلرو او نیکونو ته سپارل کېده او دغه کورنۍ د پښتنو په داخلي چارو کي مقتدر حکمرانان وو، مګر د مغلو د دربار سره یې هم دوستانه روابط ساتل، په (۱۰۶۹ هـ) کال اورنګزېب خپل پلار شاه جهان بندي کړ او پخپله پر ټول هندوستان باندي مقتدر پادشاه سو. د اورنګزېب سیاست دا و، چي هغه د سلطنت په ټول قلمرو کي له کلکتې څخه بیا تر بلخه داسي څوك نه پرېږدي، چي هغه په قوت کي له ده سره مقابله وکړي، اورنګزېب ته د افغانستان د مشرقي خوا ساتنه او د کابل او بدخشان او بلخ او کندهار اداره خورا مهمه معلومېده او دا لار د اباسیند تر غاړو پوري د خوشحال خان په لاس کي وه او ده غوښتل چي خپل اقتدار دلته ټینګ وساتي، په پېښور کي چي کوم حکمران د اورنګزېب له خوا مقرر و د هغه قدرت فقط په ښار کي محدود و، نو اورنګزېب د خپل حکومت او اقتدار د ټینګولو له پاره د خوشحال خان وجود په دغه سیمه کي مضرګاڼه نو یې خوشحال خان په یوه دسیسه په پېښور کي ګرفتار کړ او په (۱۰۷٤ هـ ) د روژې په میاشت کي دی له پېښوره ډهلي ته د محبوس په ډول واستاوه او کوښښ یې وکړ، چي د خوشحال خان په زامنو او کورنۍ کي نفاق واچوي. خوشحال خان څلور کاله په هند کي بندي و، چي وروسته په (۱۰۷۷ هـ) له اګرې څخه د خپلو پښتنو یارانو په ملګري راووت او ځان یې وطن ته راورساوه، دلته خوشحال خان خپل محیط وکوت او ځان ته یې دوې لاري د ژوند له پاره وموندلې، لکه چي وایي :

پس له بنده دئ دا عـــزم
د خوشحال د خاطر جزم
یا نیولی مـــخ مــــکې ته
یا مـــــــغلو ســــره رزم

مګر په دې دوو کارونو کي خوشحال خان د مغلو سره مبارزه غوره کړه او دې مبارزې دوه شکله درلودل :

اول : د جنګ په میدان کي د توري مبارزه.
دوهم : په شعر او ادب کي د قلم مبارزه او د پښتو ژبي د روزلو له پاره د پښتنو د ملیت د ساتلو له پاره مبارزه، چي د خوشحال خان شخصیت هم دغه دوې خواوي لري. خوشحال خان د پښتنو د آزادئ له پاره د اورنګزېب سره ډېر جنګونه وکړل او دا يې کوښښ و، چي په پښتنو کي د اتفاق او د ملي جهاد روحيه ژوندئ وساتي او علاوه پر دې جنګي شخصيت د ده ادبي شخصيت هم ډېر فعال و، ده تقريباً څلوېښت تر پنځوسو زرو اشعارو پوري په پښتو ادب کي يوه مهمه ذخيره پرېښوده، چي حقيقتاً دی د پښتو ژبي تر ټولو لوړ شاعر ګڼل کيږي. ده په خپلو اشعارو کي حماسي او وطني او پښتني خصوصيات وروزل او هر ډول شعرونه يې په ادبي او بديعي ښکلا وويل، ده قصيده د غوري دورې د قصايدو دورې ته ورسوله، د پښتو غزل يې د ژبي د روانئ او سلاست سره په ډېرو ادبي ښکلاوو مزينه کړه، رباعي، مثنوي، مخمس، مربع، مسدس، معشر ټول د ده په ديوان کي سته.
خوشحال خان تر منظوم کلام علاوه د پښتو نثر ته هم توجه وکړه او د نثر ليکلو سبك يې داسي غوره کړ، چي د پير روښان او اخون درويزه ليکونه يې پرېښودل او د پښتو د نثر د قديمتر سبك پيروي يې وکړه، يعني د سليمان ماکو غونډي نثر ليکونکي لاره يې غوره کړه او کوښښ يې وکړ، چي د پښتو ژبي د محاورې له جريانه سره خپل مطلب په روانه او سليسه پښتو وليکي.
د خوشحال خان منثور کتابونه هم ډېر دي، دی د عمر په (۷۸) په ۲۸ ربيع الاول ۱۱۰۰ هـ کال وفات سو او وروستنئ وينا يې دا وه :
"ما هلته ښخ کړئ، چي د مغلو سيوری مي پر خاوره ونه لوېږي او د مغلو سپرو ګردونه مي پر هديره ونه لوېږي".
د خوشحال خان د کتابو څخه فضل نامه، دستارنامه او عياردانش مشهور دي او کله چي دی تر جهان تېر سو نو يې يوه داسي ادبي ګرانبها ذخيره پښتنو ته پرېښووه، چي هغه به تر ابده پوري زموږ په ادبي حرکت کي د لاري څراغ وي او د ده دا بيت به په رشتيا ومنل سي، چي ويلي و :

همېشه به پرې ناري وي د بلبلو
دا چي ساز کړ نن خوشحال په ويل باغ

د خوشحال خان د شعر سبك په پښتو ادب کي ډېر شهرت او مقبوليت وموند او پښتو ادب د خوشحال خان په ادبي مکتب کي د هري خوا بشپړ سو، په دې سبك کي د ادبي فنونو او رواني ژبي مراعات ډېر سوی دئ او اشعار يې هم روان او خواږه او هم د صنعت په ګېڼه ښکلي سوي وه، د خوشحال خان د سبك خاصيتونه دا دي :

دې سبك د پښتو شعر ډېر پراخ کړ، علاوه پر غزل، مثنوي او قصيدې او رباعي چي تر خوشحال خان دمخه ويل سوي وه، ده نور ټول د عربي او پارسو د شعر اقسام په پښتو وويل او ځيني نوي قسم اشعار يې په پښتو کي زيات کړل، لکه مثمن او نور.

په دې سبك کي هر ډول صوفيانه، اخلاقي، فلسفي، فکاهي مضامين او مدح، هجو، مرثيه، محاکات، اجتماعي خبري سته، چي ملي ښېګڼې او خويونه هم تلقين کوي.

په دې سبك کي کله کله د پښتو او پښتونولئ او ملي احساساتو څرګندونه هم سوېده او خاص بيا د خوشحال خان خپل اشعار د ملي جذباتو ډك دي.

په دې سبك کي اوږدې اوږدې قصيدي هم ويل سويدي، چي هره قصيده ځانته يو بېل اجتماعي يا تاريخي يا تبليغي يا د منظرنګارئ يا نور موضوعات لري او په خپله د خوشحال خان او د ده د زامنو لکه عبدالقادر خان او اشرف خان هجري په قصيدو کي د غوري دورې د قصيدو تقليد او پيروي ښکاره ده او بديعي صنايع او تلازمات او تشبيهات هم لري، مګر شاعرانو يې د اشعارو ساده ګي او سلاست تر صنعت او تکلف نه دئ جار کړی او ډېري پېچلي ويناوي په اشعارو کي نه راوړي.

په خپله خوشحال په دې سبك کي حماسي احساسات داخل کړل او شاګردانو يې لږ پيروي وکړه.

انتقاد او هجو (غندنه) هم په دې سبك کي سته او د پښتنو شاعرانو مخصوصاً د هندوستان د مغولي استعمار طلبانو سره ډېره قلمي مبارزه کړېده، خوشحال خان وايي :

زمـــــا ژبه نه ده اور ده
ګوزارونه د ټوپك کا

د خوشحال خان د مکتب په اشعارو کي ډېر حکمتونه او نصيحتونه او فلسفي مطلبونه هم سته، چي د ژوندانه ژور اسرار پکښې ويل سوي دي، مثلاً اعتماد په نفس داسي تلقين کوي :

د مزريو مړنتوب په لښکر نه شي
مټ يې هر کله يوازي په خپل ځان شي

خوشحال خان د اجتماعي منافعو په توزيع کي داسي وايي :

دولتـــــمند ســـړی هـــغه بللی بويه
چي له سينده يې جدا د چا وياله شي

خپل ثبات او ټينګه روحيه داسي ښيي :

د عالم ډېري خبري لور په لور توري لښــکري
زړه مي نه ښوري له ځايه غر خو هسي وي کنه

د خوشحال خان په نظر کي د انسان ټولي ګټي په خپل همت، شجاعت او توريالي توب پوري اړه لري او مړنی سړی قابل د دې بولي، چي نوم يې په تاريخ کي ياد سي او وايي :

کل ګټـــــنه ده د توري
که کابل دئ که کشمير
مېړني دي چي يادېږي
په ســــــندرو هم په وير

په ادبي ارزښت کي هم دا سبك تر ټولو جامع او ښکلی دئ هم يې د معنی خوا قوي او هم يې ظاهري او شعري قالب ښکلی دئ، تر خوشحال خان دمخه د پير روښان د مکتب شاګردان په خپلو اشعارو کي معاني روزي، مګر د هغو شعر ښکلی او د هنر په ګڼه مزين نه دئ، مثلاً د صوفيانو شاعرانو دا عقيده ده، چي د خدای تعالی نور په هر ځای کي تجلی کوي او وحدت په کثرت بدلېږي، نو خدای تعالی په هر ځای کي سته، دا مطلب ميرزا انصاري، چي د پير روښان مريد و داسي ويلی دئ :

د کـــــــثرت په بازار راغی
په هر ځای کي دی مکين دئ

خوشحال خان هم دغه مطلب په داسي ادبي پيرايه ادا کړی دئ، چي هم يې مقصد عالي دئ او هم يې الفاظ ښکلي دي او هم هنري ارزښت لري، لکه :

راشه وغــــړوه ســـترګي د جــــــهان ننداره ګوره
چي ښايست لري د ســــتورو د آسمان ننداره ګوره
د دې خپل وجود په باغ کي په هر شان ننداره ګوره
و هر ګل ته چي نظر کړې د باغــــــوان ننداره ګوره

په تخيل کي هم دا سبك ډېر ښه دئ، خورا لوړ او د نزاکته ډك شاعرانه تخيل پکښې سته، په خپله خوشحال خان او نور شاګردان يې د تخيل خاوندان او قهرمانان دي، او کله کله ابتکارونه هم لري، مثلاً شاعرانو د معشوقې د مېلمستيا له پاره ډېر ډول ډول تخيلونه کړيدي، چا د زړه کباب ورته ايښی دئ او بعضي شاعران په دغه باب کي يو له بله څخه مضامين رانقل کوي، خو کوم ابتکار نه لري، د خوشحال خان زوی عبدالقادر خان په دې موضوع کي يو نوی مضمون پيدا کوي او کله چي د عشق په دنيا کي سرې اوښکي تويوي هغه په دې ډول يوه ياقوتي مهماني بولي، او وايي :

سرې سرې اوښکي مي پر مخ عبدالقادره
نن و يار ته د ياقــــوتو مهــــــماني ده

# د خوشحال خان په کورنۍ کي
# د پښتو ادب روزنه

لکه چي خوشحال خان پښتو ادب ته درانه خدمتونه وکړه، ده په کورنۍ کي د پښتو ليکوال او شاعران زامن هم وروزل او دغه ادبي ميراث پښت پر پښت له پلاره زامنو ته نقل سو. د پښتو ادب په تاريخ کي که موږ يوه درنه او ډېره فعاله کورنۍ وغواړو نو هغه هم دغه د خوشحال خان کهول دئ، چي دوی په نظم او نثر کي د پښتو ژبي اوله درجه آثار پرې ايښي دي، د خوشحال خان مشر زوی اشرف خان هجري دئ، چي دی هم د توري او قلم خاوند و او په پښتو يو ښکلی ديوان لري چي اشعار يې تر څلورو زرو بيتو پوري رسيږي. دی هم د پښتنو د آزادي خواهۍ په جګړو کي د اورنګزېب د لښکرو په لاس کي لوېدلی او په (١٠٩٣ هـ) د دکن په بيجاپور کي بندي سوی، او وايي :

بيجاپور هجري په خـــوب ليدلی نه و
آخر پېښ شي هغه کار چي يې قضا کا

د اشرف خان هجري په ويناکي د وطن د ميني تاوده احساسات پراته دي، لکه چي وايي :

بې وطـــــنه تنـــها پروت يم په غربت کي
نن له مـــا سره هـــمدم د وطـــن غـــم دئ
د هـــيواد اشـــنا په ســـترګو ليده نه شي
که په خوب راته حاضر شي بس کرم دئ
قاصـــــدان له روهــه نه راځي مـــدت شو
ســـــــلام باد را رســـــوي منت يې تم دئ

د ده اشعار عشقي، اخلاقي، وطني او ساده او روان دي او کله کله داسي قصيدې انشاء کوي، چي د غوري دورې د قصيدو تقليد ځني ښکاري، د هجري ديوان په پېښور کي چاپ سوی دئ، دی ښکلي معاني په ښکلو الفاظو اداکولای سي، د صبر او استقامت ترغيب داسي کوي :

شورش مه کړه دګردون له کشمکشه
لومه کلکه کړي مرغۍ په اضـطراب

دا غزله د ده دکلام نمونه ده :

| سترګي هله کا ژړا چي زړه په درد وي | | اه و سوز مي باطل مه ګڼه دروېشه |
|---|---|---|
| چي په داد د دهر پوه آزاده مرد وي | | تخت و تاج ته به سرکوز د همت نکا |
| په مجلس چي د حق ورشي مخ يې زرد وي | | هغه مرد چي په دغل سود و سودا کا |
| هر چي تل په فکر ډوب د اب و خورد وي | | په حساب د فرزانه ترګاو بتر دئ |
| لا په ځ م که قرار نه بدن يې ارد وي | | ګرنده ګردون چکۍ انسان دانه شه |

دا مـحال دئ چي شاعر په پښـتنو کي
بل "هجري" غوندي په فن د شعر فرد وي

هجري پسله څورلسو کالو قيده څخه په (١١٠٦ هـ) کال کي هلته وفات سوی دئ چي آزاد خان د ده د مرګ تاريخ داسي

ويلی دئ :

د هــــجرت يې زر سـل شــپږ و
اشرف خان چې فوت شو ياره

د اشرف خان په شاعري کي د ظاهري ښکلا او د ادب د هنري مزيت له خوا داسي اثرونه معلومېږي، چي دی د پښتو شاعرانو د ډلي په لومړي صف کي ودروي او کله کله د فارسي شعر هم وايي، د ده د خپل هنر په خصوص کي دا دعوه ده :

په پښــتو ژبه مي سيال د شــعر نشته
د معنو په جهان شاه اشرف خټك يم

د بند او هجران په زمانه کي خپل وطن داسي يادوي :

د زړه باز يې تل د روه په ځـمکه ګــرزي
که هجري په دکن ناست خالي بدن دئ
کــــه نصيب بنده بندکــــړی په دکن دئ
دامنــګير يې همېشه عشق د وطن دئ

د اشرف خان په قصايدو کي د ده ادبي قدرت ښه ښکاري، چي وروسته به يې ځېړنه وسي.

# عبدالقادر خان خټك

د خوشحال خان بل اديب او شاعر زوی عبدالقادر دئ، چي په (۱۰۶۱ هـ) کال پيدا سوی او تر (۱۱۲۶ هـ) پوري ژوندی و. دی په نظم او نثر ډېر تاليفات لري، دېوان يې تقريباً څلور زره بيته دئ، چي غزل، مثنوي، قصايد، رباعي او قطعات لري. د ده شعر خوږ او روان دئ، د معناوو په اداکولو کي ډېر قدرت لري او کله کله په تخيل کي ابتکار هم کوي.

عبدالقادر عملاً د تصوف په سلسله کي داخل او د شيخ سعدي لاهوري مريد و، نو ځکه د ده په شعر کي د تصوف رنګ هم سته او نور اشعار يې عشقي، اخلاقي او اجتماعي دي.

د اشعارو تر دېوان علاوه د عبدالقادر خان نورکتابونه دا دي :

**(۱) ګلدسته :**

چي د شيخ سعدي فارسي ګلستان يې په پښتو نثر ترجمه کړی دئ، په دې کتاب کي ده د خوشحال خان په پيروي يو ښه نثر ليکلی دئ، چي د شيخ سعدي د ګلستان مقاصد يې په پښتو ژبه ښه اداکړي دي. دا ترجمه په (۱۱۲۶ هـ) کال تمامه سوې ده او په مقدمه کي عبدالقادر د هغه عصر د اجنبي حکومت په باب کي داسي ليکي :

"دستور د مصنفانو دئ، چي مدح د خپل وخت د پادشاه وکاندي، لکه چي شيخ سعدي عليه الرحمه نورالله مرقدهٔ د ابوبکر سعد بن زنګي صفت په ګلستان کي کړی دئ، اما موږ په داسي زمانه کي پيدا يو، چي حاکمان پادشاهان د دې عصر واړه ظالمان او مبتدعان دي. په مدح کي يې مادح د ذم شي يعني تر خالقه تر مخلوقه کوم شی چي په دنيا کي ښه عام پرې بدګمان شي په آخرت يې د دين زيان شي، لکه مولوي روم % فرمايلي دي :

می بلرزد عرش از مدح شقی
بدګمان ګردد زمدحش متقی

په دا سبب د عصر د پادشاه معينه مدح ونشوه ... هر پادشاه حاکم چي سعيد وي که قريب وي که بعيد وي که زنګي وي که فرنګي وي که ترك وي که تاجك وي که حبشي وي که د روم وي که پښتون که هندکي وي، چي عادل وي حق تعالي دي يې

په دنیا کي سیوری په مسلمانانو ممدوده لري او په عقبی کي دي يې مرتبه مسعوده لري.

**مثنوي**

| | | |
|---|---|---|
| پادشاهان چي عادلان شي عدل کاندي | | په قیامت به وي د عرش تر سیوري لاندي |
| سرداران به يې دینداره نېکوکار شي | | په هر قوم چي کرم د ګردګار شي |
| بد صورت که د انسان لري شیطان دئ | | ښه حاکم رحمت په خلکو د سبحان دئ |
| چي هیڅ عدل انصاف نه لري ظالم دئ | | نښانه د خدای د قهر بد حاکم دئ |
| پکښې زړونه د عالم کا جلي بلي | | په هر لوري کا د ظلم لمبې بلي |
| چي يې چېرته آرام شي هورې ته لېږدي | | که هر څو وطن شېرين وي خو يې پرېږدي |

ظالــمان جــهان و جـــان لـــره بلا دي
هغه خوار شول چي په ظلم مبتلا دي

په دې ډول عبدالقادر خان د پاچا د صفت پر ځای د حکومت د طرز عمل په خصوص کي خپله نظریه او انتقاد څرګندوي، دا ځکه چي په هغه وخت کي پر پښتنو باندي يو اجنبي حکومت غالب سوی و او له دې څخه موږ دا خبره فهمولای سو، چي د حکومت په باب کي د پښتنو پوهانو نظریه څنګه وه.
عبدالقادر خان دګلستان په ترجمه کي د سعدي د نثر ښېګڼي او ادبي مزیتونه هم ساتي، مثلاً د فارسي دغه عبارت :
"ابلهی دیدم خلعتی در بر و مرکبی در زیر، و قصبی مصری بر سر، کسی گفت : سعدی ! چگونه می بینی این دیبای معلم بر این حیوان لایعلم؟ گفتم :
خط زشت که به اب زر نوشته است".
عبدالقادر خان دغه فصیح نثر په پښتو داسي ترجمه کوي :
"شیخ وایي یو احمق په ښه تازي آس سور جامې اغوستي وربښمیني زریني په شان په شوکت تېرېده، چا راته ووې چي اې سعدي ! څرنګ يې وینې؟ وې مي خط دئ ناښکلی په اوبد د زرکښلی".
په دې ترجمه کي عبدالقادر آزاد تللی دئ، مګر د پښتو سلاست او شېریني يې پکښې ساتلې ده او مطلب يې هم په ډېرو لنډو کلماتو کي سره يو ځای کړی دئ، په دې کتاب کي نثر په نثر او نظم په نظم ترجمه سوی دئ او هغسي موفق دئ لکه د نثر په ترجمه کي، مثلاً د سعدي دا شعر :

زرد بینی شکــــسته پیــشانی
تو که بازی به سرکنی با قوچ

عبدالقادر وایي :

ژر به ووینې سر مات ماغـزه وتلي
چي له مېږ سره ټکر وهي پرې زغلي

**حکایت**

يو په لارکي مست پروت و د عقل ویاست يې د لاسه پرېوتلې وه، د عابد پرې ګذر وشو، د ده په قبیح حال يې په کراهت نظر وکړ، هغه ځوان سر پورته کړ ویې وې:

**قطعه**

سپك نظر عاصي ته مه کړه پرهېزګاره
د رحمـــت د بخشـــايش په ده نظر کــــړه

**(۲) پښتو يوسف زلېخا :**

دا کتاب د مولانا جامي له فارسي مثنوي څخه په پښتو خفيف بحر ترجمه سوی او د اورنګزېب عالمګير په وختو کي په (۱۱۱۲ هـ) کال نظم سوی دئ، چي دلته يي د نمونې په ډول يو څو بيته را اخلو :

| | |
|---|---|
| چي دولت يې بې احصا و | د مغرب په لور پاچا و |
| لوی يې ملك لوی يې ناموس و | د ده اسم شاه طيموس و |
| چي د ده و د بل نه و | مهيا ورته هر څه و |
| چي په حسن لکه حور وه | ترې زوولې يوه لور وه |
| چي مثال د دې معدوم و | زلېخا يې د لور نوم و |
| له دې بابه تل مقال کړم | که يې وصف د جمال کړم |
| چي يې کا د چا قدرت دئ | لکه حق يې د صفت دئ |
| له خرواره موی نمايم | لږ به تا وته ووايم |
| تر قيامته شرمسار دئ | که عرعر دئ که چار دئ |
| په رفتار لکه تندر وي | قد يې سم لکه د سروي |
| به تر مشك و تر عنبر وه | چي وېښته د دې د سر وه |
| زړه پيېي لکه عقيق | په هر تار يې په تحقيق |
| د وېښتو په تار يې بند و | که زاهد که دانشمند و |
| چي يې زه کړم د سنبلو | څه نسبت يې د کاکلو |
| دا په سر د دلربا کي | سنبل اوسي په صحرا کي |
| تور مارونه کج ترې لاندي | دوې يې زلفي اوېزاندي |
| چي هر راز پکښې مبين و | صاف يې هسي رنګ جبين و |
| پټ احوال به ور ظاهر شو | چي به څوك ورته ناظر شو |
| لا بهتري وې ابروی | تر هلال يې د مهروی |
| هم دا به اختصار کړم | نور به څه تر دا زيات شمار کړم |

ســر تر پايه خــــــزانه وه
هسي ښکلې جانانه وه

(۳) د پټې خزانې مؤلف محمد هوتك د عبدالقادر خان يو بل کتاب هم ليدلی و، چي نوم يې حديقه ختك و، مګر د دې کتاب کومه نسخه اوس نه ده معلومه.

(۴) عبدالقادر خان يوه نصيحت نامه هم لري، چي د ده د ديوانه سره يو ځای په کندهار کي چاپ سوې ده. راورټي انګرېز مؤلف د عبدالقادر خان تاليفونه تر شپېتو پوري شمېري. ده په خپل کلام کي متانت او سلاست دواړه ساتلي دي. استعارات او تشبيهات يې خبري ور ښايسته کوي او غزله يې خورا ښکلې او خوږه ده او په خپل ادبي قدرت او هنري ارزښت د خوشحال خان د مکتب لومړنی شاګرد دئ.

عبدالقادر خان د خپلي کورنۍ په حوادثو کي ډېر وخت له کوره ليري تللی، کله په هند او کله په کابل کي ښکاري، نو له دې

جهته د ده په کلام کي علاوه پر محلي او پښتني خصوصیاتو یو ډول جهان بیني هم لیدله کیږي او شعر یې د فارسي ادب ډېر اثرونه قبلوي، مثلاً د فارسي په تصوفي ادب کي د خپل ځان پر نېست کولو تاکید سوی دئ، عبدالقادر خان د دغي فنا پر لار باندي تګ د مقصد وره ته رسېدل ګڼي، او وايي :

د نېستۍ پر لاري ځه عبدالـــقادره
ګوندي بیا مومې د یار د در سراغ

د عبدالقادر خان په کلام کي علاوه پر نورو صنایعو د حسن طلب مزیت هم موجود دئ او دا هغه معنوي صنعت دئ، چي یو شاعر د خپلي غوښتني له پاره یو ښکلی او شاعرانه منظر او په زړه پوري تخیل پیدا کړي، مثلاً :

باران اورېږي ځځواکي ځـــاځي
نسیم راوالوت سنبل پرې ناځي
اسباب د عیش واړه موجود دي
ساقي ته ګورو چي دی راپاځي

# صدر خان ختټک

د خوشحال خان د کورنۍ یو بل ځلاند ستوری صدر خان د ده
زوی دئ، چي پخپله خوشحال خان د ده توره ستايي او دی د پښتنو په داستان لیکونکو شاعرانو کي محترم مقام لري او د
پیدا کېدو کال
یې د (۱۰٦٥ هـ) ځخه بیا تر (۱۰۷۰ هـ) پوري تخمین کیږي. صدر خان علاوه پر دېوان چي هر راز اشعار لري دوې قصې یې
هم په پښتو نظم کړي دي، چي لومړۍ قصه یې (آدم او درخانۍ) ده او په (۱۱۱۸ هـ) یې نظم
کړې ده.
دوهمه قصه یې (دلی او شهو) ده، چي په (۱۱۱٥ هـ) یې نظم کړېده. په دې دواړو قصو کي، چي د پښتنو له قدیمو رومانو
ځخه ګڼلي کیږي صدر خان خپل ادبي تکړه توب ښکاره کړی او دغه قصې یې په ادبي ګېڼه ښکلي کړي دي.
صدر خان خپل تربیت د پلار په سیوري کي داسي بیانوي :

تربیت یې ډېر زمـــــــــا کــــړ
هـــر تعلـــــیم یې و ما راکـــــړ
په تعلیم یې سخــــندان کـــړم
په ویل یې سخــنران کـــــــړم
چي یې درست په دا فنون کړم
په ویل یې نور مـــــاذون کــړم

خوشحال خان دا اراده کړې وه، چي د آدم خان او درخانۍ داستان پخپله نظم کړي مګر په دې کار کي موفق نه سو، نو یې خپل زوی صدر خان ته وویل چي دغه قصه په نظم کي وساتي، صدر خان د خپل پلار له خولې داسي وايي :

| | | |
|---|---|---|
| له کارباره فرصت زما وي | | که د عمر څه وفا وي |
| بویه ښې سخنرانۍ | | له آدم له درخانۍ |
| یادګار پاتو په ستنه شي | | چې منظوم يې یوه قصه شي |
| زه روان شم له جهانه | | او که پاتې شي له ما نه |
| دا قصه په ښکلي نظم | | ته منظومه کړه بالجزم |

دی د خپل کتاب (دلي او شهۍ) په سرکي دغه معشوقه داسي ستایي:

| | | |
|---|---|---|
| په نامه حیات خان و ښه افغان و | | هغه وخت په یوسفزوکي یو ځوان و |
| میشته په مېنه د تورپۍ مېني دی و | | لوی سردار د ملېزیو بنیری و |
| په نامه مسمی وه شهۍګلرویه | | زوی يې نه و یوه لور يې وه نېکخویه |
| خوش خرامه آهو چشمه نېکفرجامه | | شهي نامه سهي قده ګل اندامه |
| په ګفتار هرګور فصیحه وه بې عده؟ | | په رخسار هرګوره (ښکلې) وه بې حده |
| شوه به سروه سرنګونه زر غلتانه | | چې به دا په لاري شوه سمه روانه |
| په ښه بوی به يې نسیم واړه بویا شو | | په ښایست به يې د ځمکي مخ زیبا شو |
| چې هم درد وه د وګړي هم درمان وه | | په چشمانو په لبانو هسي شان وه |
| په وحشت يې شاګرداني کل آهو وې | | دواړه سترګي یې استادي د جادو وې |
| هم فتنې هم غمزه ګري هم شهلا وې | | هم يې سترګي جادوګري هم بلا وې |
| د صاف تن يې د وېښته وه ډېره وېره | | ملا يې وه لکه وېښته بلکه لاغره |
| رسېده به يې آزار و باریك تن ته | | که ګل پاڼه يې خت شوې وای بدن ته |
| شاید دا د دې له رشکه پرې پیدا ده | | د سپوږۍ په مخ سیاهي چې هویدا وه |
| د سرو لعلو په دبلې کي تل پنهان و | | غاښ يې دودېرش ملغلري درخشان و |
| دواړه شونډې يې پیالې وې د شرابو | | لینګي يې دواړه ګل وه د ګلابو |
| ویل کړل به همېشه په څو څو شانه | | له ښایسته يې وګړي د زبانه |
| په ښه مخ کي بنفشه هم سمن زار ده | | چا به وې شمعه یا باغ د نوبهار ده |
| بنفشه يې توري زلفې یا سنبل دي | | اننګي يې یاسمن یا ګلاب ګل دي |
| دواړه سترګي يې نرګس غنچه دهن ده | | سپینه پوزه يې کلي د نسترن ده |
| تر ښه قد يې ناڅېزونه د شمشاد وه | | پابسته يې تر قیامت سرو آزاد وه |
| په ښایست کي پخپل دور یګانه وه | | غرض دا چې د خوبیو خزانه وه |
| پرې ژوندی به شو مرده د سلو کالو | | چې آواز به يې پیدا شو د خلخالو |
| تاو ځنځیر به د عشاقو شو په غاړه | | چې اوږې ځنځیر به پوري کړه دې واړه |
| کله ژیړي زعفراني کله وربښمیني | | ښې جامې به يې اغوستې تل میني |
| بې سوختن به پاتو نه شوه چېرته خونه | | چې به دا په سرو جامو شوله ګلګونه |

ورسره به رنګا رنګ جوني طـــنازي

مجلسي وې طربناکي خوش آوازي

په دې ډول صدر خان د ادبي تصوير په فن کي استاد ښکاري او دی يو سحرکار شاعر او داستان ليکونکی دئ، چي خپل هنر يې په دغه فن کي په اعلی درجه ښکاره کړی او حقاً يې ځان د پښتو په لوړه درجه شاعرانو کي درولی دئ.

# ګوهر خان خټک

د خوشحال خان د کورنۍ يو بل شاعر او نثر ليکونکی د ده زوی ګوهر خان دئ، چي دی د خپل وراره افضل خان خټک د حکومت تر زمانې پوري ژوندی و او د ده د شعر دېوان تر اوسه پوري نه دئ پيدا سوی، خو ځيني متفرق اشعار يې موجود دي. ګوهر خان د پښتو په نثر کي يو کتاب د ترجمې په ډول پرې ايښی دئ، چي نوم يې (قلب السير) دئ، چي د فارسي څخه په پښتو په (۱۱۲۰ هـ) کال ترجمه سوی دئ، د ګوهر خان نثر په هغه ډول دئ لکه خوشحال خان چي (کليله و دمنه) پښتو کړې وه، د ده نثر له تاريخ مرصع سره چي په همدغه زمانه کي افضل خان خټک ليکلی دئ، لږ څه فرق لري، يعني د افضل خان ژبه د ګوهر خان تر نثر لږ څه ساده او روانه ده، ګوهر خان د (قلب السير) په سيزه کي داسي وايي :

### تأليف د کتاب

"دا چي اکثر کتابونه له عربي فارسيانو بزرګانو و خپل عالم ته چي په تازي ژبه کي به يې فهم پرې ښه نه کېده په فارسي يې د دوی دپاره ترجمه کړل، سهولت يې شو او ښه مينه به يې پرې پيدا کړه، مطالعه به يې کړه، ډېر کتابونه د فقه د مسايل د اخلاق و غيره بزرګانو فارسيانو بيان کړل چي معلوم دي. په پښتو کي دا رواج نه و، اخند درويزه يو کتاب مخزن ويلی دئ، حق تعالی دې وبښي اکثر خلکو ترې فيض بيا مونده، زموږ پلار مرحوم خوشحال خان خټك الله تعالی دې په قبر نور کا، هر ګونه کتابونه يې تصنيف کړل، داد يې د بلاغت او فصاحت د پښتو ژبې ورکړ، فارسي ته يې په لذت نژدې کړه. د غزل، رباعي، مخمس، ترجيع بند، ترکيب بند و غيره صنايع شعر يې وکړ، د فارسي د شعر رواج يې و پښتو ته ورکړ، په عروض په قافيه کي درست ووې د نظم نثر يې ښه کتابونه بيان کړل، چي خود په عالم مشهور دي، اګر چه د پښتو ژبه په علت د دورنشينۍ هومره لذت نه لري چي عربي، فارسي سره نسبت شي لاکن از راه ضرور پښتنو ته هم په پښتو ويل بهتر دي او سنت الهي ضرور پښتنو ته جاري دئ، هر کتاب چي نازلېده هم د هغه قوم په ژبه به نازل شو دا په دا چي د هر چا پخپله ژبه فهم کيږي.

**رباعي**

دوه ياران چي راز د زړه تر بله نمايي<br>
بايده دئ چي پخــــــــــــــپله ژبه وايي<br>
د فارسيانو کن مکن ويل چه سود کا<br>
پښـــــتنو ته کــــړه مکړه ويل ښه ښايي

نور بل سبب د کتاب دا و، چي افضل خان زوی د اشرف خان مرحوم لمسی د خوشحال خان خټك کرلانی غفرالله له چي

سن زر سل شل دئ دی د پلار نیکه په ځای قایم مقام دئ ښه سرداري لري، نظر يې په نېکنامي په اباداني دئ په دا قحط الرجال دی غنیمت دئ، اللهم تزد احسانه، حق تعالی دې شرم وساتي نور مساعي کا، چي د پښتو کتابونه له هره قسمه لکه فارسیانو کړي دي مرتب شي. د نیکه شعر يې واړه په بیاضونو هر ځای متفرق وه، د ده په تلاښ چي څو مدت په دا سعی کي و له هره ځایه يې جمع کړ، دېوان يې مرتب کړ، بلکه کلیات د شعر يې چي څه و په نظم نثر لکه دستارنامه، فراقنامه، فضل نامه او دېوان و غیره کتابونه يې واړه په کاتبانو په څو څو ځله وکښل په اطراف به يې د شعر دپاره و هر چا و ته استول حق تعالی دې توفیق د نېك رفیق کړه. په مجلس کي به يې همېشه ویل چي که د چا په طبیعت قوت وي چي پښتو کتابونه لکه فارسیانو له عربي په فارسي ترجمه کړل څوك يې له فارسي په پښتو ترجمه کاندي. و ما ته به يې اکثر اوقات مخ راجاریوست. اگر چي ځما قوت هونبره نه و، لیکن چي نظر مي په تضیع وکړ، ومي لیده چي عمرگرانمایه ضایع درومي، په هر حال مي و دې محنت ته ملا وتړله، نور مي اکثر دکتابونو مطالعه کړه چي له یو کتاب چي په قال په حال مضبوط او معتبر وي له فارسي ژبي نه يې په پښتو ترجمه کړم. داکتاب مي بیا موند چي نهایت په افعال په قال په حال د موږ د پیغمبر صلی الله علیم وسلم پخته او معتبر و، چي تعریف يې د پختگۍ مصنف په فارسي کي نهایت طولاني کړی دئ، (چي که پداکتاب کي يې راوړي گنجایش نه لري)[1]، نور مي شغل ورسره واخیست چي دا شغل مي عظیم نعمت دئ له فارسي مي په پښتو ژبه ترجمه کړ، نوم يې قلب السیر کښېښود شو.

**نظم**

داکـــــتاب په پښـــــتو ژبه غـــــــنیمت دئ
په لوستوني يې نازل د خدای رحمت دئ
چي يې لولي یا يې کښـــینه ما دي یادکا
په تکـــــبیر په فـــاتحه مي دي ډېر ښادکا

دگوهر خان د نثر نمونه دغه وه، چي د پښتو یو متوسط نثر شمېرل کېږي، اوس به د ده د شعر یوه نمونه هم ولیکو :

**غزل**

| | | |
|---|---|---|
| چي په مهر دي نظر شي هر انسان ته | | په بهانه بهانه يې وبولې خپل ځان ته |
| چېرته فارس چېرته به شام یا مدینه وه | | چي دي وښیله لار راسته آسمان ته |
| مجوسي آتشپرست یار د احمد کړې | | چي هیڅ نه رسېږي عقل اوگمان ته |
| عجمي له اهل بیت سره حساب کړې | | سکه تره د احمد خوشي کړې شیطان ته |
| په مکه کي بولهب څرنگ گمراه کړې | | له ملکونو سلمان راولې ایمان ته |
| بوالحکم د مکې څرنگ دوزخي کړې | | له حبشه بلال ورولې رضوان ته |
| ځای د دم وهلو نشته هر څه کاندې | | حیراني ده په هرکارکي و سبحان ته |
| و خاکي بنده ته څو مراتب ورکړې | | د ملك غوندي يې گشت وشي آسمان ته |

شفیع کړی مي سلمان دئ ستا و در ته
ما "گوهر" ایماندار بیایه بل جهان ته

[1] په لېندیوکي نیول سوی عبارت، په اصل کي نسته، ما د اروانښاد علامه حبیبي د یوې مقالې څخه چي دگوهرخان تر سرلیک لاندي خپره سوې ده، راواخیسته. (روهیال)

# کاظم شیدا

د خوشحال خان په کورنۍ کي یو بل ادیب او شاعر د پېژندلو وړ دئ، چي دی کاظم خان نومېږي، او د افضل خان زوی دئ په (۱۱٤۰ هـ) کال د ختکو په افضل آباد کي زېږېدلی او عمر یې په کشمیر او سرهند او رامپور کي تېر کړی دئ. د ده اشعار عشقي او اخلاقي خواوي لري، مګر په پښتنو شاعرانو کي د ده امتیاز دا دئ، چي شیدا یو نازك خیاله او د قوي تخیل خاوند او په شاعري کي د سبك هند پیرو دئ. د شیدا پر ژبه او ادب د فارسي ژبي د سبك هند اثرونه لوېدلي دي، چي د ده شعر یې د پښتو له طرز ادا څخه لیري کړی دئ، مګر د شیدا امتیاز په همدې کي دئ، چي دی ډېر نازك او نوي خیالي مضامین پیدا کوي او هغه په داسي ژبه او داسي تعبیر وایي چي د فارسي ژبي نازکي او لطافتونه په پښتو کي ځایوي او د ده له شعر څخه یو خوږ او مرکب معجون جوړوي. د شیدا په شاعري او شاعرانه تخیلاتو کي د پردېسۍ اثرونه هم ښکاره کېږي، مثلاً خپله اواره ګي او د زمانې جفاکاري په داسي ژبه بیانوي او آسمان ته وایي :

د کورې نیل دي پوري په دیده کړه
بصارت د تمیز نه لرې آســــمانه !
زمـــانه په رعــــایت د ګاو خــــر ده
پرورش د علف زار بویه باغـــوانه
آخـــر وژاړي په شـــان د غـــریبانو
که هر څو د وطن صبحه ده خندانه

د شیدا په شاعري کي د یادولو وړ هغه برخه ده، چي ده د وطن په یاد ډېره مضمون آفریني کړې او د تخیل په میدان کې نیلی ځغلولی دئ، په دې رباعي کي د خپل وطن مناظر څنګه تصویر کوي :

په زړه مې ګرځي د غرونو څوکي
حـــملې د بازو د زرکـــو کـــوکي
ووایه څـــــــه کا د روه نســـیمه !
ګـــیرا منـــګولي زېبا مشـــوکي

بل ځای د صبا باد ته داسي خطاب کوي :

چي ګذر وکړې صبا د سرای په لـــوري
آواره بلبل یې یاد په ګل زمـــــین کــــړه

کله چي د هند د سبزانو حسن ویني د خپل وطن د ګلرخانو ښکلا وریادېږي او هند ته په خپل راتګ پښېماني کوي :

ســـبزان کله وي همــــسر د ګلرخــــانو
بېهوده راغی شـــــــیدا تر هـــــندوباره

په دې بیت کي د هند د خلکو سیاهي په شاعرانه تلازم د خپل وطن د معشوقانو د تورو سترګو سره داسي ښیي :

پکښې نشته سیاه مست د هغو سترګو
ګرزېدلی په درست هند په بنـــګاله یم

بیا چي د هند د سبزانو په پاڼو سرې شونډې ویني نو د وطن د غرونو د زرکو په یاد کي وایي :

چي د هند سبزو خوړلی پان وي
لعل و یاقوت یې دواړه لبان وي
زرکي چي ګرزي د روه په غـرونو

ښایسته روغي په دغه شـان وي

شیدا کله د هندي پېغلو په ناز و ادا مسحور کېږي، او دلته خپله پښتني ساده روحیه داسي بیانوي :

په هـــندي ادا يې وکـــړې په ما چـــاري
زه شـــیدا په زړه ســـاده د روه افـــغان يم

شیدا د سبك هند د نازك خیالۍ او مضمون آفرینۍ یو ښه تکړه نماینده په پښتو ادب کي ګڼل کېږي او دی پخپله خپل هنر ته ملتفت دئ او داسي وايي :

د ســـوسن ژبه حـیرت کـــړه سرمه سایه
چي شیدا په دا بهار کي سخنګوی شو

په دې بیت کي د خپل زړه بندیوالی له زلفو سره په ډېره نازکخیالي تعبیر کوي:

زما زړه يې کله رانیو ســـــــــــتا له زلـــــفو
که هر څـــو يې شانې تاو کړه مـــــړوندونه

د شیدا په شاعري کي د نوي مضمون آفرینۍ سره سره کله کله ډېر ګټور اجتماعي او اخلاقي مطلبونه هم پیدا کېږي، مثلاً د اجتماعي ایثار په خصوص کي داسي مضمون آفریني کوي :

افروخته يې وي محـــفل په شان د شمعي
چي سوخته د بل په کار کي خپل دما غ کا

د ناتوانانو سره خپله همدردي او تعاون داسي ښيي :

دلـــــــداري د هر ناتوان زما عـــــــادت دئ
بار په دوش وړي د هر خس طوفان زمـــــا

همدغه مطلب په بل مضمون کي داسي ادا کوي :

دلداري لـــکه غنـــچه د هر شـــــــبنم کـــړم
تل د بل په اوښـــــــــو تر زمــــــا استین دئ

د لوړهمتۍ تصویر داسي کوي :

د آفـــــتاب په کمـــــــند نه خېژم آســـمان ته
نه ږدم بار لکه شـــــــــــــبنم په دوش د ګلو

بل ځای دغه مضمون په بل ډول ادا کوي :

که دي جـــام لکه حـــــباب ونه نیو سین ته
آفـــــــرین دي په همت شـــــــیدا خـــــــټکه

د بل چا له پاره خپل راحت قربانول په دې الفاظو ښيي :

چي راحت درځخه سـتړی ستومان مومي
خپل صورت دي لکه سیوری د بېدیا کړه

د شیدا یوه غزله :

| مه آرزو د تخت و تاج مه د سپاه کړه | | خسروي په هفت کشور لکه شاه راه کړه |
| --- | --- | --- |
| چي آستان دي تل مرجع د خاص و عام وي | | د دوام افتادګي علو د جاه کړه |
| مکدر په ګرم و سرد د دوران مه شه | | په جهان کي زیست په شان د مهر و ماه کړه |
| چي زیردست سوزې په دا درازدستیه | | زمانه دي لکه شمع دست کوتاه کړه |
| پرېشانه یې شوه جمع لکه شمع | | چي په حال یې توجه روز سیاه کړه |
| سرکښي دي په حباب لکه سېلاب ده | | کروفر د زمانې په دا کلاه کړه |

کاشانه بویه شیدا چي اشیانه وي
یعني وضـــع د بنا په پرکاه کـــــړه

# رحمان بابا

په پښتو شاعري کي بل د پېژندني وړ او لوی صوفي شاعر عبدالرحمن د عبدالستار زوی په قوم مومند دئ، چي پښتانه یې رحمن بابا بولي. په (۱۰٤۲ هـ) د پېښور په جنوبي خوا کلوکي پیدا سوی و، دی د بهادر د کلي دئ چي د پېښوره تقریباً درې میله د جنوب طرف ته پروت دئ او په دغه علاقه کي د رحمان بابا ځای هزارخانه نومېږي. د پټې خزانې د مؤلف روایت دئ، چي رحمن بابا د ملا یوسف څخه فقه لوستلې وه، د ده د وفات کال د (۱۱۱۹ هـ) په شاوخوا کي ټاکل کېدای سي. داسي معلومېږي، چي رحمن بابا یو باعمله صوفي او د یوه ساده ژوند خاوند و، مګر سره د دغه چي دی له غریبي طبقې څخه بلل کېدی د عشق او لوی همت په برکت د ده ژوند د استغنا او عالي همتۍ په سایه کي تېرېده، لکه چي وایي :

هـــم په دا چي نه له ځایه چېرته خوځـــم
نه د هیـــــــځ یوه مخـــــلوق یم منت بار
آب و خـــور لکه آســـیا په ځای را رسي
پخپل کور کي مي سکون دئ هم رفتار

د رحمن بابا د ژوند زمانه د اورنګزېب د پادشاهۍ په وخت کي ده او دا هغه وخت و چي مغلو په پښتنو کي نفاق او مخالفتونه پیدا کول، چي دوی سره وجنګوي او خپله پادشاهي پر وکړي، نو ځکه په دغه زمانه کي جنګ جګړې او ظلمونه ډېر و، نو رحمن بابا  دغو خونرېزیو ته په انتقادي نظر ګوري، او وایي :

هزار حیف دئ چي دا هسي رنګه چاري
واقـــع کـــــېږي د دنیا په ســـــود و زیان

د رحمن بابا د ژوند اکثره برخه تر هغه ځایه چي د ده د اشعارو څخه معلومېږي په دروېشي او انزوا کي تېره سوېده، دی ویني چي د استعمار د ظلم اور له ډهلي څخه پر پښتنو بل دئ او له دې جهته نو د خپل کور وکلي څخه تښتي او وایي:

په سبب د ظالـــــمانو حاکـــــــــــمانو

کور او ګور پېښور درې واړه یو دي

د رحمن بابا پر شاعري باندي د خوشحال خان د فکر اثر هم لوېدلی دئ او دوی دواړه په یوه زمانه کي تر یوه اجتماعي سازمان لاندي ژوندکاوه، اما فرق یې دوني و، چي رحمن بابا د زمانې له ناوړو سره مبارزه نه کوله، خو استقامت یې درلود:

لکه ونه مستقیم پخپل مکان یم
که خزان رابانديي راشي که بهار

مګر خوشحال خان خو یو مبارز او جنګي سردار و، نو ځکه دغه دواړه شاعران خو د مغلو د ظلمو څخه ژاړي، د رحمن بابا ژړا د یو صوفي او واعظ ژړا ده، چي په نتیجه کي صرف ظالم د دنیا په نابودي او د مرګي په تاخت و تاراج بېروي :

اورنګــــزېب چي آرایش د تخـت و تاج کا
تخت و تاج به یې مرګی تاخت و تاراج کا

درویش رحمان بابا بې له دغه شاعرانه تهدیده بل څه په لاس کي نه لري او وایي :

په جهان کي به یې پاتو ښه بد نوم شي
ده زده چاري دکسری که د حـــجاج کا

اما خوشحال خان تنها په دغسي شاعرانه نصحیت ګویي نه قانع کېږي، بلکي دی د ظلم په مقابل کي توره هم استعمالوي او وایي :

د افـــــغان په ننــــګ مي وتړلـــه توره
ننګیالی د زمانې خوشحال خټك یم

د رحمن بابا په شاعري کي د تصوف لو برخه شامله ده، چي په هغه جمله کي یوه هم د وحدت او عشق مسئله ده، د وحدته څخه مطلب دا دئ چي صوفي شاعر په ټولو کایناتو کي د یوه خدای د نور تجلیاتویني او بې له دغي رڼا بل څه نه سي لیدلای، رحمن بابا وایي :

نه یې څوك په سترګو ویني نه لیده شي
خــو بې چـــونه بې چـــګونه نمایان دئ

د رحمن بابا نظر د ابدي نور په تماشا کي هسي تېز و، چي په بت خانه کي یې هم دغه جلوه کتله، دی وایي :

دا زما د یار جلوه ده چي لیده شي
لـــکه نمر په صومعه په سومنات

او بیا وایي :

رحمن حسن د یار وینم په پرده کي
نه پټېږي نور د حسن په قــــاموس

رحمن بابا د پښتو د صوفیانه او عاشقانه تغزل استاد دئ، تر دې اندازې چي ده ته د عشق او جمال شاعر ویلای سو. وایي چي ده له موسیقۍ سره هم عشق درلود او په خپله به یې هم رباب ږغاوه، یعني ده د آرټ دوه مهم توکي سره یو ځای کړي وو، هم د کلماتو د انسجام او د معنی د پرورښت آرټیسټ و هم د ږغولو د ترتیب د رباب په تارو کي هنرمند و او دا خبره د ده هنري استعداد ښه ښکاره کوي. صوفي شاعر همېشه د عقل نارسایي د حقایقو په لیدنه کي ویني او ګوري چي ډېر پټ اسرار سته، چي د انسان عقل یې له درکه څخه عاجز دئ، نو له دې جهته رحمن بابا هم لکه نور صوفي شاعران د عقل او جدل له هرکارې څخه د عشق او محبت حریم ته تښتي، نو وایي :

څو د عشق په میخانه یې داخل نه کړم
پخــــته نه دئ دغه خــــام عـــقل زمــــا

بل ځای داسي وایي :

لاس د عـــقل دي آســــــــمان ته نه رســــېږي
دا خو عشق دئ چي په عرش کرسي قدم ږدي

صوفي شاعر دا دعوا لري، چي د عشق په وزرو سره اسمانونو ته ختلای سي او عقل په دې کار کې نارسا دئ، مګر د شلم قرن انسان د عقل په لارښوونه د سپوږمۍ کره تسخيروي، خو دا خبره هم د صوفي ادعا نه سي باطلولای، ځکه صوفي وايي چي د عشق په برکت د ده نظر دوني وسعت او تېزي مومي، چي علاوه پر سپوږمۍ نور ټول کاينات او نظام شمسي ليدلای سي :

عشوه مفروش بمن ای ملك الحاج که تو
خانه می بینی ! و من خانه خـــدا می بینم
حافظ

د رحمن بابا په نظر کي درويش د انسانيت د کمال يو سمبول دئ او دا هغه څوك دئ، چي ده خپل ځان او روح داسي روزلي دي چي د کايناتو د حقايقو کشف په خپل قوت سره کولای سي، او په هغه ځای کي چي د عقل پښه لنډيږي صوفي د عشق پر نيلي سپور او نامعلوم حقايقويني، رحمن بابا وايي :

چي په يو قدم تر عرشه پوري رسي
ما لـــــيدلی دئ رفــتار د درويشانو

رحمن بابا هم لکه نور صوفيان عشق د انسان د پيدا کېدو اصلي محرك بولي او وايي :

دا جهان دئ خدای له عشقه پيدا کړی
د هـــــمه وو مخـــــــــلوقــاتو پلار دئ دا

دغه عشق د ساينس په ژبه عمومي جاذبه بولي، چي نظام شمسي ټول يو له بله سره نښلوي او د رحمن بابا په نظر دوني وسيع دئ، چي د نظام شمسي ټول متعلقات په صوفيانه تعبير داسي ښيي :

دا آسمان چي لوی په عقل کي ليده شي
په محـــــيط د عاشقۍ کي يو حباب دئ

د رحمن بابا په شاعري کي يو ډېر مفيد عنصر دا دئ، چي دی د اجتماعي ژوند د سمون له پاره ځيني ښه ښه نصيحتونه هم لريچي زموږ په روزمره ژوند کي په درد خوري، مثلاً په ژوندانه کي آرزو او طلب دواړه د انسان له پاره ضروري دي او رحمن بابا داسي دغه مطلب راښيي :

د ذرې په څېر آفتاب په طلب خــپل کړه
لکه تيره هسي پروت په زمـــــين مه شه
کار په تش لستوني نه کــيږي بې لاسه
لاس په بريره کړه بې لاسه آستين مه شه

هنر او د انساني کار کړني داسي ستايي :

بې هــــــنرو لــره قــند زهر قاتل دي
قند يې وګڼه که زهر په هنر خورې

د انساني همدردۍ او خدمت په خصوص کي داسي وايي :

هغه زړه به لـــــــه طــــوفانه په امــــــــان وي
چي کښتۍ غوندي د خلکو باربردار شي

په دې بيت کي د پښتنو د ژوندانه يوه بده نقشه کاږي او د ځان له پاره له هغې څخه امان غواړي :

خدای امان راکــړه له هسي زندګۍ
چي ته بد وايې لـــــــــه بلـــه بل لـــــه تا

د رحمن بابا يو غزل :

| په دنیا کي مخ د یار دئ نور څه نشته | | هر څه دي د یار دیدار دئ نور څه نشته |
| --- | --- | --- |
| چي و هجر و وصال ته یې نظر کړم | | یو دوږخ دئ بل ګلزار دئ نور څه نشته |
| کارخانه چي د دې دهر لیده کیږي | | همګي د عشق سرکار دئ نور څه نشته |
| هر مژګان یې په ما هسي چاري کاندي | | وایم عین ذوالفقار دئ نور څه نشته |
| بویه مرد چي یې له مخه زلفي واخلي | | دغه ګنج دئ دغه مار دئ نور څه نشته |
| هر طبیب ته چي ځان وښایم دا وایي | | چي له عشقه دي آزار دئ نور څه نشته |

خوار "رحمن" که بې تا مینه په چا وکا
عین د قــتل سزاوار دئ نور څه نشته

# عبدالحمید مومند

د (۱۱۰۰ هـ) په شاوخوا کي د پېښور جنوبي خوا ته په ماشوخېلو کي عبدالحمید پیدا سو، د ده ژوند تر (۱۱٤۸ هـ) پوري یقیني دئ او ښایي تر (۱۱٦۰ هـ) پوري لا ژوندی وي، مګر د مرګ یقیني نېټه یې نه ده معلومه او قبر یې د ماشوخېلو په هدیره کي معلوم دئ، چي کله کله د پېښور پښتانه پر هغه باندي مشاعرې کوي. د حمید د شعر دېوان په ټولو پښتنو کي شهرت موندلی دئ، چي تقریباً (۳۰۰۰) بیتونه لري او اکثره یې غزلي دي، د حمید دوهم کتاب د شاه او ګدا قصه ده، چي په (۱۱۳۷ هـ) داخوندزاده غلام محمد په اشاره په پښتو مثنوي ترجمه سوې ده، دریم اثر یې د مولانا غنیمت د فارسي نیرنګ عشق په پښتو مثنوي ترجمه ده، چي دا هم ډېر ادبي ارزښت لري. د حمید څلورم لوی کتاب د عربي شرعة الاسلام په پښتو مثنوي ترجمه ده، چي پنځلس زره بیتونه لري او په (۱۱٤۸ هـ) کي ختم سوی دئ، نو که موږ د حمید دغه موجوده آثار وشمېرو تر شل زره بیته زیاتېږي، مګر د حمید امتیاز له نورو شاعرانو څخه یوازي د شعر په ډېروالي نه دئ، بلکي دي هنري او ادبي داسي لیاقتونه لري، چي هغه په نورو شاعرانو کي لږ لیدل کیږي او موږ لاندي د حمید د هنر خصوصیات شمېرو :

حمید پښتو شعر ته نازك تخیل او شاعرانه موشګافي راوستله مګر دی لکه شیدا خټك داسي نه دئ، چي د رنګین فکر د اداکولو له پاره د پښتو ژبي له اصلي قالبه څخه ووزي، بلکي دی پخپله ژبه او خپل هنر باندي دوني غښتلی دئ، چي هر رنګه نوی مضمون او ښکلی تخیل په پښتو ښکلیو الفاظو کي اداکولای سي، خو د پښتو خپل خاص د ادا رنګ هم پکښې ساتي، د ده په کلام کي کي لکه شیدا فارسي جملې او تعبیرونه نسته.

په فارسي شاعري کي د سبك هند خصوصیت دا و، چي شاعر به د تخیل په مرسته ډېر نازك او دشوار مضمونونه په پېچلو الفاظو او ادبي تلازماتو او د شاعرانو په ظاهري او معنوي بدیعي فنونو جوړول او په نتیجه کي به یې داسي شعرونه ویل چي فهم به یې مشکل و او هم به یې د بیان ظاهري اسلوب داسي و، چي د فارسي ژبي د عراقي ساده او روان سبك سره به یې ډېر تفاوت درلود او د همدې جهته دئ، چي د ایران خلك د سبك هند د شاعرۍ ځیني د مبالغې ډکي نمونې نه خوښوي، حمید پخپله شاعري کي د سبك هند نازکخیالي راداخله کړه او په همدې سبب د ذوق خاوندانو د ده دېوان (در و مرجان) او پخپله دی یې موشګاف وباله، مګر د حمید کمال دا و، چي خپلي شعري ښېګڼې یې د سبك هند تر موشګافۍ نه کړې قربان بلکي په متوسط ډول یې د هندي سبك ځیني ښکلاوي

پخپل شعر کي په استادانه ډول وروزلې که موږ له فارسي شاعرانو سره د حمید او شیدا مقایسه وکړو نو حمید لکه صائب او کلیم ګڼلای سو او شیدا لکه ناصر علي او بیدل او دا ښکاره ده، چي صائب او کلیم د سبك هند معتدل استادان دي.
د حمید د هنر یو بل ارزښت هم دا دئ، چي د ده د شعر اقسام لکه غزل، مثنوي، رباعي مخمس ټول یو راز ادبي مزیتونه خوندي کوي، یعني د ده په شعر کي لوړ او ځوړ او نشیب او فراز ډېر لږ ښکاري، لکه په غزل کي چي نازکخیاله او مقتدر خیال پرست شاعر دئ دغه مزیتونه د ده په مثنوي او داستان سرایي کي هم ښکاري دا ځني ثابتیږي، چي دی یقیناً تکړه شاعر او استاد و او خپل هنري لیاقت په هیڅ ځای کي د لاسه نه باسي.
حمید پخپله شعر یوازي په لفظونو بازئ یا یوازي نظم جوړول نه بولي خو داسي نظر لري، چي شعر لکه یو هنر چي دئ دغسي هم د انسان له نازکو احساساتو او د زړه له دنیا سره علاقه لري، یو شعر به په ظاهري ښکلیو الفاظو مزین وي، جمله بندي او ظاهري انسجام به یې هم سوی وي، مګر د زړه څخه به نه وي راوتلی نو داسي شعر ته موږ شعر نه سو ویلای، بلکي نظم دئ. د پښتو ژبي ډېر دغسي نظمونه موجود دي خو هنري ارزښت هیڅ نه لري، حمید خپله هنري نظریه د نیرنګ عشق په مقدمه کي داسي څرګندوي :

| | |
|---|---|
| غوړو ورکړه یو له بل مبارکي | ما چي وپېیل دا دُر په باریکي |
| یا وتلی وروستی دم له خولې د مړه دئ | شعر نه دئ دا خوناب د زخمي زړه دئ |
| یا مجنون ته معما ښکلې لیلې ده | یا نغمه د نیم بسمل مرغه د خولې ده |
| یا له ښاره د حیرت وتلی فوج دئ | یا د وینو اباسین وهلی موج دئ |
| زیاتوي زما خبري هومره خوند | څو وهي د فکر زامي باندي شخوند |
| چي قدم ږدي د دې ناوي په جوس | نه دئ کار د هر نااهل بوالهوس |
| د ښایست مخي یې نسته هیڅ پلو | که یې څوك له مخه پورته کا پلو |
| ازمېیلی دوباره ازمویه نه شي | دا ګوهر له نازکیه پېیه نه شي |

دلته حمید د هنر او نظم فرق کوي او هر ناظم ته حق نه ورکوي چي د هنر د ناوي په ښکلي جوس کي قدم کښېږدي.
د حمید هنري استعداد هغه وخت ښه ښکاره کیږي، چي سړی د ده هنر د استعمال په مختلفو اړخونو کي وګوري، مثلاً په نیرنګ عشق کي د معشوقې نڅا او د هغې نازنین حرکات په داسي الفاظو تصویر کوي :

هـــــر اندام دګل اندام به نڅــښده
لــکه مـــوم د اور له تاوه څـڅېده
کېناستو یې کښېنول سل آفتونه
پاڅېدو یې پاڅول سل قیامتونه

دا خو د حمید یو شاعرانه ښکلی تخیل و، چي د یوې ښکلي نڅا تصویر دئ، مګر کله چي جدي اجتماعي مطالب لیکي هغو ته هم د تخیل یو شاعرانه او هنري رنګ ورکولای سي، مثلاً وایي :

بیا به نه مـــومي بوسه د خـــــوږو شونډو
څو دي زړه په شان د پاڼو پر خون نه شي
څو شبنم غوندي شبګیر په سر وانه خلي
دګلـــرخ سره به نه شي هـــــم اغــــــوش

په دې بیتو کي دکوښښ او مجاهدې فلسفه د ژوندانه په عملي دنیا کي ښیي او د پاڼو په اصلي سرخي چي د محبوبانو شونډې ور سرې کوي او په دوهم بیت کي د شبنم شبګیري او په نتیجه کي یې له ګلرخانو سره هم آغوش شاعرانه استدلال

کوي او دغه موضوع چي شاعرانو په قسم قسم ويلې ده يو هنري بيان څرګندوي. په ژوندانه کي احسان د اجتماع له پاره ډېر مفيد عنصر دئ او که دغه شريف احساس د يوې جامعې په افرادو کي مونده سي هلته به د غريب او بډاي فرق هم لږ سي، د دې نېك خوى د تبليغ له پاره شاعرانو رنګا رنګ مضمونونه پيدا کړي دي، د حميد په دغه بيت کي دغه موضوع په يوه نوې شاعرانه تعبير سره ويل سوې ده :

چي د اوسپني ځنځير شلوي په ګوتو
هغه دېو په اومــه تار د احسان نښلي

کله چي موږ د حميد هنر د ده په شعر کي مطالعه کوو، نو دا په ټينګه ويلای سو چي حميد تر هر څه زيات د عشق او شريف احساس او د ښکلا يو مصور شاعر دئ او تر هر څه زيات به دی هنري مهارت لري، مثلاً د ده د ښکلا تعبير يوه نمونه دا ده :

| | | |
|---|---|---|
| چي نظر په نوخېز حسن کړم د ښکليو | | راته هيڅ شي د بهار د ګلو خېز |
| زه د يار مړاو کتو ته حيرانېږم | | چي ګذار کاندي په سسنه لينده تېز |
| شورماشور کاندي خلوت په خلوتيانو | | چي ور وښيي جمال فتنه انګېز |
| | | |

که يې لب د شکر لب زېښلی نه دئ
د حـــــميد زبان په څه شو شـــکر رېز

# عبدالرحيم هوتك

عبدالرحيم له هغو شاعرانو څخه دئ، چي پخپله يې خپله اغلب سوانح په خپل دېوان کي ځای پر ځای ښوولې ده. د ده مسقط الراس او اصلي وطن کندهار دئ او په غربت کي يې ډېر ډېر يادوي[1] د ده دېوان د مطالعې څخه معلومېږي، چي دی د هوتکو په عصر د کندهار په زاړه ښار کي اوسېدلی دئ او هلته يې دوستان درلودل[2] او بيا چي د افشار نادر شاه په لاس د (۱۱۵۰هـ) په حدودو کي کندهار خراب سو نو عبدالرحيم په مفارقت او مسافرت کي هم د خپل ښار ياد له زړه نه دئ ايستلی.
عبدالرحيم ذاتاً له هوتکو څخه د ښه بولان (کلات) معلومېږي، او د زاړه او اوسني کندهار په حدودو کي يې هم ژوند کړی دئ او بيا نو له وطنه جلا سوی دئ[3] دی پر لسم کال د څه ناچاريو په سبب له وطنه وتلی دئ[4] د ده د مفارقت او غربت دا زمانه تر اتيا کالو پوري رسېږي، او د دې مفارقت او جدايۍ په عمر کي دی تل وطن او د وطن ياران يادوي او په سوران سوران ژاړي، او وايي :

زه رحـــيم په بخـــــارا کي آرزو کــــــــړم
که مي خدای کړي په بلاد د کندهار ګډ

عبدالرحيم د خپل مسافرت او پردېسۍ ځايونه ټول ياد کړي دي، نيشاپور، تهران، ورامين او بيا له دې ځايو څخه بخارا ته تللی دئ او په توركستان کي يې ډېر عمر په يو جهان سوز و ګداز کي تېر کړی دئ[5] د ترکستان په مشهورو ښارو بخارا او سمرقند کي يې پنځوس کاله په يوه اوږد انتظار او فراق کي پای ته رسولي دي[6] بيا نو په دغه غربت او مسافرت کي بوډاتوب او سپين ږيرتوب ته رسېدلي، نور حالات يې نه دي ښکاره.

اشعار او افکار :

عبدالرحيم يو مرتب او مردف دېوان لري چي تقريباً په (۳۰۰) مخو کي تخميناً زر مردفي غزلي لري او ټول ابيات يې تقريباً شپږ زرو ته رسيږي، مګر کوم دېوان چي زموږ لاسو ته راغلی دئ، متاسفانه د سر او آخر پاڼې نه لري[۷] د دې دېوان متن په جلا خط ليکل سوی دئ، او د غزل پر سر يې ليکلي دي (وله ايضاً مد ظله تعالی) لکه چي د ده په ژوند ليکل سوی دئ او پر حاشيه باندي يې څه نوري غزلي په بل خط ليکلي سويدي، لکه پخپله د شاعر خط چي وي، عبدالرحيم په پښتنو شاعرانو کي د رحمان بابا د مکتب يو رکن دئ، دی طرفدار د ساده ويلو دئ. په کلام کي يې هيڅ تکلف نسته.

عبدالرحيم يو خوږ وينا مقتدر شاعر دئ د شعر ژبه يې خورا سليسه، روانه او خوږه ده. دی هيڅکله په تلازم کي د طبيعت د دائرې نه وزي. د عبدالرحيم اشعار او غزليات لکه په پارسي کي د حافظ دغسي خواږه، روان او د سلاسته ډك دي.

عبدالرحيم په اصل کي د وطن د علمي خلکو څخه و، ده غالباً د وطن متداول علوم، لکه : فقه، تفسير، صرف، نحو، فلسفه، منطق ويلي دي[۸] په دغه سبب د ده په شعر کي قوت، متانت او علمي رنګ ښکاره دئ. د عبدالرحيم په شعر کي عشقي، اخلاقي، اجتماعي او فلسفي اقسام ټول سته.

د وطن محبت د ده د شعر يوه خاصه مميزه ده. عبدالرحيم د روحاني دنيا سره ټينګه علاقه لري، غالباً له مادياتو څخه تښتي، له دې جهته د ده په اخلاقي شعر کي د غزلت او تجرد، صبر او د نفس د اصلاح خوا ډېره ده، دی په دنيا کي د روحاني خوند او ذوق قائل دئ، د جد و جهد او کوښښ تبليغ هم کوي.

د عبدالرحيم په شعر کي رباعي، غزل، قطعې او د شعر اکثره اقسام سته، دی لکه رحمان او خوشحال په اوله درجه شاعرانو کي ګڼل کيږي، اخلاقي او عرفاني مضامين ډېر وايي، مثلاً :

منـبر وسوځه په اور کي شراب وڅـــښه
درته وايم خو د زړونو آزار مــــــه کــــړه
په ظـــاهر شکستــګي فايده نه کاندي
په باطن کي ځان د هر چا خدمتګار کړه
ناخــــوانده له کـــــوره مه وزه که مـــرد يې
چي دي نه بولي، مېلمه د خـــپل پلار مه سه
که ته غــواړې چي په دوه کونه عــــزيز سې
بې له خـــدايه د مخــلوق طــــمع دار مه سه

د خاموشۍ تلقين په دې ډول برهان سره کوي :

همېشه بې حــلق شــيرين لـــــــکه نبات وي
چي بسته يې خـــوله په مـــهر خــاموشي کړه

د نورو د زړه زهيرولو بدۍ داسي ښيي :

که هـــزار ځــله تقوا پرهــــــــيزګاري کـــړې
ښــه دي نســـته چي مـــدام دل آزاري کــړې

دا خبره چي انسان بايد پر ځان ويسا يعني پر خپل نفس اعتماد ولري، د اوسنيو اجتماعي ترقياتو او اخلاقو اساس ده، عبدالرحيم دا پر ځان ويسا په داسي ډول بيانوي :

چي د پلار او د نيــکه په نوم خــوښــــــيږي
لکه سپی ښــادي په محــض استخوان کړي
دا يې واړه بې عـــــــــقلي ده که پوهــــــيږي
چي هـــــــوس د نورو خلـــــکو په بيان کړي

د سعي او عمل تلقين داسي کوي :

د هر چـــــــــــا برخــــه له خـــــــپله برآورده

چي کار ډېر کا و هـــغه وته مـــزد ډېر ســـــو

د عبدالرحیم عشقي اشعار هم ډېر تاوده دي، خپل مشتعل احساسات په شعرکي داسي ښکاره کوي او د سهار نسیم خپل وطن ته داسي رالیږي :

| | | |
|---|---|---|
| سحر باده ! د اشنا پر مقام ورسه | | ځما دپاره پکښې وګرزه کوتر سه |
| لوی وکم چي وي ټول ووینه په سترګو | | په احوال سره د هر یوه خبر سه |
| هر یوه چي زما له حاله پوښتېدو وې | | په ژړا ورته په اوښکوکي احمر سه |
| که خبري زما دپاره درته وکړي | | مخ راکوزکړه زما و لوري ته چپر سه |

د نسیم په زباء دي ښه نه سي "رحیمه"
د دلـــدار پر لور پخـــــــپله قلـــندر سه

له دې لاندي بدلو څخه د عبدالرحیم دکلام سلاست او رواني او د میني تاوده احساسات او د عشق د دنیا سوز او ساز ښه څرګندېږي :

| | | |
|---|---|---|
| راسه راسه ستا تر دواړو سترګو جار سم | | هم تر مخ دي پروانه غوندي نثار سم |
| د زړه ولي مي په تا پسې پرې کېږي | | راته وګوره قربان دي تر دیدار سم |
| شېریني به دي د وصل هېره نه کړم | | که هر څو غربت زده او خوار و زار سم |
| چي دي خیال په زړه کي راسي دننه | | اور مي واخلي په نارو او په کوکار سم |
| د اختر په ورځ که مخ راته څرګندکړې | | قرباني به دي په مینه د رخسار سم |
| جنتونه پر خاطرکله را دروي | | چي په شوق ګډ ستا د حسن په ګلزار سم |

ستا وصال په بخاراکي "رحیم" بیا موند
صــــــدقه تر ټوله مځــــــکه د بخار سم

| | | |
|---|---|---|
| بهار راغی خلك درومي و صحرا ته | | رنګا رنګ ګلونه ډېر د غره و خوا ته |
| لوی اوکم دي پله ګډ ښادي هوس کا | | ما له غمه ملا تړلې و ژړا ته |
| هر سړی یوکار لري مشغول په کار دئ | | د مجنون دي دواړه سترګي و لیلا ته |
| د عاشق له خپله یاره سروکار دئ | | بې له یاره کله ګوري و بل چا ته |

اویاکاله د "رحیم" په عشق کي تېر سوه
عقل، هـــوښ یې مـــدام وي و دلربا ته

**د وطن بېلتون :**

دا بدله عبدالرحیم په بخاراکي د خپل ګران وطن په یاد ویلې ده :

| شايسته کندهار ډېر ډېر يادومه[۹] | | نه هېرېږي که هر څو يې هېرومه |
|---|---|---|
| خصوصاً د ارغنداو باغ او ولو ته | | زړه مي غورځي بې طاقت سم ندرمه |
| سرپوزه او کاغانك چي پر زړه راسي | | اور مي واخلي پر ځان پيك وشورومه |
| کوکران او ګنديګان د خدای په حکم | | څه فيضونه باندي اوري کې شمېرمه |
| سرپوزه چي لو وياله پکښې بهېږي | | د ويل بږغ يې مدام پر زړه لړمه |
| يو دم کښېنه په ايوان د چلزينو کې | | تماشا وکړه چي زړه دي سي بې غمه |
| څه فيضونه چي له دې ځايه زه وينم | | چي له غيبه باندي تل اوري هر دمه |
| ما هم ياد کړه که دي خدای کړي برخه لويه | | چي غريب په بخارا کې يم له غمه |
| نيازمن درو له پر زړه نارې وهنه | | چي دي ورسي ناره پر درست عالمه |

دغه خوار "رحيم" چي دا اشعار بيان کړه
غـــــرض دا چي قـــــدردان وژړومه

لمن ليکونه :

(۱) شايســـته کـــــــندهار ډېر ډېر يادومه
نه هېرېږي کـه هــر څـــــو يې هېرومه

(۲) پر زاړه ښـــــار مي راوړای قــــدمونه
د فـــــراق نارې مي وکـــړای په کوکار
هــــغه ښــه ياران چي ما لــــيدلي ونه
پرې پوهــــــېږم يو به نه وي په قــــرار

(۳) ستا قسمت سو بخـــارا عــــبدالرحيمه
عزيزانو اختـــــيار ټولو ښــه بولان کړ

(۴) لــس کلن له ملـــــکه ووتم بېرون ســـوم
په ســـراغ د مهوشانو ځــګرخون سوم

(۵) بخارا او ســــمرقند مي زړه زخـمي کړ
غــواړم پاځـــم په زيارت د کـــــندهار

(٦) پنځوس کاله زيات وکم وسوه رحــيمه
په سراغ د اشـنا ناست په ترکستان يم

(۷) د پېښور د اسلاميه کالج په کتابخانه کې د دې دېوان مکمله نسخه سته.

(۸) صــرف و نحـــوه، فلســـفه، تفســـير او فقه
ټول مي هېر کړه چي مي زړه په عشق خبر سو

(۹) په دې بدله کې د کندهار شاوخوا سرسبز کلي ارغنداو او سرپوزه، کاغانک، کوکران، ګنديګان، چلزينه ستايل سوي دي.

# احمدشاه بابا

اعلیحضرت احمدشاه بابا د زمان خان زوی د دولت خان لمسی د سرمست خان بن خواجه خضر بن سدوکړوسی و.
دی په خټه سدوزی او د باميزو پښتنو له پښته و، اعلیحضرت احمدشاه بابا د پښتنو یو فاتح او برمیالی شهنشاه او د منځنۍ آسیا لوی بریالی دئ، چي د (۱۱۳۵هـ) په حدودو په هرات کي زوکړی، او پلار او اکاګان يې د هرات پاچهان وه، اعلیحضرت احمدشاه بابا په (۱۱٦۰هـ) د افشار نادرشاه تر مرګ وروسته کندهار ته راغی، او د شېرسرخ په کلي کي د پښتنو مشرانو په پاچهي وټاکلی، احمدشاه بابا پخپله پاچهي کي پښتانه سره یو کړه، او د افغانستان طبیعي حدود يې فتح کړه، په بخارا، خراسان، او هند کي يې ډېر فتوحات وکړه، په خراسان کي يې شاهرخ میرزا پاچا کی، او د بخارا د پاچا شاه مراد بېګ سره يې روغه وکړه، نه واره هند ته ولاړ او هلته يې لوی لوی فتوحات وکړه.
اعلیحضرت احمدشاه بابا د پښتونوالي په دود د ډهلي تر نیولو وروسته د هغه ځای مغولي پاچا هلته پر خپل حال پرېښود، په (۱۱۷٤هـ) کي چي يې د پاني پت پر ډګر د تقریباً لسو لکو مرهټانو سره جګړه وکړه، په دې جنګ کي اعلیحضرت احمدشاه بابا او پښتانه چي تقریباً (۸۰) زره تنه وه بریالي سوه او تر دوه لکه پوري دښمنان يې مړه کړه، بیا هم احمدشاه بابا د ډهلي تخت شاه عالم مغولي ته وسپاره او خپل وطن ته فاتح راغی.
اعلیحضرت احمدشاه بابا یو مدنیت روزونکی او عالم او متدین پاچا و، د کندهار او د تاشقرغان ښارونه ده جوړ کړي دي، د سند د حیدرآباد ښار هم د ده نائب الحکومه جوړ کړ.
احمدشاه بابا د اوسني افغانستان د سلطنت مؤسس دئ، چي دا مملکت يې په خپله توره او تدبیر سم کی، تر (۲٦) کالو پاچهۍ وروسته د جمعې په شپه ۲۰ رجب (۱۱۸٦هـ) وفات او د کندهار په ښار کي ښخ سو[۲].

**ادیب او شاعر احمدشاه بابا :**
تر اوسه خلك احمدشاه بابا د منځنۍ آسیا یو نامور بریالی او معروف شهنشاه ګڼي، او دی د توري او مېړاني خاوند بولي، چي په دغو اوصافو يې ځکي نیولي او د افغانستان د شاهنشاهۍ لومړۍ تیره يې کېښېښوه، مګر احمدشاه بابا لکه د آسیا دمخني فاتحین (چنګېز، تېمور، نادر) یوازي پخپلو عسکري سوقیاتو او د توري په برکت جهانګیري نه ده کړې، بلکي ده د خپلي توري سره قلم او د خپلي سربازۍ او توریالیتوب سره علم او فضیلت، تقوی او ادب هم ملګري درلوده، ځکه نو دی د پښتو ژبي یو زبردست ادیب، یو عالم او عادل پاچا، لوړ شاعر، او اجتماعي مصلح او روحاني مقتدا هم ګڼل کېږي.
اعلیحضرت احمدشاه بابا د شعر یو مدون او مردف پښتو دېوان لري، چي په (۱۳۱۹ش) پښتو ټولني نشر کړی دئ او تر (۳۰۰۰) بیتو پوري رسېږي، دا دېوان بدلي، قطعات، رباعیات او نور د شعر اقسام لري او د ده په شعر کي د ده لوړ فکر او هسك همت او د پښتونوالي جذبات او د شاهنشاهۍ جګ افکار، د بخښني او ښندني هسك عواطف، د توریالیتوب برجسته احساسات د جهانګیرۍ د شجاعت عزم د ایمان او عقیدې ټینګار، د عشق سوزان دردونه، د مینې د دنیا عجیبي پېښې ښکاره دي.
احمدشاه بابا د توري پر میدان یو بریالی او ننګیالی سرباز دئ، د پښتونوالي پر ډګر بشپړ پښتون دئ، د سیاست او مشرتوب له پلوه، د خپل عصر لوی سیاسي مشر او فاتح دئ. په اجتماعي دنیا کي تکړه مورالیسټ Moraliste یعني اخلاقي شاعر دئ.
ویل يې ډېر ساده مؤثر دي، شعري صنایع او بدیعي فنون هم د ده پر وینا اثر لري، د تصوف له دنیا څخه ډېر ږغېږي، شاعري

---

[۲] د احمدشاه بابا سوانح له سراج التواریخ او تاج التواریخ او تتمة البیان او خورشیدجهان او نورو څخه خلص سوه، ځیني مؤرخین د ده عمر (۵۰) کاله ښیي.

يې د تصنع او نمايش له پاره نه ده بلكې د زړه ږغ يې دئ، تشه وينا نه ده پخپله وايې :

بې له عشقه شعر وايې
له ويلو شــــــرم ته كه

احمدشاه بابا په شعر كې د رحمان بابا مكتب ته نسبت لري، وينا يې له تعقيد او ابهامه تشه ده، خپل لوړ افكار او د سوي زړه ږغ په ساده او خوږو الفاظو څرګندوي، ګران تشبيهونه نه لري، له وينا څخه يې پښتونوالي ښكاره دئ، د تصور او تخيل په دنيا كې د پښتونوالي تر حدودو نه وزي. اوس به موږ د ده د وينا ځيني ټوټې تاسي ته در وړاندي كو:

**د وطن مينه :**

احمدشاه بابا د خپل وطن سره دومره مينه لري، چې په لږو شاعرانو كې ليدله كيږي، لكه ده چې عملاً هم خپل وطن ګران ګاڼه او دغه خاوره يې د ټولو افتخاراتو او ادبي او عمراني او اقتصادي چارو مركز كړه، دغسي هم قولاً خپله مينه ستايي.
احمدشاه بابا د شهنشاهۍ د شوكت او عظمت سره د هندوستان په ځنګلو كې پروت دئ، د ده بريالى لښكر د ډهلي ښار فتح كړ، او د پښتنو پلار په برم او جلال ور داخل سو، مګر په دې حال كې هم د خپلو غرو خوږ نسيم نه هېروي، او د زړه ګل يې بې له دې وږمې نه غوړيږي.

د زړه ګل به مي له خاوروكا سر پورته
كه نســــــيم له كوهســــــتانه وزېده

په دې رباعي كې هم خپل وطني احساسات ښه څرګند كړي دي :

د زړه فــــرياد مي له جـــدايۍ
اور مي ورك نه سي د آشـــنايۍ
چي پر وطن وي زړه څه قرار وي
يم بې طاقــــــــته په پردېــسۍ

د احمدشاه بابا دا لاندينۍ وطني بدله د يوه دېوان قيمت لري او د پښتو په وطني ادب كې خورا مهمه ده :

| ستا د عشق له وينو ډك سوه ځګرونه | | ستا په لاره كي بايلي ځلمي سرونه |
|---|---|---|
| تا ته راسمه زړګى ځما فارغ سي | | بې له تا مي اندېښني د زړه مارونه |
| كه هر څو مي د دنيا ملكونه ډېر سي | | ځما به هېر نه سي دا ستا ښكلي باغونه |
| د ډهلي تخت هېرومه چي را ياد كړم | | ځما د ښكلي "پښتونخوا" د غرو سرونه |
| د رقيب د ژوند متا ع به تار په تار كړي | | چي په تورو پښتانه كا ګزارونه |
| د "فريد" او د "حميد" دور به بيا سي | | چي زه وكاندم پر هر لوري تاختونه |
| كه تمامه دنيا يو خوا ته بل خوا يې | | زما خو خوښ دي ستا خالي تش ډګرونه |

"احمدشاه" به دغه ستا قدر هېر نه كا
كه ونيسي د تمام جـــــهان ملـــكونه

په دې بدله كي تاسي وګورئ چي زموږ ښاغلي پلار د شاهنشاهۍ ټوله ښېګڼې او خوندونه تر خپله وطنه پوري هېروي، او د شېرشاه سوري (فريد) او سلطان حميد لودين د پښتونوالي روڼې دورې پخپل همت او وطنخواهي بيرته جوړوي.

**ملي وحدت :**

احمدشاه بابا ډېر مدبر او هوښيار سړی و، دی پوهېدی چي د پښتنو لوړتيا په ملي وحدت اړه لري، د پښتنو تاريخ يې کتلی او دا يې ځني را ايستلې وه، هرکله چي پښتانه سره يو سوي دي، نو يې هري خوا ته خپل د برم او جلال توغ جګ کړی دئ، نو ځکه دا پوه او نوميالی پلار خپل ښاغلي ملت ته د ملي وحدت تبليغ کوي او وايي :

| | | |
|---|---|---|
| قافله د عشق راغلې لهکوم خوا ده<br>ټوله يو دي که غلجي دي که اودلي<br>چي عمل يې د نېکۍ وي مېړه هغه | | پر زړګي باندي مي سته کا څه غوغا ده<br>ښه هغه چي يې ښيښه د زړه صفا ده<br>که اغوستې يې ګدله د خمتا ده |

پښتانه دي ټوله لاس سره يوکاندي[۳]

چي مو نن غزا هر لوري شاوخوا ده

**د بري لار :**

احمدشاه بابا په ژوندون کي د ټولو لوړتياوو او بريو لار زيار او مښود ګڼي، لکه چي وايي :

بې زحمته راحت چيري مونده نه سي
د "احمد" ځکه پر هر لوري غـــــزا ده

احمدشاهه دلته جوړه سربازي ده
د لوړتيا خريدکوه له دې بازاره

احمدشاهه څو دي کار په لاس دي مټ کړه
حيف هغه چي په تېرکار موږي لاســــــونه

**حماسيات :**

احمدشاه بابا د پښتنو په دود لوړ لوړ حماسيات لري او لکه عملاً چي هم يو بريالی قوماندان و، په وينا کي يې داسي لوړ احساسات ښکاره دي :

راته يو دئ بحـــــــــــــروبر
که څـــه ســـــمه دئ که غـــر
په همت به يې تسخيرکړم
شــــــــاهانه په شـــــان وفر

په بربېښنا د توري ژوندکوه "احمده"
د بري جـولان پر لور د هــــــــر ديارکړه

په پښتونواله کي پت او ننګ هغه مقدسات دي، چي تل يې پښتون په سر ساتي، احمدشاه بابا د پښتونوالي پر دغه ښېګڼه داسي ټينګ ولاړ دئ :

---

[۳] ابدالي په پښتو اودل بولي دا د درانو زوړ نوم دئ، پښتو متل دئ : "د خدای داسي رضا ده، چي اودلي ودوي ترين يې ورا ده".

| پر ننگ مړ خو څه مړ نه دئ<br>لاس به وانه خلم له ننگه<br>چي سر پرې کړي "احمدشاهه" | | د بې ننگه ژوند جفا ده<br>که په ننگ پاته دنیا ده<br>د هغو مینه رشتیا ده |
|---|---|---|

په دې بدله کي زموږ د پلار حماسي او رزمي افکار ښه برېښي :

| چي بر کړی مي خدای لاس پر رقیبانو<br>چي د هند د ملکو فتح مي روزي سوه<br>پر دا کړي داد دي خدای نه سي ناراضه<br>چي ځما د ولایت فتحه روزي سوه | | ترو به زه د هند پر لور په تماشه ځم<br>نور اېران لره په توغ په نغاره ځم<br>تر نگین مي اېران لاندي شاهانه ځم<br>ترو به څه د یار له نازه کناره ځم |
|---|---|---|

**اخلاقيات :**

د احمدشاه بابا د وینا اخلاقي برخه هم خورا مفیده او ښه ده، مثلاً د شاهنشاهۍ د برمه سره هم ځان نه ورکوي :

یاره زه خـو هغه ســـتا د درگدای یم
څه سو نن که احــمدشاه درانی یم

تکبر داسي غندي:

تکـبر دئ له شیـــطانه مه يې نغوږه
چي په کبر به سر وچ کړې لکه لوخه

عجز داسي ستايي :

کمیني شکســـتگي ستا کمال دئ
خــــودبیني په بډايي گنه گــــــــناه

د وفا ضرورت داسي بيانوي :

مــرگی ښــه دئ په دنیا کي
نه چي څــــوك سي بې وفا
سر په تېغ پرېکړی ښه دئ
تر بې پتـــه په دنیـــــــــــا

رشتیا په څه ښه ډول ستايي :

په رشتيني بازار تل قلـــپي کـــــوټه ځي
سخ د هغو چي په دې بازار مخ سپین کا

**اجتماعي پېرزوینه :**

په اجتماعي تعاون کي احمدشاه بابا داسي پاخه افکار لري :

| | | |
|---|---|---|
| چي د يار په درد رضا کا له اخلاصه<br>يو د بل په درد او غم چيري خبرېږي<br>يار هغه دئ چي په غم د يار شريك وي<br>يار چي ښه وايي له ياره هغه يار دئ | | په دنيا کي دغه هسي کار د مرد دئ<br>مګر هغه چي په درد يې بيا همدرد دئ<br>چي په غم يې غمجن نه، هغه نامرد دئ<br>کله يار دئ چي له ياره يې نبرد دئ |

"احمدشاهه" بې پتي ننګ کړه يارانو
چي پر پټ د يارئ سر ښندي اوس فرد دئ

**تصوف :**

د احمدشاه بابا د وينا لويه برخه تصوف دي، مګر دا تصوف يو راهبانه منفي تصوف نه دئ چي سړی به ضرور دنيا پرېږدي، او د رهبانيت په ګوټ کي به ميشتېږي، بلکي د احمدشاه بابا د تصوف افکار له هغه کانونه تاوده سوی دي، چي د حضرت شيخ احمد فاروقي کابلي مجددي الف ثاني ټوله عرفاني او سلوکي اصلاحات پکښې سته. احمدشاه بابا د ميان فقيرالله جلال آبادي ثم الشکارپوري لوړ جناب ته ارادت درلود او د تصوف درس يې له ده څخه لوستی و، د دوی په تصوف کي جهاد او عمل او د خلکو هدايت ډېره برخه درلوده، نو ځکه احمدشاه بابا يو مجاهد او مصلح او متشرع صوفي و، د ده په ديوان کي ډېري د تصوف خوږې بدلي سته، چي دلته يو څو بيته راوړو:

د انسان فطرت :

دا ځـــــما د صورت خټه
په څـــــلور عنــــصره پټه
که څلور عنـصره واخلې
پخپل څېر ده دا کټ مټه

**د انسان د اصلي وطن ياد :**

چي د روح په روڼا ورك ســــــــوم
ځــــــــکه مــــا لــــــــــيدلی يار و
"احمدشاه" اوس که يك تنها سوې
ســــــــــتا وطن د يار کـــــــــنار و

**علم ته تشويق :**

احمدشاه بابا عالم پاچا و، نو ځکه په خپله وينا کي ملت ته د علم ډېر تشويق ورکوي، مثلاً :

| | | |
|---|---|---|
| څو ډېوې د علم دي همېشه بلي<br>دا يقين علم له ځانه سره مله کړه | | د غفلت په تياره څوګرزې عجوزه<br>د همت په وزر الوزه، الوزه |
| له څلور خوا به دُر درته ځليږي<br>روح له علمه رڼا اخلې هله زده کړه | | که د علم روڼ څراغ ته درته بل کړې<br>"احمدشاهه" چي بدخوی په ښه بدل کړې |
| علم ګوره څه څرګنده لوی درياب دئ<br>دا د علم درياب هر چيري محيط دئ | | بيا هم دی رابهېدلی په څو باب دئ<br>علم زده کړه چي د علم لوړ جناب دئ |

**بديعي صنايع :**

د احمدشاه بابا کلام بديعي صنايع هم لري، چي يو دوې نمونې يې دا دي :

**طباق :**

زړه مي تورو زلـــــــفو بند کړ
اوس ارمان د سپين رخسارکړم

**تجنيس تام :**

ستا پر مخ ګوره اوربل دئ
ځکه اور بل په کـــوګل دئ

د احمدشاه بابا يو څو بدلي :

| ګوره بيا په سره ګلزارکي | | لاله رنګ په سپين رخسارکي |
|---|---|---|
| لونګين يې تل په غاړه | | بلبل مست کا په چيغارکي |
| هوسيږم ورته ګورم | | خزان سوی په ناتارکي |
| د وصال نوبت مي دا دئ | | نن د ګلو په بهارکي |
| يار مي ګل او ګلبدان دئ | | لکه زرکه په رفتارکي |
| مخ يې لمر غوندي ځليږي | | زلفي مشك دي په تار تارکي |
| رنګا رنګ ګلونه ډېر دي | | د بلبل عشق په ګلنارکي |
| تا چي حسن د ګل واخيست | | زړه به څه وي په قرارکي |
| څه علاج يې څه طاقت دئ | | چي شها سي په سينګارکي |
| همېشه يې روزګار دا دئ | | مين زړه نيسي په ښکارکي |
| لېندۍ وروځي بانړو غشی | | عاشق ولي په کنارکي |

ناري وکړه "احـــــــمدشاهه"
د روغ خوی نسته بيمارکي

| څه سوه زه که په ظاهر صورت زهير يم | | چي د خپل يار نظر سته په زړه امير يم |
|---|---|---|
| بدايي هرګز پخپله لويي نه کړم | | همېش ستا د قدمونو دامنګير يم |
| که مي برق د سپيني توري بيا بربښنا کړي | | ستا په مهر په هر لوري عالمګير يم |
| و بل لوري ته مي هيڅ مخ مخی نسته | | ياره زه چي ستا و ور ته تل فقير يم |

د رقيب له لاســـه نه ژاړم و تـــــا ته
د بېلتون په توره شپه احمد په وير يم

# پیرمحمد کاکړ

دکندهار د خوا له پښتنو شاعرانو څخه و، چي په شعر کي يوه خاصه شېوه لري. پيرمحمد کاکړ دئ، چي د (۱۱۲۰ هـ) په حدودو کي په ږوب کي پيدا سوی او عمر يې په کندهار کي تېر کړی دئ.
پيرمحمد د احمدشاه بابا د دربار يو نامي او عالم او محترم سړی و د خپل اصلي ځای څخه يې د کندها ښار ته هجرت کړی او د شهزاده سلېمان د احمدشاه بابا د زوی استاد و، په (۱۱۹٦ هـ) د ده د شعر دېوان تمام سوی او يو د پښتو ژبي لنډکی ګرامر يې د معرفةالافغاني په نامه هم په (۱۱۸٦ هـ) هغه وخت کښلی دئ، چي د ده دغه شهزاده شاګرد په دغه کال د احمدشاه بابا تر مرګ وروسته په کندهار کي موقتاً پاچا سوی و.
وايي پيرمحمد کاکړ يو کتاب د پښتنو په تاريخ کي ليکلی و، مګر د دغه کتاب نسخه اوس نسته، اما دېوان يې چي تخميناً (۵۰۰۰) بيته کيږي خوشبختانه پاته دئ او دا د پښتو ژبي د اولي درجې شاعرانو له آثارو څخه شمېرل کيږي، چي هم د معنی له رويه متين او قيمتي دئ او هم يې د يوه هنري اثر په حيث په پښتو آثارو کي لوړی مقام نيولی دئ، پيرمحمد ځان ته يو خاص سبك لري چي د خوشحال خان د کلام رواني او سلاست او د رحمان بابا د وينا معنوي ښېګڼي او روحانيت او د حميد موشګافي او نازکخيالي يې ټوله پخپل هنر کي سره يو ځای کړي دي، دی نازکخيال مبتکر شاعر دئ، مګر داسي نه دئ لکه شيدا خټك چي صناعتي او بديعي ښېګڼي په فارسي يا هندي تعبيرونو کي پېچي او د پښتو ژبي د بيان خپل مزيت نه ساتي، بلکي پيرمحمد نوي فکرونه په داسي ساده او د پښتو ژبي له بياني جوړښته سره سم بيانوي، چي د ژبي نواميس ساتي، مثلاً د صوفيانو دا فکر و، چي انسان له يوه الهي مبدا څخه را جلا سوی او د بېلتانه يوه دوره تېروي څو بيرته هغه مبدا ته وصل سي، دا فکر په دري ادب کي مولوي بلخي ښه روزلی دئ، دی وايي چي (نی) کله چي له نيستانه جلا کيږي نو د شکايت نارې د بېلتانه په دنيا کي وهي، د ده د مثنوي لوړي بيتونه همدغه قصه بيانوي، لکه چي وايي :

بشـــنو از نی چون حــــکايت می کـــند
وزجـــــدائيها شـــــــکايت می کـــند
کـــز نيســـتان تا مــــــــــرا ببريده اند
از نفـــــــيرم مـــرد و زن نالـــــــــيده اند
هر کس که او دور ماند زاصل خويش
باز جـــــــويد روزګار وصـــــل خـــويش

په پښتو او فارسي ادب که دغه فکر ډېر وسيع سوی او د ادب يوه مهمه برخه يې نيولې ده، پيرمحمد دغه مطلب په يوه داسي ژبه بيان کړی دئ، چي هم صوفيانه رنګ لري او هم اجتماعي خوا لري، دی وايي :

بېلتانه په غم شريك کړم د غمجنو
د هـــــــــــر چا په غاړه ژاړم لــــکه نی

په دې بيت کي د نې د ژړا صوفيانه تعبير هم موجود دئ، چي له اصلي مبداء څخه بېلتون او ژړا ده، مګر په دوهم مصرع کي شاعر د يوه همدرد انسان په ډول د ټولو غمجنو سره د دوی د درد د سکينديې له پاره ورسره ژاړي او په اجتماعي او انساني دردونو کي د همدردۍ پوره برخه اخلي، خو دغه دوه مطلبه په يوه بيت کي په ساده تعبير ادا سوي دي، مګر بديعي ښېګڼي هم لري او هغه دا دي، چي په پښتو کي غاړه دوې معناوي لري، حقيقي معنا يې حلقوم ده، مګر مجازاً د نل د وهلو خاصه طريقه هم ده، چي نی وهونکی وايي : "نل ته غاړه ور واچوه" دلته نو د نی وهونکي غاړه او د نل وهلو غاړه او د يوه ژړاند مهجور انسان غاړه چي ژړا ځني راوزي ټول په دغه يوه بيت کي ادا سوي دي، چي د شاعر د تعبير او تخيل او ابتکار کمال ځني معلومېږي، د پيرمحمد شعري تعبيرونه اکثراً طبيعي او له يوه واقعيته څخه راوتلي دي، مثلاً د معشوقې خوب او پر پلنګ را اوښتل په داسي طبيعي تشبيه سره بيانوي :

محبوبا پر پلنګ واوښته له خوابه
که هوسۍ وه د بهار پر ګلو رغښته
د معشوقې والي په داسي لطیفه تشبیه سره ستایي :
دا شـــــبنم د ګل په پاڼو پوري یخ ســـــو
که په غوږ د ګلرخ پوري سپین والي دي
دلته د شبنم سپین والی او د محبوبا د باړخو سوروالی د تجاهل عارف په ډول د ګل او د شبنم د یخي سره تشبیه سوي دي، دا تشبیه هنري ارزښت ښووي، مګر د پښتو بیان یې هم خوږ او د ژبي له اصلي جوړښته سره برابر دئ، یعني لفظ یې تر معنی نه دئ قربان کړی او معنی یې هم په ښه ډول ادا کړېده.
پیرمحمد د خپلي زمانې دمخه تېر سویو شعراو باندي دقیق نظر درلود، او داسي ښکاري چي ډېر د رحمن او خوشحال خان معتقد و، په یوه غزل کي وایي :
که هر څـــوك وايي نازك شاعران شعر
ولي دوی ګــــڼي معجز د رحـــــمان شعر
هیڅ تر شعر د رحمان به څه کـــــم نه وي
و منصف ته د ختك خوشحال خان شعر
نو له دې جهته د پیرمحمد په دېوان کي ډېري غزلي سته، چي د رحمن یا خوشحال خان په پیروي ویلي سوي دي، مثلاً رحمن بابا وايي :
تا چي مخ د پري ســــترګي د آهـــو کړې
نه پوهـــیږم چي آهـــو یې که جـادو کړې
پیرمحمد وايي :
ته چي ښکار په برندو سترګو د آهو کړې
نه پوهــــــیږم دا هـــنر دئ که جادو کړې
د خوشحال خان د یوې غزلي مطلع دا ده :
که زه نه وای تا به ځـــان لره بلل څـــــوك
په پلـــنګ به دي دا هسي درخـــتل څوك
پیرمحمد داسي وايي :
که زه نه وای عشـــق به تا لره بلل څـــوك
پر بل اور به دي د حســـن کـــــړول څوك
په لومړیو بیتو کي د رحمن او پیرمحمد د تخیل لار یوه ده، خو د پیرمحمد په بیت کي برندي سترګي یو ښتني خاص تعبیر دئ، چي د نظربازۍ له یو خاص حاله څخه حکایت کوي، اما په دوهمو بیتو کي د خوشحال خان تعبیر عریان او لوڅ او رندانه دئ، مګر د پیرمحمد تعبیر لږ څه اخوندي رنګ لري او د حیا مراتب په عشق کي ساتي، مګر که شعر د انسان د واقعي احساساتو نمایندګي کوي نو د خوشحال خان شعر په شاعرانه نظر ډېر ارزښت لري، د پیرمحمد اشعار کله کله د خپلي زمانې اجتماعي اوضاع هم څرګندوي او شاعر د دغو اوضاعو انتقاد  هم لري، مثلاً د غریبانو حال په خپله زمانه کي په دې بیت کي د اشارې په ډول یادوي :
څو به سنګیندلو ته ژړا کړې پیرمحمد ه!
غـــــور چي هیڅ نه سي په دا دور د غریب
د ده په وخت کي هم لکه چي ځیني نالایق خلك لوړو مرتبو ته رسېدلي وو، چي په دې بیت کي ډېره نازکه اشاره ورته کیږي :
دا فلك که څه سفله عالي منصب کا

بیا هم رغړي پر شېوه لـــــکه کرکنړه
داسي معلومېږي چي پیرمحمد د خپلي زمانې د خلکو څخه یا دا چي له خپلو روزلو شاګردانو څخه ډېره جفا لیدلې وه تر دې اندازې چي په اخیرکي و سختي ښرا ته مجبور سوی او وایي :

در پر در دي کړم غــــفاره در پر در سې
شرمنده هم تر همزولو په محــــــشر سې
نه مي حق و ته غوړ نیسې نه حق اورې
که به حــــق د معلم وي کــــور وکـــر سې

داسي معلومېږي چي پیرمحمد ډېر عمر درلود او سپین ږیري توب ته رسېدلی و، پخپله وایي :

ښه موسم د شباب تېر پر پیرمحمد سو
بوالــــــــهوس هــــــنوز هوا دګلو مل کا

د پیرمحمد د ژوند دوره له ۱۱۲۰ هـ څخه ټاکلای سو، ځکه چي دی د احمدشاه بابا د وفات په کال (۱۱۸٦ هـ) سپین ږیری و او تر (۱۱۹٦ هـ) دمخه وفات سوی دئ.
د پیرمحمد د اشعارو یو څو نمومې :

**رباعي**

موږ له هیواده تنـــها راغلي یو
د بڼ توتیان یو په دام وتلي یو
غـــــمازه ظلم راباندي بس کړه
د ښـــو یارانو فــــــراق نتلي یو

**غزل**

| | | |
|---|---|---|
| هسي کښېوتم د زلفو په کمند | | چي خلاصی مي ځني نه سي په هیڅ پند |
| د جفا په تېغ مي قتل معلومېږي | | خپلي ناړي راکوي د وینو خوند |
| ما به حال و یار ته وې که اغیار نه وای | | ولي خار دګل له ښاخه سو پیوند |
| زه له درده همېشه پرله پېچه سم | | مار د زلفو یم وهلی بند پر بند |
| مردمك مي د دلبر پر لبو وښت | | پر سکروټو دانه وسوه د سپند |
| د هجران خواري مي تل پر زړه تېرېږي | | هیڅ په وصل د یار نه سوم ارجمند |

حاصل دا چي مین خوار دئ پیرمحمده !
چي دلـــــبر یې وي خـــــودرایه خودپســند

# محمدي صاحبزاده

محمدي صاحبزاده په کام څمکنی د میا عمر صاحب زوی دئ، میا عمر صاحب د پېښور په څوکنو کلي کي ښخ دئ، محمدي په پښتو شاعرانو کي د لومړۍ درجې آخر مقام لري. د ښه فکر خاوند دئ، د ده اشعار او ادبي طبع ډېره خوږه او ښه ده، محمدي صاحبزاده له داسي کورنۍ څخه دئ، چي پخپله خوا کي روحاني مقام لري، او خلك یې د ارادت په سترګه ویني، د ده د پلار زیارت تر اوسه هم د خاصو او عامو مرجع دئ. محمدي د کاظم خان شیدا معاصر او د ده له ملګرو څخه شمېرل کېږي، چي پسله (۱۱۵۰ هـ) د ده د شاعرۍ او ادب بړغ لوړ سوی، او په پښتو ادیبانو کي یې ښه مقام موندلی دئ.
کاظم خان شیدا د خپل دېوان په دېباچه کي دا زموږ شاعر داسي معرفي کوي: "او سبب د تالیف دا و چي مخدوم زاده عالي مقدار والاتبار محمدي سلمه الله خلف الصدق د شیخ الاجل ولي الاکمل میا محمد عمر دام برکاته طبع جیده لري، او سلیقه د سخن شناسۍ کامله، په دبدبه د سخن آرایي قصب السبق له همسرانو وړي، او په کوکبه د خوش سرایۍ مقدمة الجیش د همکارانو دئ، اکثر دواوین د اسلافو یې فراهم کړي دي او په مطالعه یې تفریح د قلب کوي".
په دې ډول محمدي صاحبزاده خپل معاصرین هم د قریحې په صفت او ادبي اقتدار مني.
**اشعار:**
د محمدي اشعار عموماً عشقي دي، د یوه ګرانبها او ډېر نادر دېوان خاوند دئ، چي نه موندل کېږي، فقط څو بدلي یې د مستر هیوز کلید افغاني موږ ته راساتلي دي. دا شاعر د خپل مبتکر فکر او ښې قریحې په زور، زاړه مضمون ته نوی رنګ ورکوي، لکه چي ده د زلفو یو زوړ مضمون چي د شاعرانو په ډېر استعمال بالکل مبتذل سوی دئ د یو فقهي تلازم په اثر دومره نوی کړی دئ، چي بالکل بکر او تازه ایسي، دی وایي :

ستا د زلفو درې ډېر ډېر کاږه سم کړه
لا د سپي غــــماز تعزیر نه دئ نصیب

محمدي په شعر کي د حمید مهمند پر سبك ځي او اشعار یې سلاست لري، محمدي هم په هغه تاریخي مشاعره کي چي د عبدالقادر خان په برخه کي مو اشاره ورته وکړه شامل سوی او د خپلي روڼي طبعي قوت یې پکښې ښکاره کړی دئ، هغه بدله چي په دې مشاعره کي محمدي ویلې ده، دغه ده:

دا سور اور دئ که څه نور دئ اوکه تاو د بېلتون هسي
لکه وړی چي مي وريت کړ په تڼاکو لړمون هسي
سپلني ځان سره لمبه کړ چي ترق وچاود په لوګي کي
زيست جدا له ياره څرنګ، څه په کار دئ ژوندون هسي
نه يوازي لاله ګل دئ، ډوب د سرو وينو په جام کي
ستا د غم وژلي واړه ځي ښخېږي ګلګون هسي
په لښدو دکړو ورځو، د ښو تېز ويشتيو
هغه يار مي زړه غلبېل کړ، چي يې ونيو زنګون هسي
ستا د سرو شونډو په نوم اخيسته عقل له ما لاړ شو
دا مستي نه د شراب شته او نه کيف د معجون هسي
که پاچا د وخت اقليم وي د اسمان دوره يې خوارکا
لکه ما غوندي به نه وي سر د غم په زنګون هسي
نه يې حسن ستا په شان و نه يې عشق زيات و له ما نه
د ليلی کيسه که شته ده په عالم د مجنون هسي
خط پر مخ د نګار راغی ښايست خپل بار ولېښ لاړ شو
اوس يې څه په ملا لولم د دې خط دئ مضمون هسي
په لمبه د آه و نه شو شين په هغه شان مدام دئ
ستا د غم بوټي په زړه کي چي ځما شو زرغون هسي
ومړ ستا په بېلتانه کي د ديدن په ارمان ګوره
"محمدي" غوندي لا بويه چي پيدا شو پښتون هسي

# شمس الدين کاکړ

د (۱۱۸۰ هـ) په شاوخوا کي دکندهار په نزدوکلي کي زېږېدلی او دکندهار ښار په شرقي خواکلچابات کي اوسېدی او هم هورې پس له (۱۲۳۸ هـ) وفات سوی او د دغه کلي په هديره کي ښخ دئ، چي قبر يې تر اوسه پوري خلك پېژني، شمس الدين يو پښتو دېوان لري، چي بيتونه يې (۵۰۰۰) پوري رسېږي او يو څوکتابونه يې هم ليکلي دي، چي يو له هغو څخه سراج الموتی نومېږي او په شعرکې غزل ډېر دئ، او مخمس، قصيده، رباعي، مثنوي او هر قسم بديعي اشعار هم لري، د شعر اکثره صنعتونه يې روزلي دي. داسي معلومېږي چي شمس الدين د خپلي زمانې مروج علوم لکه فقه، تفسير، حديث، رياضي او فلسفه او ادبي علوم لوستلي وو، ځکه چي دی په خپلو اشعاروکي د دغو علومو اصطلاحات يادوي، مثلاً د هندسې اصطلاحات په عشقي تعبير داسي ښيي :

نه يې ضـــلع قايمه نه زاويه سته
نو به څه سي رامعلوم د عشق حد

د شمس الدين دېوان په (۱۲۳۸ هـ) کال ختم سوی دئ، د شعر ژبه يې روانه، خوږه او ساده ده، مضامين يې عشقي او اخلاقي دي او ځکه چي دی ډېر عمر له وطنه په پنجاب او کشمير کي پردېس سوی دئ نو د وطن په يادکي ډېر موثر اشعار هم لري، دی اکثره شعري صنايع اداکوي، مگر د ژبې رواني او خوږوالی له لاسه نه باسي او وطني اشعار يې ډېر خواږه او اغېزه ناك دي، مثلاً وايي :

مدام ژړا کــــــړم په ناري ناري
يار مي يادېږي وهم کوکاري
د هند ځنگلي راته قفس سوې
ورکي له ما سوې د وطن لاري
د هـــــند هوا کړم خوار و حزين زه
له حـــــــــرارته يم اتشــــــين زه
ســــــــايه د زوزو د وطن غـــواړم
چي زړه ځنگ کړم په ترنجبين زه

کله چي په هندوستان کي مسلسل برساتونه راځي نو دی داسي خطاب ورته کوي :

د هـــــــند بارانه آهســـــته اوره !
يار مســـــــافر دئ درسرې ژغوره
د سايې گل وي په ناز لوی سوی
وتلی نه دئ هــــرگـــــز له کــــــــوره

د شمس الدين په اشعارو کي عشق او احساسات ځای سوي دي، دی په خپل شعر کي د زړهويني نغاړي او کله چي له ياره جلا کېږي داسي يو شعر وايي :

وخت د سحر دئ مرغان چغېږي
جـــرس آوازکا زړه مي ويلـــــېږي
ســــترگي غورځــــېږي باڼه رپېږي
د يار د تللو ســـبري کـــــــــېږي

شمس الدين په هغه دوره کي ژوندکاوه، چي د پښتنو د امپراتورۍ انحطاط په هندکي شروع سوی و، هلته پر پښتنو باندي هندي قوه غالبه سوې وه، مگر کشمير لا د پښتنو په لاس کي و، خو پنجاب سکانو نيولی و، شمس الدين دغه په غم لړلی منظر په خپلو سترگو ليدلی دئ او په يوه قصيده کې داسي شکوه کوي :

| | | |
|---|---|---|
| ربه ته پر پښتانه وکړې نظر | | په عزت دي وي د خپل خيرالبشر |
| د اسلام غيرت يې هسي له زړه ووت | | دکافر د لاسه گرزي در پر در |
| فراري په دا شان کړې سره جمع | | چي يو ځله سره سي شير و شکر |
| اتفاق صلاحيت يې کور په کور کړې | | چي به يو له بله بولي برادر |
| که ملتان وکه ډېره وه که کشمير و | | ځني ونيول سکانو په لښکر |
| پاچاهي يې منحصر سوه په درې ښهره | | دي کابل اوکندهار او پښاور |
| د هرات عالم له وهمه په فرار دي | | په هرکال باندي حمله وي د غجر |
| پېشينه خلکوگټلې ځني ولاړل | | ناخلفه مه سه لوی د چا پدر |
| يو له بله سره وژني ناقصان سول | | صبح و شام يې دئ په کورکي شور و شر |

شمس الدین په دې ډول د وطن پر خرابي او خانه جنګي باندي ژاړي، مګر د ده ژړا کوم اثر نه درلود، ځکه چي ټول هند نه بلکي پخپله د پښتنو سیمي هم د دوی د لاسه ولاړې.
د شمس الدین د کلام نمونه :

| | | |
|---|---|---|
| په ځیر ځیر چي مي و یار ته وکاته | | په دغو کتو مي کسي وواته |
| له کتلو به مي ولي دلبر بد وړي | | هر بلبل کوي وګل ته الواته |
| و عالم ته مي د میني راز ښرګند سو | | که هر څو مي په خپل زړه کي پټ ساته |
| چي د وصل په نعمت سره معمور و | | هغه کور مي نن ورځ هجر وناته |
| په خروړو سپیو سي د کور ساتنه | | رقیبان ځکه د یار په ور پراته |
| د هغې کوټې روزن د عرش له لوري | | چي پر کیږي د دلبر ننواته |
| مرګ د یار د څنګه ښه دئ نه بې یاره | | ستی ځکه کړي و اور ته پرېواته |
| روح مي هلته قبول کړی د عشق رنځ و | | چي زما غمګین قالب سره راته |

شمس الدین صورت به څه نیستان نه وي
چي تر زړه یې دغـــــه غشی وخـــــــاته

# رحمت داوی

رحمت په قوم داوی او د پښتنو شاعرانو د لومړۍ ډلي څخه دئ، چي د شاه زمان په وخت کي په قندهار کي اوسېدی.
رحمت ډېر سفرونه کړي او ډېر په کوهستان او کشمیر کي اوسېدلی دئ. په کشمیر کي د سردار عبدالله خان پوپلزي ملګری و او تر (۱۲۱۰ هـ) کال پوري یې ژوندون یقیني دئ.
د رحمت له آثارو څخه موږ ته دوه کتابه پاته دي، چي یو د ده د شعر دېوان دئ چي تقریباً دوه زره بیته لري. بل کتاب یې د لیلی او مجنون قصه په پښتو لنډ مثنوي کي ده، چي د شاه زمان د سلطنت په دریم کال یې نظم کړې او په (۱۲۱۰ هـ) کال کې تمام کړی دئ، چي تر پنځه زره بیته زیات دئ، ده په کوهستان کي دا مثنوي شروع کړ او په کشمیر کي یې د سردار عبدالله خان افغاني نائب الحکومه په نامه ختم کړ، د کتاب په سر کي داسي وایي :

| | | |
|---|---|---|
| غمو ملك راباندي تنګ کړ | | زړه مي ځکه دا آهنګ کړ |
| چي پښتو ليلی مجنون کړم | | ښايي غم له زړه بېرون کړم |
| په فارسي هر چا ويلې | | پښتو نه ده چا ليدلې |
| ځکه زه په پښتو ژبه | | دا قصه کړم عجايبه |
| پښتون هم خوښ باندي زړه کا | | او دعا و ماته وکا |
| سلطنت د شاه زمان دئ | | دی خاقان ابن الخاقان دئ |
| پلار نيکه يې پادشاهان وو | | دويه تاج د هر افغان وو |
| شکر شکر شاه زمان | | غنيمت دئ دا زمان |
| نن ورځ دی سيوری د خدای دئ | | عدالت کا عالي رای دئ |
| چي يې پښه کړه په رکاب | | نورې کفر کړ کرياب |
| بيا يې مخ په هندوستان کړ | | ده برهمه کفرستان کړ |
| ښه عادل پاچا غازي دئ | | سر د کفر په بازي دئ |
| سرداري د عبدالله ده | | خلقه واړه آګاه ده |
| ښايسته نېکخويه ځوان دئ | | ډېر هوښيار سخندان دئ |
| د کشمير ملك يې روښان کړ | | ورك يې ظلم د جهان کړ |

رحمت د پښتو يو بزمي شاعر دئ او په لومړنيو قصه ليکونکو شاعرانو کي ګڼل کيږي، کلام يې ډېر ساده او سليس او متين دئ، هر راز فکر په شعر کي اداکولای سي او په دې سبب د پښتو شاعرانو په لومړۍ درجه کي حسابيږي.

رحمت د ليلی او مجنون قصه له نظامي ګنجوي څخه ترجمه کړې ده مګر دی وچ کلك ترجمه کوونکي نه دئ، بلکي ځيني نوي نوي فکرونه او اداګاني هم لري.

په پښتو شاعرانو کي يو بل متأخر شاعر نعمت الله هم دا قصه په پښتو کړې ده، مګر د دې دوو شاعرانو کتابونه هر يو ځان ته بېل قيمت لري.

نعمت الله خو په قصه کي ډېر تغير پيښ کړی او په متوسط بحر کې ويلې ده، مګر رحمت که څه هم د نظامي پر لاره تللی دئ بيا هم په ځينو ځينو ځايونو کي نوي نوي فکرونه لري او له هغو زړو مقدماتو څخه نوي نتيجې اخلي چي مثال يې دا دئ :

د ليلی پلار خبر سو، چي د مجنون د عشق افسانه رسوا سوېده، او د کوچنو او لويو په خولو کي لوېدلې ده، نو ده يو سړی ور واستاوه چي مجنون مړ کي، نظامي فقط دومره وايي، مګر مکتبي شيرازي کيسه اوږدوي، او وايي چي هغه قاتل مجنون ته راغی، وچ کلك بدن يې وليد، غشی او لېنده يې وغورځول او ويې ويل :

چون مرده جز استخوان ندارد

او را چه کـــشم که جـــان ندارد

مکتبي خو دا برخه ډېره خوږه زياته کړېده، مګر اوس وګورئ چي زموږ رحمت څه کړيدي؟ رحمت غواړي چي کيسه يوازي د عشق او بزم او ميني پر خبرو نه کي تمامه، بلکي ځای ځای ځيني اخلاقي افادې هم وکړي، او خپل پښتانه ويونکي د خوږې کيسې په منځ کي ځينو اخلاقي حقايقو ته هم ملتفت کړي، او په بل ډول يې د ادب هغه حقيقي پلو، او واقعي مخ هم وبرېښوي، زموږ پښتون اديب خو دا کار ډېر ښه کړی دئ، او د ادباوو له پاره د تقليد وړ دئ. وګورئ رحمت له دې حکايته د بد عمل جزاء او نتيجه په څه اديبانه ډول څرګندوي :

| | |
|---|---|
| چي مجنون په عشق ابتر سو | کُل عالم باندي خبر سو |
| په هر ځای د ده کلام و | که خواص وو که عوام وو |
| چي مجنون نومی يوځوان دئ | دی په عشق کي ډېر اريان دئ |
| د ليلی په زلفو بند دئ | ډېر ډېر ژاړي او دردمند دئ |
| چي ژړا يې په وای وای سوه | افسانه يې په هر ځای سوه |
| ډېر مخلوق د ده دښمن سوه | ټول ګويا په دا سخن سوه |
| چي دوستان څوك د ليلې وو | د ليلی له قبيلي وو |
| د ليلی و پلار ته راغله | هم د ده دربار ته راغله |
| واړو دا مذکور آغاز کړ | نه يو ځله په باز باز کړ |
| چي يو ځوان په مينه زېر دئ | د ليلی ذکر يې ډېر دئ |
| په فلاني بيابان کي اوسي | دی زموږ په زيان کي اوسي |
| بدنامي يې تر حد تېره | په عالم کړه زموږ ډېره |
| هره ورځ غزلخواني کا | دی په نام يې د فلاني کا |
| چي په موږ راسي افسوس کا | ګاهي رقص ګه زمين بوس کا |
| هر دم هسي غزل وايي | چي ليلی ورپکښي ستايي |
| دی د غم له سوزه سازه | ډېر خوشخوان دئ خوش آوازه |
| په هر دم چي دی بلغاك کا | روغ تندرست زړونه چاك چاك کا |
| وايي دی خلك يې ياد کا | زموږ د ملك نامه برباد کا |
| ليلی هم ورپسي داغ ده | دی پتنګ دئ دا يې څراغ ده |
| ته يې وترټه بسياره | چي لاس واخلي له دې کاره |
| د ليلی پلار چي خبر سو | په دا حال خوږ يې ځيګر سو |
| په خوله لال سو له حيرته | پيچ يې وخوړ له غيرته |
| ده ويل درومئ سر يې پرې کړئ | سپيني توري په ده سرې کړې |
| چي و چاته نصيحت سي | او بل چا وته عبرت سي |
| که يې څوك دعوه د خون کا | بيا دی ځما احوال زبون کا |
| تاسو خلاص ياست همه واړه | د ده خون ځما په غاړه |
| نور ترې پورته يو ښه ځوان سو | د مجنون پر لور روان سو |
| همېشه يې په لار يون کړ | جستجو يې د مجنون کړ |
| ناګهان يې په بيابان | مجنون وليده عريان |
| د جهان ننګ يې پرې ايښی | تنها ناست له خلقه ګوښی |
| ور نژدې چي هغه ځوان سو | تېغ يې وکيښ ور روان سو |
| چي ګذار يې پر کاوونه | لاس يې هسك ودرېدنه |
| وچ سو هسي دی پر پاس | چي کوز نه سو هغه لاس |
| په دا لاس يې کله دربغ کړ | په بل لاس يې هغه تېغ کړ |
| چي يې بيا قصد په وهل کړ | دا بل لاس يې هم خدای شل کړ |
| کرامت چي ور څرګند سو | د قاتل زړه په ګزند سو |
| ژر نسکور د ده پر پښو سو | په مخ سر د پښو په مښو سو |
| په بار بار زاری يې کړله | هم منت باری يې کړله |

دلته که څه هم رحمت داسي يو حکايت راوړی دئ، چي ظاهراً په طبيعي حساب سره نه منل کيږي مګر نتيجه ښه ځني اخلي او داسي وايي :

| | | |
|---|---|---|
| و قاتل ته مجنون ويل : | | ځما بزرګو ډېر دي ښه ويل |
| چي په بدو پسي ګرځي | | عاقبت په څاه کي پرزي |
| چي د بدو طلب ګار سي | | خود په بدو ګرفتار سي |
| چي نيکي بدي انسان کا | | دواړه ځان لره عيان کا |
| چي نېکي کړي نېکي مومي | | چي بدي کړي بدي مومي |
| څو دي لاس رسي نېکي کړه | | پسله دې ترکه بدي کړه |

اوس ورد رومه لاس دي جوړ سه !
او لـــه بدو دي زړه ســـــوړ ســه !

د رحمت د غزلو دېوان په مردف ډول ترتيب سوی دئ، چي نسخي يې لږ پيدا کيږي. دی په غزل کي خاص ذوق لري چي په کلام کي يې اغلاق او اشکال نسته، په ساده ژبه پېچلي مضامين ادا کوي او د ده غزل بايد بزمي وګڼله سي، ځکه چي ډېر لږ د تصوف يا اخلاقي شاعرئ رنګ لري.
د ده د غزل نمونه دا ده :

| | | |
|---|---|---|
| هيڅ سو هيڅ سو و آشنای ته زما درد | | ځکه پروت يم زړه کباب په ګونه زرد |
| ملاست د هجر په بستر يم خوب مي نسي | | پر خاطر مي پرېوتلی د غم ګرد |
| د اشنای ميني ضعيف کړم ګرم څه نه يم | | زه چي کاږم و هر چا ته اه سرد |
| تاس د غم مي غورځوي په سينه باندي | | لکه څوك چي شش و پنج کاندي پر نرد |
| لکه شمع کي مي سر په مقراض غوڅ کا | | که خاموش سوم هله يمه زه نامرد |
| په جفا سره يې درست عالم تاراج کړ | | له وفا يې هيڅوك نه سو بهره ورد |

د رقيب نمرود له لاسه که اور بل سو
د خليل په څېر دا اور ســـو پر ما برد

رحمت کله کله ځيني فارسي کلمات په خپل شعر کي هم استعمالوي او داسي معلوميږي، چي دی به د فارسي ژبو سره ډېر اوسېدلی وي، لکه چي وايي:

خود به خود مي مجـــروح که دريغه
په خـــندان سره بيا ووايي که کـــرد

کله کله د قافيې په سمولو کي داسي جدي سي چي تذکير او تانيث هم پرېږدي، مثلاً دی يوه غزل لري چي وايي :

يار چي هسي مـــخ پوټی کا
زمــــا اوتيسي به ندی کا؟
که څه ظلم که ســــــــتم دئ
نور څوك نسته واړه دی کا
له هر څه يې ســــــــم فارغه
که يار را د شـــونډو مي کا

په دې ډول د غزلي تر آخره پوري قافيه تعقيب کيږي، مګر په يوه بيت کي وايي :

د هـــــــجران تاريکي راغلل
چي تياره د مخ سپوږمۍ کا

په اول بيت کي ندی او په آخر بيت کي سپوږمۍ دواړه په پښتو کي مونثي کلمې دي، مګر رحمت په دې غزلي د مذکرو کلماتو په رديف کي راوړي دي او دا يو قسم سهل انګاري ده.

# ميا نعيم متې زی

دی د شيخ محمد شعيب زوی او د محمد سعيد لمسی په کام خليل دئ، په شپږم پښت کي شيخ امام الدين ته رسيږي، چي هغه په پښتنو کي يو ستانه سړی او د پښتنو د تاريخ مؤلف دئ. د ده نسبت په نهم پښت کي شيخ متي ته رسيږي، چي هغه په کلات کي ښخ او د پښتو ژبې ډېر لوړ صوفي شاعر دئ، دې کورنۍ د پېښور په خليلو کي ډېر روحاني نفوذ درلود، او ميا نعيم په هغه ځای کې زېږېدلی او وروسته د شاه زمان سدوزي په زمانه کي کندهار ته راغلی او د ناکودك په کلي کي مېشت سوی او په (۱۲۳۰ هـ) کال يې د اشعارو دېوان ترتيب کړی دئ.

داسي معلومېږي چي ميا نعيم د پېښوره د شخصي مخالفانو د لاسه کندهار ته هجرت کړی و او پخپله وايي :

چي شاړه دی غمازانو له وطنه
نعيم ځکه کندهار او کابل ونيو

په کندهار کي ميا نعيم روحاني مقام درلود او اولاده يې تر اوسه پوري هم ستانه بلل کيږي، دی خپل معاصرتوب د شاه زمانه سره په دې بيت کي ښکاره کوي:

نوکري کوم د يار په عاشــــــقي کي
منت بار د سدوزي شاه زمان نه يم

د ميا نعيم پښتو دېوان تقريباً درې زره بيته دئ، د شعر مضامين يې عشقي او تصوفي دي، دېوان يې غزلي او رباعيات او مخمس او قصايد لري، نازکي تشبيه او استعارې لري او د پښتو شاعرانو د لومړۍ ډلي په پای کي درېږي، دی د تصوف سره عملاً آشنا دئ او لکه رحمن بابا پخپلو اشعارو کي صوفيانه مضامين ځايوي. په پښتو شعر کي د پښتو ډېر نادر لغات راوړي، په وينا کې متانت او سلاست دواړه سته، او ځيني بدلي يې په رواني او خوږوالي کي د لوړو استادانو د بدلو خوند لري، په دې بيت کي د معشوق کلك زړه او د خپلو اوښکو ډېروالی داسي تمثيل کوي :

چي دي زړه زمـا په اوښو نه نرمــــــيږي
د درياب په منځ کي پروت حجر دئ دا

د زلفو او رخسار تشبيه داسي کوي :

خيال د زلفو د رخسار زما په زړه کي
زرغونه کړه تور سنبل او سره ګلاب

په دې بيت کي زرغون او تور او سور صفتونه سره يو ځای سوي دي، مګر زرغون کول د پښتو يو خاص تعبير دئ او بيا د اولي او دوهمي مسرۍ تر منځ مرتب لف و نشر دئ :

چي مي ستا د ميني داغ په خاطر يووړ
زرغـــــــــــونه به مي لالــــه سي له تربته

دلته د داغ رنګ په دې ډول بيان سوی دئ، چې تصريح نه دئ، مګر د لاله کلمه دلالت کوي چې دغه د وينو سور رنګ لري. د شکرلبانو د اختلاط نتايج داسي ښيي :

زر به ګانې لـــــکه ګنی سي د غـمونو
چا سره چي ډېر شکر لبان کا اختلاط

ګل په اوربل کي داسي تصوير کوي :

زانګي پکښي زړونه د عاشقو سره په وينو
ته چي چيري کښېږدې سره ګلونه په اوربل

د فلك له ظلمه داسي شکايت کوي :

رباعي

فلـــــکه څرنګ دي ناقـــــرار کړم
چي نيمه خوا دي جدا له يار کړم
لـــکه کب پرېوزي پر وچه باندي
زه دي له ژونده هسي بېزار کـړم

دلته نيمه خوا دوې معناوي لري، يوه معنی يې دا ده چي په نيمه لاره دي د ياره جدا کړم، بله دا چي نيمه خوا محروم او ناکام ته وايي.

د غزل نمونه :

| | | |
|---|---|---|
| په وصال کي مي زياتيږي شر و شور لا | | ستا بېلتون راباندي ولګوی اور لا |
| د ابروی متاع که غواړم په ياری کي | | په سودا کي ستا د ميني شم سر تور لا |
| که په مينه کي تهمت په ما وايه شي | | د عشق کار مي پخته کيږي په پېغور لا |
| که هر څو يې په اميد ورشم تر زلفو | | لګوي مي خوله پر زړه باندي منګور لا |
| په ژړا مي هيڅ پروا د ښکليو نه شي | | په باران د باغ ګلونه شي سمسور لا |
| لکه موم يې ويلي کيږم د مخ لمر ته | | په وصال کي راښکاره کا هسي زور لا |
| چي يې خيال د زنخدان و زړه ته تېر کړم | | په کوهي کي مي غوزار کاندي نسکور لا |

که "نعيم" ته ځان ښکاره لکه آفتاب کړې
لـــــکه ګل هسي يې زړه شي ورته خپور لا

# سپینه

سپینه یوه پښتنه شاعره ده، چي د وزیر یارمحمد خان الکوزي د حکومت په وخت د هرات په شاوخوا کي اوسېدله. دا پښتنه د نورمحمد خان الکوزي لور وه، او هغه وختي ایرانیانو په ۱۲۵۵ هـ کال هرات کلابند کړ او د هرات پښتنو د دوی د مېړاني مقابله وکړه، زموږ پښتنه شاعره ژوندۍ وه، د هرات محاصره خو یو کال او اته میاشتي اوږده سوه مګر پښتنو ځان تسلیم نه کړ، او هرات یې نه پرېښو[4].

په دې جګړو او مېړانو کي د پښتنو سرداران شاه کامران سدوزی او وزیر یارمحمد خان الکوزي وو، دوی د پښتنوالي ټینګ او راسخ عزم په دې مقاومت کي څرګند کړ.

زموږ پښتنه شاعره سپینه هم په دې ملي جګړه او د آزادۍ ساتني په محارباتو کي ژوندۍ وه، او ډېر خواږه اشعار یې په ملي لهجه د پښتنو د توري او ننګیالیتوب په ستاینه کي ویلي دي، چي د پښتنو ښځو حماسي افکار ښه ځني څرګندېږي.

سپینه د دغي محاصرې او جنګ په ټولو واقعاتو خبره ده، ا ودا ښکارېږي چي دا او خپلوان یې د دغي ننګې په لار کي ولاړ وه او ټوله وقایع یې په سترګو لیدلي دي.

که موږ تخمین او اټکل وکړو، چي په دغه وخت کي دا پخه ښځه وه، ځکه چي افکار و احساسات یې هم پاخه دي، نو به په دغه محاصره کي د دې عمر له ۴۰ تر ٤٥ تخمین کړو او د تولد کال به یې هم پسله ۱۲۰۰ هـ وبولو، د سپیني د اشعارو له مضامینو دا هم را ایستل کېږي، چي د دې کورنۍ د وزیر یارمحمد خان له کورنۍ سره خپلوي یا نژدې تماس درلود، ځکه چي د محاصرې او جګړې ډېر خصوصي وقایع یې راوړي او نظم کړي دي.

**د پښتني حماسیات :**

دې شاعري په خپله ملي ژبه موږ ته یوه مفصله کیسه په څو سوه بیته کي پرې ایښې ده، چي د هرات د محاصرې منظوم تاریخ ګڼل کېږي، په دې کیسه کي پښتنه شاعره، د خپلو ورونو مېړاني ستایي، او په خورا ساده او سپېڅلو الفاظو د دې جګړې مختلف مناظر تصویر کوي.

د کیسي په ابتدا کي په یو څو بیته د کامران او وزیر یارمحمد خان ستاینه او وروسته بیا نو په کیسه شروع کوي.

د سپیني پښتني شاعري حماسي احساسات ډېر پیاوړي او ننګیالي دي، په شعر او کملاتو کې تاثیر او اغېزه سته، وینا یې د حماست یوه ټوټه ده، او د پښتنوالي او مېړاني نمایندګي کولای سي، د سپیني پښتنې شاعري نور څه اشعار موږ ته نه دي را رسېدلي، فقط د دغي محاصرې منظوم تاریخ چي د مثنوي په ډول دئ ځیني برخي زموږ څخه سته، او هغه هم بشپړي نه دي، د دې مثنوي په سر کي پښتنه شاعره په حمد او نعت ابتداء کوي، وروسته نو د شاهزاده کامران او وزیر یارمحمد خان په ستاینه شروع کوي.

د دې له مضامینو داسي ښکاري چي سپینه یوه عالمه او فاضله په تاریخ او د پښتنو په حال خبره ښځه ده، که څه هم اشعار یې ټوله تاریخي دي، وقایع او حوادث بیانوي، مګر د حماسته هم ډك دي، ځکه چي دا اشعار خورا سلیس او روان او خواږه دي نو موږ لاندي ټوله هغه برخي چي لاس ته راغلي دي لیکو یې، پښتنه سپینه په خپله کیسه داسي پیل کوي :

---

[4] تتمة البیان د سید جمال الدین.

| | | |
|---|---|---|
| لومړی څښتن د ټول عالم ستایمه | | بیا محمد رسول اکرم ستایمه |
| درود پر واړو اصحابانو دي وي | | د پاك نبي پر ښو یارانو دي وي |
| دی و استازی د کونینو بادار | | په دوه جهانو د نبیانو سردار |
| د ګنهکارو شفاعت کوینه | | رحم پر خپل خسته امت کوینه |
| بیا منقبت د ابوبکر وایم | | صدیق یې نوم په صداقت یې ستایم |
| دی لومړی یار و د خاوند د رسول | | په لوی دربار په دوه جهانه مقبول |
| په یار غار د پاك نبی دئ مشهور | | توره تیاره یې په انوار وه د نور |
| دوهم فاروق عمر و خدای ته نژدې | | د عدالت یې پر جهان نندارې |
| شور و د نیل له پرتمه کښته | | مړه کافران د ده له ډېره هیبته |
| د عدالت دُره یې هسي کاري | | چي رپېدی به ځني زړه د مزري |
| دریېم عثمان ذی النورین و نمر | | هم و جامع د پاك قرآن د اکبر |
| حلم و حیا کې و بادار د امت | | ابن عفان مو سو سردار د امت |
| څلورم یار و شېر د خدای و کرار | | علی حیدر و تل په لاس ذوالفقار |
| د خیبر ور یې ذوالفقار ته و مات | | په بریښ د توري یې تل ورك ظلمات |
| بیا نو کومه په خوښۍ په عزت | | د پاك نبي د اصحابانو صفت |
| چې دوی وه ستوري د آسمان ځلېده | | تل وه خوشحاله پاك رسول یې لیده |

د خدای رحمت دي وي پر دوی تر ابد
خــــــالق دې عفو کي په روی زموږ بد

## د پاچا او وزير په ستاينه کي

اوس نو شروع کړم د پاچا په صفت — څموږ شاهزاده دی ننګيالی په غيرت
دی دئ ډېوه د سدوزو د ټبر — په څړبنو کي نن دئ دی لکه لمر
د احمدشاه غازي پښتون له کوره — نن ده کامران شاهزاده کښلې توره
غليم له ده نه پر حذر دئ جانه — د ده له توري نه ابتر دئ جانه
په ننګياليو توريالی شهزاده — په غيرتمنو بريالی شهزاده
د درانو ناموس په ده دئ خوندی — د پښتنو ټبر په ده دئ قوي
په درانه سيوري يې هرات سو آرام — له دښمنانو يې وکښو انتقام
دی په رشتيا نعم الخلف د محمود — خالق دې کاندي په دارينو مسعود
د پښتنو په ننګه کلك دئ ولاړ — ټول غليمان د ده له توري لټار
بل يې وزير يارمحمد خان توريالی — په سپين ميدان کي څني ريږدي زمري
دی په تدبير آصف نظام د هرات[5] — ښه يې سنبال کړ انتظام د هرات
دی ننګيالی د الکو د ټبر — د غني خان د سترګو تور د زړه سر
ده سپينه توره يې له تيکي بدر — د شهزاده دی مړنی برادر
پښتون پر ده راټول د جنګ پر ميدان — سټ يې په توره کړ غليم دښمنان
خالقه دا د پښتنو توريالی — وي د هرات پر سيمه تل دي ژوندی
څو چي شينکی آسمان ولاړ پر مځکه — څو چي سپوږمۍ او نمر خاته لوېده که
د پښتنو سر دي په دوی وي بلند — هم په عزت و ټول جهان ته څرګند
وروسته تر مدح د کامران شاه شهزاده — واوره چي کاندم د جنګو ښه قصه

له "سپـــيني" څـــــخه به نه وي آثار
دا به وي خاوري پاته سي به يادګار

[5] وايي چي آصف د سلېمان E وزير و، او له نظامه مطلب نظام الملك د ملکشاه سلجوقي وزير دی، چي د دوی په نومو په دې بيت کي تلميح ده.

## په هرات او کندهار کي د سدوزو پاچهي

راسه چي تاته حکايت کومه — د سدوزو د سلطنت کومه
پخوا تر دې و د هرات پادشاهان — د سدوزو و ذوالفقار، زمان خان
دوی سرداران د پښتنو د هرات — غليم يې تل له تېرې توري و مات
د پښتنو توري به تل ځلېدې — د دښمن سترګي له بريښنا وې ړندې
دوی وو مېړونه پښتانه توريالي — پر ننګه ټينګ وه د وطن ننګيالي
په جنګ کي هر يو غټ شين مزری — د سدوزو هر ځلمی بريالی
چي به يې توره له نيامه وکښه — غچ او کينه بې له ايامه وکښه
د هرات خوا وه له غليمه خالي — دلته خپره وه هوسايي خوشحالي
ټول پښتانه په اتفاق وه ولاړ — کار د دښمن د دوی له لاسه ويجاړ
چي به پښتون ځلمی په خوب کي دښمن — وليد له وېري به يې رېږديد بدن

متاسفانه تر دې وروسته اشعار له دغي کيسې څخه زموږ لاس ته نه راغله، له دغو څخه هم ويونکی زموږ د پښتنې افکار او د طبع رواني او نور علمي او تاريخي معلومات پرتله کولای سي. دغه بيتونه هم له دغي کيسې څخه لاس ته راغلي دي چي د محاصرې د يوه جنګ حال ښيي.

| غليم په ښهر بيا هجوم راوړی | | مخ تې ولاړ دئ يارمحمد پياوړی |
|---|---|---|
| زموږ پښتانه لکه زمري جنګيږي | | ولې د وينو پر حصار بهيږي |
| هرات په وينو د پښتون سو ګلرنګ | | پښتون زخمي دئ د غليم پر خدنګ |
| يارمحمد وايي پښتنو زما زمرو | | ټوله راووزئ وسله دار له کورو |
| پر غليم وکړئ يو هجوم ګړندی | | هرات له لاسه په ژوندون مه باسی |
| دا زموږ کور دئ زموږ وطن دينه | | دا زموږ ټاټوبی زموږ مامن دينه |
| کفن په غاړه دا وطن وساتئ | | زموږ د پلرو ښکلی مدفن وساتئ |
| دلته پراته دي ننګيالي نيکه ګان | | دلته بهيږيويني تل د افغان |
| هرات زموږ دئ زموږ کور دينه | | زموږ نغری دئ زموږ ګور دينه |
| دښمن راغلی تر دېواله د کور | | ولاړ سئ دا دئ د پښتون لوی پېغور |
| کامران نارې کړې چي پښتونه قامه | | توره راباسه مره پر ننګ و نامه |
| مه بايله ځان اوسه ولاړ پر حصار | | د پښتانه پر ننګه ځان کړه ايثار |
| بويه غيرت چي مو ناموس خوندي سي | | نوم د پښتون نوم د اولس خوندي سي |
| ځلمو چي واروېدې نارې غلبلې | | له يارمحمد له کامرانه دلې |
| له کلا وواته زمريانو په څېر | | پر دښمنانو يې جوړ کړ لټپېر |
| سرونه يې غوڅ کړه د دښمن په توره | | ................................ |
| دښمن سو مات راغی دوران د کامران | | د يارمحمد د بري ستوری ځلان |

# میرزا حنان

د محمدحسن زوی او د (۱۲۰۰ هـ) په حدودوکي دکندهار په مرت کلاکي زیږېدلی او پس له (۱۲۷۱ هـ) کاله هم په دغه ځای کي وفات سوی دئ، میرزا حنان د خپل عصر مشهور شاعر دئ، چي د پښتو دېوان یې تر (٤۰۰۰) زرو بیتو پوري رسیږي.
د ټول دېوان غزلي یې اووه اوبه بیته دي، د کتاب په آخر کي ترجیع بند او مخمس او مثمن او څو رباعیات او یو مثنوي لري.
حنان په خپل شعر کي د حمید پیروي ډېره کوي، پخپله وایي :

د حمـــــید د شعر بحر ته حـــــــــــنانه
یو څو څاڅکي دي لوېدلي ستا ابیات

د حنان شاعرانه تخیل ډېر لوړ او د نوو مضامینو میندونکی او بداعت خوښوونکی دئ، دی هم لکه حمید نوي تلازمات او نوي استعارې او ښکلي تشبیهات لري، مثلاً د غافل زړه جزا داسي بیانوي :

دا غـــفلت نیولی زړه به رېز مـــرېز کـــړم
ماتېده د زنګ وهــــلي کلپ کـــیلي ده

حنان د حمید په نازکخیالۍ کي پوره پیرو دئ، پخپله هم دغه خبره مني، مثلاً حمید ویلي وه :

دا شرف د عاشـــقۍ نه دئ نور څه دئ
چي سینه سوه د حمید دوکان د مشکو

حنان دغه مضمون داسي ادا کړی دئ :

د حـــــنان سینه نوخطو تور سکاره کړه
که ســـــینه وه د حمید دوکان د مشکو

د حنان په کلام کي نوي نوي مضامین او شعري تلازمات په هغه ډول میندل کیږي لکه چي د حمید او شیدا په شاعري کي د فارسي ادب د هندي سبك په پیروي موجود و، مګر فرق یې دا دئ چي د شیدا د بیان طرز ډېر د پارسي ژبي تر اثر لاندي او د حمید بیان هم ډېر عالمانه او د لږ تکلفه سره ښکاري، مګر حنان دا صفت لري چي هغسي د سبك هندي غوندي شاعرانه تلازمات په داسي ژبه بیانوي، چي هم ساده ګي لري او هم خوږوالی، مثلاً د معشوقې خیال چي کله د ده زړه ته راځي نو دی په شاعرانه هنر سره دغه موضوع داسي بیانوي :

چي دي خیال راتی زړه مخ لره ور ووت
کورنۍ وزي مېــــــلمه لره له ســـــــرایه

کله چي د عاشقۍ په دنیا کي حنان خطاوزي او رویبار ته د زړه حال وایي بیا نو داسي پښېماني کوي :

تر ما دی پر یار عاشــق و خــــــــبر نه وم
د زړه حـــال مي خوشي ووایه رویبار ته

کله کله د عاشق تند تندکاته هم په معشوق باندي نه پېرزوکیږي، او دا ډول خلك له تندوکتو منع کوي :

شـوخ کاته یې ډېر ډېر مــه کوه و مخ ته
نازك تن یې زخــــــمي کــــــــیږي په کتو

په دې لاندي بیت کي د معشوق د مېلمستیا اسباب داسي بیانوي :

زړه کباب او تروې اوښکي د اه اور مي
دا اسباب د یار د خیال د مهـــــمانۍ وو

حنان پخپل شعر کي کله کله شعري صنايع هم راوړي، مثلاً په دې بيت کي د تقابل صفت موجود دئ :

په ګلشن کي ګل تر تا خوشــحاله نسته
نه په مينه کي بلــبل تر ما حــــــــزين سته

په دې لاندي بيت کي تجنيس دئ :

د جبين په چين يې زړونه واړه چين کړل
وايې خيست په دغه چين له چــينه چين

شاعران کله د لاله ګل د زړه له داغه سره تشبيه کوي يا يې د رخسار د سره رنګه سره مګر دا مضامين شاعرانو ډېر استعمال کړي دي، خو ميرزا حنان دغه مضمون په نوي ډول د يوه ادبي برهانه سره داسي ادا کړی دئ :

په رخسار کي دي لاله دعوه کا څه سو
تل نصيب د صــــحراشينو جاهــلي ده

د حنان د غزلو يوه نمونه :

| | | |
|---|---|---|
| ناچاري کړم له آشنايه څخه ليري | | چي تل اروم د رقيب سرې خبري |
| موږ په سوي يو زاهده ته پرهېز کړه | | عاشقي نه ده تحقيق دئ اور د سري |
| د ګلرخو په وصال هغه خورسند وي | | چي همېش د يار د غم سکروټې نغري |
| د جنت معامله ته کړه زاهده | | عاشق نه ګوري په عشق کي نژدې ليري |
| د عشق درد و هغه چاته معلومېږي | | چي پوخ سوی وي يو وار له دغه شري |
| چي تعريف د شکر لب د خولې په کاږم | | د قلم تر نی مي توی سولې شکري |

حنان بيا څه دُر له ژبې څخه توی کړه
ولې نې رانيسي هيڅوک په کودري

# د پښتو ادب په تاريخ کي قصيده[٦]

## قصيده څنګه او چيري پيدا سوه؟

قصيده د شرقي ادب يوه ډېره مهمه او ګرانبها برخه ده، چي د عربي او فارسي او پښتو او اردو ادب يوه غوره او ښکلې ذخيره هم دغه قصيده ده.

قصيده په عربي اصطلاح هغه جيد او منقح او متصل شعر و، چي د بيتو شمېر به يې تر (١٦ يا ١٧) کم نه و، دا نوم د قصد له مصدره جوړ سو، چي معنی يې استقامت او اتصال او سموالی او برابري او سوچه توب و، (وګورئ المنجد ترجمان اللغة لسان العرب).

قصيده په عربي ادب کي تر اسلام دمخه لا موجوده وه او داسي ښکاري چي قصيده په دغه موجوده شکل او تعريف عجمي ملتو له عربو څخه اخيستې ده.

د عربو له جاهلي ادبه اوس موږ ته هغه اوږدې او خورا فصيحي قصيدې د نمونې په ډول پاته دي، چي معلقات سبعه يې بولي او د دغو شاعران تر اسلام دمخه په عربو کي تېر سوي وه.

عربي قصيده د رېګستان د قبايلي ژوند يو ښکلی تصوير و. شاعر به د کلو کنډوالې، د معشوقې پر بانډه د هوسيو خرام او د اوښانو پر شا سفر او د خپل قبايلي ژوندون مناظر او د محبوبا ساده حيات او عشق په عربي فصيحو او بليغو ابياتو کي تصوير کول او هره قصيده به هم له (١٦) تر سلو بيتو پوري رسېده.

په قصيده کي به حماسي مناظر هم تصوير کېده او قبايلي مفاخر به ستايل کېده او د عربو قصيده د بني اميه تر خلافته پوري هم په دغه بدوي او خاص عشيروي رنګ او فصاحت کي وه، څو چي د خلافت مرکز له دمشقه بغداد ته رانقل سو او د عجمو د مدنيت او کلتور او ثقافت اثر په عربي ادب کي ښکاره سو، نو دلته قصيده هم په عجمي فکر او رنګ ورنګېدله او مخصوصاً د خراسان او افغانستان عربي ويونکو شاعرانو په عربي قصيده او ادب خپل خاص کالي واغوستله.

دا خبره د تحقيق وړ ده، چي د خراسان خلکو تر اسلام دمخه قصيده درلوده که يه؟ او د دوی په ژبو يعني اوستا او پښتو او پهلوي کي دغه ډول اشعار موجود وه که يه؟

د اروپا ځينو محققانو چي پر دې خبره باندي تحقيقات کړي دي له دوی څخه کريستن مين او هينينګ داسي وايي :

"چي د فارسي ژبي د نظم قواعد له عربي څخه نه دي اخيستل سوي، بلکي تر اسلام دمخه دوی داسي قواعد لرله او ښايي چي عربو هم د جبره(؟) دولت په وخت کي  دا شاعري صنعتونه هم له دوی څخه زده کړي وي".

البيروني د غزني مشهور عالم او محقق پخپل کتاب الهند کي د خليل بن احمد د عروضي قواعدو او د سنسکريت د قديمو اوزانو د شعر د لارو چارو تر منځ ډېر مطابقت او شباهت بيانوي او بيا نو وايي چي ښايي خليل بن احمد به د عربي عروضو په ترتيب کي د سنسکريت اوزانو قواعد اورېدلي و.

له دغو رواياتو څخه ښکاري چي په خراسان کي تر اسلام دمخه شعري اوزان موجود وه، او لکه د اروپا پوهانو چي تحقيق کړی دئ د پهلوي منظومات او اشعار هم يوازي پر هجايي اساس ولاړ نه وو، بلکي نور اوزان او اقسام يې درلودل او لکه ځينو پوهانو چي ليکلي دي د پهلوي يو زوړ نظم (شه وهرام ور ژاوند) قصيده ده، چي هره مسرۍ يې (١٢) هجاوي او قافيه

---

[٦] **د علامه** حبيبي مرحوم د پښتو ادب لنډ تاريخ په پای کي د پښتو قصيدې په باب څېړنه سوېده چي سرليک يې (قصيده په شرقي ادب او پښتو کي) دئ، خو د هغه مرحوم د دغي څېړني بشپړ شکل په ١٣٥٧ ش کال په کتابي ډول د افغانستان د علومو اکاډيمۍ لخوا په (١٥٦) مخونو کي (د پښتو ادب په تاريخ کي قصيده) تر سرليک لاندي خپور سو، دلته ما د هغه کتاب بشپړ شکل را اخيستی دئ، چي البته د پښتو ادب د لنډ تاريخ د څېړني څخه زيات اضافات پکښې سوي دي خو په کوم ځای کي چي د لنډ تاريخ څېړنه تر نوموړي کتاب اضافه توب لري هغه مي هم ورسره يو ځای کړي دي. (م. روهيال)

لري، (د مهر مجله ۳ شماره پنځم کال).
دغسي هم د پهلوي هغه قديم متن چي جاماسب اسانا چاپ کړی دئ قصيده ده چي مطلع يې دا دئ :

دارم اندرزی از داناگان
ازگفت پيشـــــينگان ...

د دې قصيدې بيتونه ټوله په آخرکي د ان قافيې لري، (وزن شعر فارسی، ص ۳۵). له دې پخوانو اسنادو څخه ښکاري چي تر اسلام دمخه خراسانيانو او پارسيانو قصيده درلوده اوکوم وخت چي دوی په دري خپل قصايد نظم کړه نو دوی په دې فن کي قديمه تجربه او مهارت درلود او پاخه وو، په دري کي هم لومړي قصايد په سيستان کي ويل سوي دي، چي د افغانستان د پخواني ثقافت او ادب په غېږکي پرورښت کېدی.
د هجري (۲۵۰) کال په شاوخوا کي يقعوب ليث په سيستان کي د افغانستان د آزادۍ بيرغ ودراوه او ځان يې د بغداد د خلافت له تسلطه خلاص کی، ده غوښته چي د خپل وطن استقلال او عظمت او پخوانی کلتور وساتي، يوه شاعر د ده په ستاينه کي عربي قصيده نظم کړه، يعقوب هغه ته وويل :
"داسي خبري ولي کوې چي زه نه په پوهيږم".
دلته نو د يعقوب د دربار لوی منشي ولاړ سو او په دري يې يوه قصيده وويله او پس له دې به نو شاعرانو په عربي قصيدې نه ويلې، بلکي د دوی پخپله ژبه به وې.
د سيستان تاريخ دغه ابتدايي قصايد په تفصيل ليکي او موږ ته راښيي چي د قصيدې د پرورښت ځای دغه زموږ افغانستان دئ.

**د شرقي قصيدې موضوع :**
قصيده په دري ادب کي د ستايني او مدح له پاره لکه د عربو قصيده استعمال سوه. په ساماني او غزنوي دوروکي د درباري شاعرانو په خوله او قلم داسي د لويانو او پاچهانو په ستاينه کي ومروړله سوه، چي په دغو دوروکي بې له مدح او ستايني بل څه لږ پکښې ليدل کيږي، د رودکي او فرخي او عنصري او منوچهري او منجيك او غضايري او نورو مشهورو شاعرانو قصايد چي وينو په سل کي نهه نوي د مقتدرانو ستايني دي.
مگر په همدغه غزنوي عهد کي حکيم ناصر خسرو د قصيدې مخ له تشي مداحۍ څخه د حکمت او موعظت خوا ته وگرزاوه او قصيده يې د اخلاقي تبليغ او اجتماعي او ديني اصلاح او فلسفې او حکمت په گرانبها مرغلرو جړاو کړه.
ناصر د دې مهم کار اساس کښېښود او حضرت حکيم سنايي په غزني کي پسې تکميل کړ، ده هم له مداحۍ څخه ځان وژغوره او قصيده يې د اخلاقو او موعظت او حکمت او تصوف او انساني ښېگڼو په ستاينه ښايسته کړه او دا ښکلې محبوبا يې له درباره راوايسته او د درويشانو په خانقاه، د دردمندانو په کوډله، د عارفانو په درسگاه او د رندانو په بزم کې ودروله، دلته نو موږگورو چي هغه درباري قصيده اوس روحاني ښکلې نغمه سوه.
په هغه غزني کي چي فرخي قصيده د سلطان محمود په ستاينه کي داسي په مبالغه آميزه وينا ډکوله :

شهنشاهی که شاهان را زديده خواب بر بايد
زبيم نه منی گـــــرزش به جا بلــــقا و جــا بلـــــسا
دل خـــــــار از بين تيغ او خون گـــشت پنداری
که آتش رنگ خون دارد چو بيرن آيد از خارا

سنايي په دغه قصيده داسي ښکلي روحاني کالي واغوستل :

ازين مشت رياست جـــوی رعــــنا هـــيچ نکـــــشايد
مســــــلمانی زسلمان جـــــــــوی، و درد دين زبودردا
به صـــــــاحب دولتی پيوند، اگـــر نامی همی جويی
که از يك چاکری عيسی چنان مصروف شد يلدا

قصیدې په عربي ادب کې خاص تکنیك درلود، او د قصیدې ویلو آداب او فني چاري ښېلي او ټاکلي وې، قصیده به په یوه تشبیب یا نسیب شروکېده، دا تشبیب د معشوقې د میني او شوق او عشق ستاینه یا به د شاعر د احوال بیان و. نسیب په عربي لغت کي هم د معشوقې د ښکلا وصف او د محبت او میني بیان دئ، (المعجم في معاییر اشعار العجم، ٤٠٦ مخ). د اغاني په روایت په اسلامي دوره کي د نسیب ګویانو امام جمیل بن محمد هغه عاشق شاعر دئ، چي د عبدالملك بن مروان معاصر و او خلکو به هغه په دغه سبب امام المحبین باله، (الاغاني ٧ – ٨). ځینو شاعرانو به د خپلو قصیدو په تشبیب کي د ځینو ښکلو پېغلو توصیف کاوه او هغه به داسي خوښي سوې، چي شاعر به یې مېره کی، لکه نصیب چي د عبدالعزیز بن مروان مریی و په تشبیب کي یې یوه ښکلې نجلۍ (هند) وستایله او هغې دی په خپله مړوښۍ ومانه، (آداب اللغه).
دا نسیب په دري قصایدو کي هم دغه ډول لیدل کیږي، خو فرق یې دوني دئ چي د عربي ادب د نسیب موضوع د معشوقو ښکلا او جمال وي مګر د غزنوي دورې د قصایدو تشبیب د شاهد یا نګار یا صنم په وصف جړاو کیږي. مثلاً دغه نصیب وایي :

اروني قبا انظر الیه فانني
احب قبا اني رایت به هندا

یعني ما ته قبا (غر) راوښیئ، دا غر پر ما ځکه ګران دئ چي ما هلته هند (خپله معشوقه) لیدلې وه. فرخي سیستاني د سلطان محمود د یوه وزیر په مدح کي د قصیدې تشبیب داسي شروع کوي :

بردم این ماه به تسبـــــیح و تراویح بسر
من و سیکی و سماع خوش و آن ماه پسر

مګر د فارسي قصیدې تشبیب پر دغه حال محسور نه سو پاته، چاپېر او ثقافت او زمانې پر هغه باندي اغېزه وکړه او دا ځکه چي د خراساني شاعر په مخ کي د طبیعت ښکلي مناظر او د کوهسار ښایسته لمني، د ګلشن او چمن تازه هواوي او د بلبلانو خواږه ږغونه او د اوبو ډك بهانده سیندونه او داسي نور ښکلي منظرې پرتې وې. له دغو لیدنو او کتنو څخه هم شاعر د قصیدې په تشبیب کي کار واخیست او د خپلو قصیدو پیل یې په پسرلنیو نندارو وکی، مثلاً د فرخي د یوې قصیدې تشبیب داسي شروع کیږي :

بر آمـــد نیلـــــګون ابری زروی نیلـــګون دریا
چو رای عاشقان ګردان چو طبع بیدلان شیدا

د ابوالفرج روني د یو تشبیب مطلع دغه ده :

نوروز جوان کرد بدل پیر جوان را
ایام جوانیست زمین را و زمان را

د شرقي ادب د قصیدې دغه خاصر رنګ و، چي شاعر به په نسیب یا تشبیب قصیده شروع کړه او پسله دغه به یې د خپل شعر آهنګ او مضمون داسي ترتیب کړ، چي د خپل ممدوح ستاینې ته یوه د ګرېز لار ومومي. دلته د شاعر وظیفه درنېده ځکه دا ګرېز باید په داسي ډول سوی وای، چي ډېر ښایسته او مناسب او په زړه پوري وای. دغه حال ته یې په ادبي اصطلاح (حسن تخلص) هم وایه، چي کله کله به دغه ګرېز او تخلص پر (حسن طلب) او دعا ختمېده او قصیده به هم ورسره تمامېده.
دا ټول مراحل یعني تشبیب او تخلص، حسن طلب او دعا د شاعر په مهارت او استادۍ اړه درلوده، چي څنګه یې ادا کوي او کوم الفاظ او مناسب او په زړه پوري مضامین پکښې ځایوي. داسي قصیده په ادبي اصطلاح مشبه بلله کېده چي بې تشبیبه قصیده به یې مقتضبه بلله.

# پښتو قصیده هم پخوانۍ ده

تر ډېره وخته د پوهانو دا خیال و، چې په پښتو ادب کې د قصیدې آغاز له خوشحال خان خټکه دئ، مګر کوم وخت چې د محمد هوتك پټه خزانه زما لاس ته راغله نو ښکاره سوه، چې تر خوشحال خان دمخه هم د پښتو قصیدې خپل ځلانده مراتب تېر کړي دي.
د قصیدې د نشو نما او پیدایښت زانګو خو ما وویل چې دغه زموږ وطن و، پهلوي او دري او فارسي قصیدې ټوله په دغه ادبخېزه مځکه کي روزلي سوي وې، نو پښتو قصیده هم په دغه مځکه کي پالل سوې او دا ښکلې او ګلالۍ غوټۍ په همدغه بڼ کي غوړېدلې ده.
د پښتو تر ټولو قدیمه قصیده، چې د محمد هوتك په همت موږ ته را رسېدلې ده د سلطان محمود په عصر اړه لري، او د دې قصیدې له براعت او بلاغته داسي ښکاري، چې په پښتو ادب کي تر دې دمخه قصیدې ډېر پخواني مراحل تېر کړي وه، چې د (٤٠٠ هـ) په شاوخوا کي و دې پخوالي او براعت او فني اعتلا ته ورسېده.
محمد هوتك دا قصیده د شیخ کټه له (لرغوني پښتانه) کتابه څخه رانقلوي چې دغه شیخ هم له تاریخ سوري څخه را اخیستې وه. دا قصیده په پښتو بولله یاده سوې ده او داسي ښکاري، چې په پخوانۍ پښتو کې قصیده (بولله) بلله.
د غور سوري پاچهان خو تر اسلام دمخه لا هم په غور کي د برم خاوندان وو، کوم وخت چې د سبکتګین کهول پر غزني مسلط سو نو د سلطان محمود او د دې غوري کورنۍ اختلاف پیدا سو او په دغه وخت کي د غور ټولواك امیر محمد سوري و، چې د مؤرخینو په قول په (٤٠١ هـ یا ٤٠٥ هـ) کال سلطان محمود دی په آهنګران کي ونیوی او هغه له ډېره غیرته زهر وخواړه او ځان یې مړ کی، (طبقات ناصری ج ١، ١٧٢ بیهقی، ج ١، ١١٧ و الکامل ٩ – ٩٩).
د دې غوري امیر په دربار کي یو پښتون شاعر اوسېدی، چې نوم یې شیخ اسعد بن محمد سوري و او محمد هوتك د پخوانو کتابو لرغوني پښتانه او تاریخ سوري په حواله د ده مرګ د زمین داور په بغني کي په (٤٢٥ هـ) کال ښودلی دئ.
شیخ اسعد د امیر محمد سوري په ویرنه یعني رثاکي یوه اوږده بولله یعني قصیده وویله، چې (٤٤) بیته ده او تر اوسه چې موږ په پښتو ادب کي معلومات لرو نو دغه قصیده تر ټولو زړه او پخوانۍ بولله ګڼله کېږي او د ژبې ډېره لرغونې پنګه او ادبي تومنه راښیي.

# د مضمون له پلوه د قصیدې اقسام

قصیده د مضمون له پلوه ډېر اقسام لري، د عربو قصیدې خو په جاهلیت کي پر حماسي وياړونو او قبیلوي افتخاراتو او عشقي احساساتو بنا کېدې، مګر په اسلامي دوره کي خاص بیا د عباسي دربار او امیرانو په مخ کي قصیده د مدح او ستاینې او انعام ګټنې ذریعه سوه.
په دري کي هم مدح تر هر څه دمخه د قصیدې غایه او هدف وه او عاشقانه تشبیبونه صرف د قصیدې د ښکلي کېدو له پاره و او د میني له خلوصه او تودو جذباتو څخه تر هغه خالي وه، چې سنایي په قصیده کي د روحي او ملکوتي جذباتو اور او حرارت پیدا کاوه.
دمخه مو ویلي و : چې کوم وخت په افغانستان کي یعقوب لیث د آزادۍ ښکلی بیرغ د سیستان د زرنج پر شاهي مانیو

ورپاوه، هم په دغه وخت کي پارسي قصيده د دربار همدمه سوه او په خوښۍ او نشاط، په جنګ او روغه او ستاينه او وېرنه کي د شاعر د لاس ډېر کارآمده او په زړه پوري متاع و. کله به يې د عيش او نشاط او جمال دوستۍ بزمونه په قصيده تودول کله به يې زلمي د جنګ پر ډګر په قصيده پارول اوکله به يې په ټوکو او هزالۍ د همدې قصيدې په وسيله خلک خندول، خو کله‌کله به د بډايانو او اميرانو د مړيني پر وخت د وير او اعزا او رثا په ټولنو کي هم قصيده اورېدله کېده.
مګر د رثايي قصيدې او وېرني رنګ بېل و دلته به شاعر خپل هنر او د وينا کمال او قوت هسي په‌کار اچاوه چي هغه د مرګ واقعه به يې ډېره هولناکه او غمجنه او د وير او ژړا وړ ښووله. د خلکو د ژړا او وير او ساندو او کړو مناظر به يې تصوير کول.
ښايي چي په دري ادب کي هم دغسي وېرني دمخه لا وې، خو اوس موږ ته فقط له رودکي څخه د رثا ځيني شعرونه پاته دي او تر ده وروسته نو مرثيه ويل عام سوي دي.
د رودکي مراثي اوس د قطعاتو په شکل کي پاته دي، خو ممکنه ده چي په اصل کي به قصايد وه او نور بيتونه به يې ورک سوي وي. دا بيتونه له هغي وېرني څخه دي چي رودکي د يوه هم عصر شاعر مرادي په مرګ د (۳۰۰ هـ) په حدودو کي ويلې وه :

| | | |
|---|---|---|
| مرد مرادی نه همانا که مرد | | مرگ چنان خواجه نه کاریست خرد |
| جان گرامی پدر باز داد | | کالبد تیره به ما در سپرد |
| آن ملك باملکی رفت باز | | زنده کنون شد که توگویی بمرد |
| کاه نبد او که ببادی پرید | | آب نبد او که به سرما فشرد |
| شانه نبد او که به مویی شکست | | دانه نبد او که زمینش فشرد |
| گنج زری بود درین خاکدان | | کود و جهان را به جوی می شمرد |
| قالب خاکی سوی خاکی فگند | | جان و خرد سوی سموات برد |
| صاف بد آمیخته تا در دمی | | بر سر خم رفت و جدا شد ز درد |
| در سفر افتند به هم ای عزیز ! | | مروزی ورازی و رومی کرد |
| خانۀ خود را بازر و دهر یکی | | اطلس کی باشد همتای برد |
| "خامش"کن چون نقط ایرا ملك | | نام تو از دفترگفتن سترد |

دا د پارسي مرثيې يوه لومړنۍ نمونه ده، چي بې ځايه تکلف او تصنع نه لري، وينا يې صافه او روښانه او سپيڅلې ده او شاعر خپل احساسات په زړه سوي او صميميت پکښې ځای کړي دي.
په رثايي قصيده کي تشبيب نه ځايېده او نه د تغزل وخت و. نو پخوانو شاعرانو به لومړی پلا پخپل مقصد او د وير په څرګندولو پيل وکړ. خو وروسته چي رثا هم درباري او تشريفاتي سوه، نو د رثايي قصيدې آغاز او انجام هم ځيني خاص صفتونه موندل، مثلاً فرخي د سلطان محمود پر مرګ باندي د غزني د ښار مناظر او د وېرني مراتب په دې قصيده کي تصوير کوي :

شـــــهر غزنين نه هـــــمانست که من ديدم پار
چي فتاده است که امسال دګرګون شد کار؟
خان ها بينم پر نوحـــه و پر بانګ و خـــــروش
نوحه و بانګ و خروش که کـــــــند روح فګار

# پښتو پخواني قصايد
## د امير محمد سوري په ويرکي د شيخ اسعد سوري بوللـه

په تېر بحث کي پر پارسي رثا خبري وسوې، او دا دئ اوس په پښتو ادب کي پر رثايي قصيدې خبري کيږي :
د شيخ اسعد سوري قصيده هم يو راز خاص فني آغاز او ترتيب لري. دی خپله وېرنه د فلك په شكوه پيل کوي او د آسمان د گردش اثرونه په کايناتو کي ښيي.
د قصيدې اوله برخه دغه تمهيد دئ، چي د قصيدي د تشبيب ځای يې نيولی دئ. دلته شاعر د خپل مقصد په ځرگندولو او اداکي ډېر قدرت ښکاره کوي، (۱۹) بيته وايي او د فلك د تېري او ظلم مناظر ښيي او دا تمهيد په استادي داسي بېدي:

د فلك له چارو څه وکړم کوکار — زمولوي هرگل چي خاندي په بهار
هر غټول چي پر بېديا غوړېده وکا — رژوي يې پاڼې کاندي نار په نار
ډېر مخونه د فلك څپېړه شنه کا — ډېر سرونه کا تر خاورو لاندي زار
د واکمن له سره خول پرېباسي مړ سي — د بېوزلوويني توی کاندي خونخوار
چي له برمه يې زمری رپي زنگلوکي — له اوکوبه يې ډاري تېر و جبار[7]
هم يې غشی سکڼي ډال د ژوبلورو — رستمان ځني ځغلاکاندي په ډار
چي يې ملاوي نه کېږي په غښتليو — دا فلك پر وکا څه کاري گذار

په يوه گــــردښت يې پرېباسي له برمه
نه يې غشی نه لېندئ وي نه يې سپار

تر دې ځايه د قصيدې تمهيد په تدريجي ډول تر مطلبه پوري را رسېږي او اوس نو شاعر غواړي، چي د دغو تېريو او ظلمونو تر بيان وروسته پخپله د فلكه سره وينا وکي، په دغو تېرو بيتوکي خو شاعر له يوه غائبه حکايت او شکايت کاوه، مگر وروسته له غائبه مخاطب ته التفات کوي او دا هم يو فني ترتيب دئ، چي لومړی د گيلې او شکوې آغاز له غايبه وسي او داسي فرض کړای سي، چي گويا هغه هلته نسته او نه اروي او شاعر هم نه غواړي چي خپله شکوه د هغه غوږ ته ورسوي. مگر وروسته چي د ده تأثر ډېرېږي او حوصله يې هم تنگېږي نو لکه په غشي ويشتلی زخمي پر اصلي ويشتونکي باندي حمله کوي او فلك له غيابه حضور ته راولي او له هغه سره خپلي گيلې او ماڼې حضوراً وايي. دا التفات په صنعتي لحاظ دلته ډېر خوږ او مفيد دئ. چي پسله يوه تمهيده له غايبه مخاطب ته التفات کوي، دلته فلك ته په يوه احتجاجي مخاطبه داسي پيل کيږي :

څه تېری څه ظــــلم کاندې اې فلــــکه
ســــتا له لاســـه نه دئ هيڅ گل ببله خار
په ويرژلو لور[8] نه کړې په زړه کراړيه
پر نتلـــــــيو اوروې د غـــــــــــم ناتار

---

[7] اوکوب :- عظمت.

[8] لور : مهرباني

دا مخاطبه هم يوولس بيته ده، او په ډول ډول د فلك تېرى او جفا څرګندوي او په پاى كي په ډېره استادي او مهارت خپل مقصد ته ګرېز او تخلص كوي، او دا مرحله د ادبي معاييرو سره بالكل سمه ده او په ادبي اصطلاح (حسن تخلص) ورته ويلاى سو.

كله غـــــورځـــــــوې واكـــــمن له پلازونو[۹]
كله كښـــــــــــېنوي په خــــــاوروكي بادار
زموږ پر زړونو دي نن بيا يو غشى وويشت
ودي ژوبلــــــــــله په دې غشي هــــــــــــــزار
پر ســـــوريو باندي وير پرېووت له پاســـــه
محـــــــمد واكـــــــــمن چي ولاړى په بل دار

دلته اسعد د امير محمد عدالت اوكردار ښيي او بيا نو د ده پر اسارت او مړګ افسوسونه كوي او په دې ويركي د غوريانو د درد او الم ترجماني داسي كوي :

په دې وير د غور وګړي تور نمري سول
په دې وير رڼا تياره ســــــــــوله د ښـــــار
ګوره څاڅي روڼې اوښي له دې غـــرونو
داكړونګى[۱۰] ساندي لي په شـــــــورهار

شاعر دلته طبيعت ته رجوع كوي او د غور ښكلي مناظر په دې ويرجنه پېښه كي هم نه څني هېرېږي او چاپېر د شاعر په طبيعت كي داسي جلوه ګري كوي :

| | | |
|---|---|---|
| نه هغه زرغا د غرونو د بېديا ده | | نه د زركيو په مسا دئ كتهار |
| نه غټول بيا زرغونېږي په لاښونو | | نه بامي بيا مسېده كا په كهسار |
| نه له غرجه بيا راځي كاروان د مشكو | | نه رادرومي غور ته بيا جوپې د شار |
| د پسرلي اوره تودې اوښي تويوينه | | مرغلري به نيسان نه كړي نثار |
| دا په څه چي محمد ولاړ له نړيه | | په وېرنه يې سو غور ټول سوګوار |

وګورئ ! دلته د طبيعي شعر ښكلي ښې څرګندېږي، د شاعر تكيه ټوله پر طبيعت ده او خپل نظر پر طبيعي مناظرو باندي ځغلوي او په درد او ويركي هم خپل محيط او چاپېر نه هېروي، د ساندو اوكوكارو په وخت كي هم د غور غرونه او دښتونه، د سرو غاټولو فرشونه، د مښكوكاروانونه او د پسرلي د بارانو مرغلري شيندنه او د زركوكتهار او د ګلونو مسا يادوي او دا ټوله د ميحط او طبيعت يوه ښكلې ترجماني ده.
دلته تاسي د فرخي هغه قصيده هم ولولئ چي د سلطان محمود پر مړګ يې ويلې ده. دا شاعر د خپل محيط ترجمان او د ښاروالو د احساساتو او احوال مصور دئ او داسي وايي :

---

[۹] پلاز : تخت.
[۱۰] كړونګى : آبشار.

| شهر غزنین نه همانست که من دیدم پار | | چه فتاده است که امسال دگرگون شده |
|---|---|---|
| خانه ها بینم پر نوحه و پر بانگ خروش | | نوحه و بانگ و خروشی که کند روح فگار |
| کویها بینم بر روی زنان همچو رمان | | چشمها کرده زخونابه برنگ گلنار |
| حاجبان بینم خسته دل و پوشیده سیه | | کله افگنده یکی از سرو دیگر دستار |
| مطربان بینم گریان و ده انگشت گران | | رودها بر سر و بر روی زده شیفته وار |
| | | |

فرخي یو ښاري او درباري شاعر و، د ده د تفکر او تخیل مجرا هیله وه. په کوم ځای کي چي احمد د غرو ښکلا او ښایسته مناظر په ساندو کي هم تصویر کول، دلته فرخي د غزني د کوڅو او کورو حال څرګندوي چي خلکو په ژړا ژړا دلته او هلته ځغستل او مهترانو خپل مخونه په څاپېړو وېرسول، حاجبانو خولۍ او لنګوټې ورکي کړې او ډمانو سرناوي او ډومبکي پر خپلو سرو او مخو باندي د لېونو په څېر ووهل.
د دواړو قصیدو دغه فرق ته ځیر سئ، چي دغه خصایص په ټول ادب کي ښکاره کېږي. د قصیدې دغه آخر بیتونه هم ښکلا او ښایست او ځانته رنګ لري :

| نه ښکارېږي هغه سور د سور په لتو | نه ځلېږي هغه لمر پر دې دیار |
|---|---|
| چي به نجلیو په نڅا پکې خندله | چي به پېغلو کا اتڼ قطار قطار |
| هغه غور په ویر ناتار د واکمن کښېنوست | هغه غور سو د جاندم غوندي سوراړ[11] |

دلته نو شاعر د قصیدې مخ ګرځوي او بیا له فلکه سره داسي د زړه له درده ویناکوي :

لاس دي مات سه اې فلکه ! چي دي وکا
محـمد غوندي زمری د مـــــــېړیني ښکار

په وروستنیو بیتوکي شاعر خورا تندېږي او د ویر اورني او تند احساسات په مهارت ښکاره کوي :

| شین زړګی فلکه ! ولي لا ولاړ یې | | اې د غور غرونو په څه نه سوئ غبار |
|---|---|---|
| مځکي ولي په رېږدلو نه پرېوزې | | لاندي باندي سه چي ورك سي دا شعار |
| چي زمري غوندي واکمن ځي له جهانه | | چي څوك نه کړي پر نړۍ باندي قرار |
| | | |

د فرخي د قصیدې پای د سلطان محمود سره په ویناووکي داسي دئ:

زینت و قیمت و مـــــقدار جهـــــان را بتو بود
تا تو رفتی زجهان این سه برون شد یکبار
شـــــــعرا را بتو بازار بر افـــروخـــــــــــته بود
رفتی و با تو بیــــــــکبار شـکست آن بازار

دلته خو هم فرخي خپله استادي ړغوي او قصیده په مهارت تماموي، مګر د لوړ بیته څخه لړ څه توزنه هیله هم ښکاري، چي ښایي شاعر په دغه ویرکي د خپل بازارکوټه والي هم نه وه هېره کړې او دا یو ډول ځاني او طبقاتي شعور دئ، چي په یوه

[11] سوراړ : ګرم دښت.

عمومي ماتم کي نه ښايي. اما اسعد خپله قصيده په بل ډول پای ته رسوي او بله نتيجه ځني اخلي، چي يو ډول ملي غرور او ننګ او اجتماعي شعور ځني ښکاري.
دلته د پښتنو عنعنوي ننګه بيانيږي، او د سوري ټبر وياړنه پر بنا کيږي، چي په اجتماعي او اخلاقي لحاظ مهمه ده، دی وايي :

| سخ په تا اې محمده ! د غور لمر وې<br>ته پر ننګه وې ولاړ په ننګ کي مړ سوې<br>که سوري دي په مرګ ويرکاندي ويرمن سول | | په نړۍ به نه وي ستا د عدل سار<br>هم پر ننګه دي پر ننګه کا ځان جار<br>هم به وياړي ستا په نوم ستا په ټبار |
|---|---|---|

دا د پښتو د هغي پخوانۍ قصيدې تحليل و، چي تر دغي دمخه موږ اوس بله زړه قصيده په لاس کي نه لرو.

# په غوري دوره کې
# د ښکارندوی قصیده

د پښتو قصیده خو د زمانې په رنګ ورنګېدله او له خپل چاپېر څخه یې ډېر څه په ځان کې ومنله، د عربي او پارسي ادب اغېزې هم پکښې ښکاره سوې، مګر بیا یې هم خپل سبك او آهنګ او خصوصیات خوندي کړل.
د شیخ اسعد د غزنوي دورې تر پخوانۍ قصیدې وروسته موږ ته د غوري ښکارندوی یوه د ستاینې بولله بیا هم په هغه پټه خزانه کي د رنېو مرغلرو په څېر راپاته سوې او خوندي سوې ده او دا ښکارندوی هغه پښتون ستایوال او پیاوړی شاعر دئ، چي د (۵۸۰ هـ) کال په شاوخوا کي د غور په دربارکي اوسېدی او محمد بن علي د تاریخ سوري لیکوال د ده د بوللو یو غټ دېوان په بُست کي لیدلی و (پټه خزانه).
د غور له تاریخي لوړتیا او عظمته او د سور د درنې شاهنشاهي کورنۍ څخه اوس موږ ته تشي د ښاروکنډوالې او د فېروزکوه یو جګ منار پاته دئ، چي د دغو پښتنو صنعتي ذوق او د عمران لیاقت ځني څرګندېږي.
خو د دغو پاتو آثارو سره سره د شیخ اسعد او د ښکارندوی ادبي مرغلري هم د بلیغو او غرا قصایدو په لړکي د پښتو ادب پر خول باندې په ډېره ځلا او رڼا برېښي.
د سوریانو د درنې کورنۍ نامتو بریالی او د هند فاتح سلطان معزالدین یا شهاب الدین خو د سلطان محمود په څېر په واور وارو د هند پر لور لښکري بېولي او هلته یې د اسلام او عدالت او د اخلاقو او تهذیب رڼا خپره کړې ده[۱۲].
داسي ښکاري چي ښکارندوی د ده د دربار ستایوال شاعر هم په دغو جنګي سفروکي ورسره ملګری و، اوکله چي شهنشاه پر اباسین باندي تېرېدی، نو ښکارندوی د ده په ستاینه کي یوه قصیده ویلې وه.
دا قصیده په پوره فني دود په یوه پسرلني تشبیب شروع کېږي او شاعر خپل نهایي قدرت د پسرلي د مناظرو په تصویرکي ښکاره کوي، کوم حیات، کوم حرکت، کوم نشاط او ښورښت چي د پښتونخوا په پسرلي کي سته او د پارسي شعر د قصایدو د تشبیب یو ښکلی او په زړه پوري زېور دئ په دغه قصیده کي هم پروت دئ، لکه چي وایي :

د پسرلي ښکلونکي بیا کـــړه سینګارونه
بیا یې ولـــــــونل په غـــــــرونو کي لالونه
مځکه شنه، لاښونه شنه لمنې شنې سوې
طـــیلسان زمــــردي واغوســـته غـــرونه

د نسیب ادبي او فني لوازم او ښېګني خو دا دي چي شاعر خپل مقصد ته یوه ډېره مناسبه او سمه لار پیدا کي او خپل اروېدونکی په خوږو الفاظو او په زړه پوري مضمون داسي راکښېباسي، چي د ده هغه اصلي مقصد په پوره زړه او مطمئن نفس واروي. د قصیدې مضامین سره پوري او متناسب وي استحالت عقلي ونه لري[۱۳].
درانه او خواتوري کلمات پکښې نه وي اوکه ستاینه کوي هغه هم په داسي ډول وي چي ادب، نزاکت او د مادح او ممدوح مقام پکښې خوندي سوی وي. د ښکارندوی د قصیدې نسیب خو یو د ښکلا بهېر او د جمال انځور او د ښایست بېخي ښه منظر دئ، هر بیت یې پر خپل ځای ښه ښکاري او د ښکلا ترجماني کوي، مثلاً د ګلو ښه بوی خو هر څوك ستایي، مګر دغه مقصد په فني ډول او لطیف تشبیه سره اداکول د پیاوړي شاعرکار دئ، وایي:

هـــر پلو د ګلو وږم دئ لـــونلی
ته وا راغله له ختنه کاروانونه

---

[۱۲] طبقات ناصري.

[۱۳] المعجم في معاییر اشعار العجم.

دلته د پښتو د تشبیه له نازکو اداتو څخه ته وا داسي لطافت لري چي د ختن د کاروانو وړمې ډېري خوندوري کوي او مضمون د حقیقت خوا ته نزدې کوي، له اغراقه یې پاکوي، ځکه چي اصلاً خو د ختن کاروانونه او هغه هم په مشکونډیو بار نه دي راغلي، مګر شاعر په خپل ادبي اعجاز د پسرلي له ګلو څخه دغسي وږم تون جوړوي.
د قصیدې خورا دقیق او ځیرتابه ځای هغه دئ، چي شاعر خپل مقصد ته هڅه کوي او غواړي چي ستاینې یا وېرنې یا کوم بل مقصد ته مخه کي. په فني ژبه دغه تخلص یا ګرېز د شاعر په مهارت اړه لري، چي رکیك او سپك نه سي. منوچهري د یوه نوروزي او بهاري نسیب په پای کي د خپل ممدوح ابوسهل زوزني ستاینې ته داسي د ګرېز لاره مومي :

شاخ بنفشه بر سر زانو نهاده سر

مانندۀ مخـالف بوسـهل زوزنی

دا تخلص خو ظاهراً ډېر ښه او ماهرانه ښکاري، مګر په انتقادي نظر خو لږ څه سپکي هم لري، ځکه که دلته د بوسهل زوزني مدح مطلب وي نو د ده د مخالف تشبیه له شاخ بنفشه سره چي ډېر دلچسپ او ښکلي او لطیف شی دئ ناوړه خبره ده.
خو د ښکارندوی تخلص د حسن ادا او صنعتي لطافته ډك دئ او دلته د بلبل ستاینې چي د پسرلي د ګلونو په مدح کي خواړه بږغونه راباسي یادوي او په یوه خوږه تشبیه داسي د ګرېز لاره ځان ته پیدا کوي :

نه به چوني په ستاینو د جنډیو موږ سي

نه به مـــــوږ سم د سلـــطان په صفتونه

د شــــنسب د کـــهاله خـــتلی لـــمر دئ

د پسرلي په دود ودان لـــه ده رغـــــونه

تر دې وروسته شاعر د ستاینې ډګر ته وردانګي او دا ستاینه ټوله رزمي رنګ لري او د غوري سلطان مړاني، لښکرکشۍ، بریالیتیاوي، زغلونه او یونونه یادوي. د تورو ځلا، د زمریو یرغل، د مځکي فتوحات، د زلمو جنګي کارنامې، د هند د تورو مځکو لوټونه، د جګړنو بهېرونه د ده د ستاینې موضوعونه دي، مګر د ستاینې دا ټول شاعرانه زیار او هڅه پر داسي خوا روانه ده، چي کوم فني عیب نه لري، تشبیهونه او استعارې او کله کله اغراق خو د شاعرۍ ښکلي پلوونه دي، مګر د ښکارندوی په دغو صنعتي تخلیقاتو کي کوم عقلي استحالت نسته او دا د ده کمال دئ، چي د شعوري صنایعو په پېچومو کي داسي ګرزي راګرزي چي د انساني تصور او تعقل له دایرې څخه نه وزي، چي سبا فني نقادان د ده شعر ته ګوته ونیسي او ووایي چي شاعر د مداحۍ په څپو کي هسي لاهو سوی دئ، چي د تعقل تر خند دباندي وتلی دئ.
مثلا شمس الدین محمد بن قیس رازي د اووم هجري قرن نقاد د انوري دا بیت د عقلي استحالت له پلوه غندي او دا د ده د شعر ناولیتوب بولي، چي خپل ممدوح په داسي ډول ستایي چي عقل یې نه مني، انوري وایي:

اگـــــر فـــنا در هســـتی بگل براند اید

ترا چه باك نه ذات تو مستعد فناست

داسي فني عیوب د لویو او مشهورو شاعرانو په آثارو کي هم لیدل کېږي، د عربو متنبي غوندي شاعر هم د مداحۍ په زغل کي داسي ټکرونه خوري، چي وروستني کره کتونکي د ده دا بیت ډېر غندي او هغه رازي وایي چي په دې بیت کي متنبي د خپلي مور پر اوږو سپرېږي او د ممدوح مخي ته ځي :

لواستطعت رکبت الناس کلهم

الی ســـعید بن عـــبدالله بعرانا

یعني که ماکولای سوای ټوله خلك به مي اوښان کړي وای او پر هغو باندي به سپور د سعید حضور ته تللی وای.
رشتیا هم دا ده، چي د شاعر دغه مضمون آفریني او ستاینه ډېره بارده او رکیکه ده او د انتقاد ګوته ورته نیوله کېږي.
اوس نو تاسي د ښکارندوی دغه طبیعي او معقوله ستاینه چي له عقلي استحالته تشه ده او هیڅ رکاکت نه لري هم لوستلای سوای، چي څو بیتونه یې را اخلم :

په جـــوپو جوپو جـــګړن یې هـــند ته یون کا

چي د غـــــور بادار همت کـــا په زغـــــلونه

ځـــپان ســـیند یې هـــــــم له ډاره ایلایي کا
پر اوږو وړي د غـــــــوریانو ښـــــــه اېرونه[14]
په هــــــر کال اټك د ده ښـــه راغـــلی کاندي
غـــوړوي په ځـنډو خـــپل پاســــته سالونه
پښـــتونخوا ښکلي زلمي چي ځغلي هند ته
نو آغلـــــیه پېـــــــغله کانـــدي اتڼـــــــونه

دلته به موږ د تاریخ هغه وقوعي او رشتیاني مناظر را په یاد کو، چي د غوریانو کاروانونه هند ته روان دي او د اباسین پر ځپانو اوبو باندي د دوی بېړۍ نڅا کوي او د سیند غاړي په پستو رېګو فرش دي او په دې خوښي کي ښکلي پېغلي د اټك پر ګذرګاه خاندي او ناڅي.
ښايي چي ځیني ښاغلي لوستونکي به دلته دا غواړي چي د پښتو قصیدې فکري ذخیره او د ستاینې د دغي قصیدو اجتماعي او ادبي اړخونه او د شاعر د فکر قدر او قیمت په ټولني تطور کي په انتقادي نظر او کره کتني سره واروي.
خو زه به دغه مباحث د دې څېړني اخیرنیو برخو ته پرېږدم، مګر دا نکته به اوس هم ووایم چي د پښتو شاعر د تفکر او تخیل جولانګاه هم د پښتو او پښتونوالي ښکلی او واقعي غولی دئ او دغه پښتانه زلمي چي د جګړې مهیب ډګر ته په خندا او نڅا راغلي او د یوه لوی ملي مقصد له پاره سرونه بایلي دوی له کانو بوټو څخه نه دي پیدا سوي.
دغه ښایسته او آغلي پېغلي د دوی خوندي مېندي او خپلي دي، پر دوی خپل زلمي ګران دي خو بیا هم دوی د فراق او بېلتانه پر وخت له خوښۍ او نشاطه اتڼونه کوي او خپله خوښي د اتڼ او نڅا په زړه وړونکو نندارو کي ښکاره کوي.
دا ولي ؟ ځکه دلته یو ملي لوړ هدف او لوړه غایه مخي ته ده او دغه هم د پښتانه شاعر او پښتو ادب هغه امتیازي ټکی دئ.

# قصیده د روښانیانو په مکتب کي

تر غوري دوري وروسته د پښتو ادب په تسلسل کي یوه ناوړه تشه سته، ځکه چي له (٦٠٠ هـ څخه تر ٩٠٠ هـ) پوري موږ ډېر لږ آثار اوس په لاس کي لرو او په خاصه توګه بیا په دغو درو سوو کالو کي د قصیدې نمونه تر هغه وخته نه لرو، چي د پیر روښان پیاوړي شاګردان لکه دولت او انصاري او ارزاني او مخلص او نور تر (٩٥٠ هـ) وروسته په قصیده خوانۍ پیل کوي.
دا رکود او انفصال طبیعي هم دئ، ځکه چي تر (٦١٨ هـ) وروسته د چنګیز وحشي یرغلونه پر پښتونخوا راغله، دوی د غزنویانو او د غوریانو د عظمت مانۍ په غزني او بامیان او فېروزکوه او هرات او بلخ کي ونړولې او بیا هم ګوډ تېمور دا هیواد پسي سپېره کی، په دغو تاړاکو او یرغلو کي چي غټ غټ ښارونه په سپېرو ډاګو بدلېدل او یو متنفس هم نه پاتېدی نو هلته علم او ادب او پوهنه هم پوپناه کېدل او پښتانه هم د لویو غرو سرو ته ختل چي له دې وحشیانه تاړاکه ځانونه وژغوري.
دلته نو د دوی سلسله له غوره سره وشلېدله او کوم وخت چي ابن بطوطه عربي سیاح تر پښتونخوا د هند خوا ته تېرېږي د ده په قول افغانان د سلیمان د غرو په سلسلو کي خپاره او مېشته وو او هم له دغه سببه د قصیدې تسلسل دغه درې پېړۍ له خپله لرغوني کانون سره پرې کړی ښکاري.
مګر کله چي د لسمي هجري پېړۍ په نیمایي کي بیا د پیر روښان په فکري او ادبي مکتب کي قصیده نه په هغه قوت او

[14] ایر : کښتی.

انجام ښکاره کيږي نو موږ ته دا خبره زباتيږي، چي په دغه تشه دوره کي به هم قصيده په ادب کي وه خو که تر اوسه د دې دورې د قصيدې نمونې زموږ لاس ته نه وي راغلي له سابق او لاحقه دا معلومولای سو، چي دا طلايي مزي بالکل نه وو شلېدلي او د غورې دربار د قصيده سرايانو لرغوني روايات د لسمي او يوولسمي پېړۍ د شاعرانو په مخ کي پراته او موجود وه.

په دغو وختو کي پښتو قصيده د پير روښان او بيا د خوشحال خان په مکتب کي وروزله سوه، مګر پس له غوري درباره درې پېړۍ د قصيدې نمونې اوس موږ نه لرو، خو بيا چي د پير روښان په روحاني بزم کي وځلېدله نو رنګ او جوله يې بالکل بېله وه، يعني هغه قصيده چي په غوري دربار کي په فني او ادبي ګڼو ښکلې د مدح او رثا له پاره ويله کېده د پير روښان په بزم کي خاص د تصوف او الهي تفکر په رنګ رنګېدلې راووته. د روښانيانو قصيدې خو د وحدت او تصوف په افکارو ډکي او غني دي، مګر د صنعت او ادب او بيان له پلوه وچي کلکي او بې خونده او تشي توري دي او د دوی د شاعرۍ او فني کمال او صنعتي جمال خوا سپېره ښکاري.

**د ارزاني او ميرزا قصايد :**

د دولت او ارزاني او انصاري کوم قصايد چي اوس موږ ته پاته دي د مضمون او انسجام له پلوه بالکل نوي کړه وړه لري او داسي ښکاري چي د سنايي تر فکري تحول وروسته د تصوف او حکمت او موعظت قصايد او بيا فخرالدين عراقي د جذبې او حاله ډکي ويناوي په دغو اوقاتو کي دوني مقبولي سوي وې، چي د رندانو او زړو د خاوندانو بزمونه هم په دغو خبرو تاوده وه او د پير روښان د مکتب شاګردان هم ټوله په دغو مردافګنو ميو مست وه.

د سنايي وجد او حال، د عراقي درد او سوز، د مولانا جلال الدين بلخي مستي او نشاط او د وحدت په متلاطم درياب کي د دوی لاهو کېدل، د روښانيانو د قصيدو اصله شمزۍ ده، مګر فرق دوني دئ چي د روښان په مکتب کي ادبي قدرت او د شاعريت حقيقي جلوې ډېري کمي دي. نه هغه شاعرانه اقتدار او طمطراق سته، کوم چي د غزنوي او غوري دورو په قصايدو کي ليدل کيږي، او نه هغه مترنم او د انګازو او خوند او ښکلا ډک کيف سته چي موږ دمخه د اسعد او ښکارندوی په قصيدو کي وليد.

که څوك د روښانيانو دواوين په انتقادي نظر وګوري او د صنعتي ښکلا تجليات هلته نه مومي او د دوی په بيان او کلام کي د خوند او ذوق کمی حس کوي نو بايد چي د روښانيانو ادب او خاص بيا قصيده وچه او له صنعتي او ادبي ښکلاوو څخه تشه وبولي او دا د پښتو ادب يوه خاصه دوره ده، چي موږ يې په ادبي انحطاط قايل يو او ښايي چي دا هم د هغه خاص کيف اثر وي، چي دغه پښتانه روښانيان په هند کي له محيط څخه ليري پاته سوي او له پخوانو ادبي رواياتو او ښکلاوو څخه بيرته سوي وه. نو ځکه د دوی په کلام کي هغه خوږوالی او هغه پياوړتوب نه و، چي موږ يې د اسلافو په آثارو کي په ښکاره ډول وينو.

ښايي چي ځيني پوهان به د دغه ادبي رکود او تيارې علت دا وګڼي، چي روښانيانو په پښتو ادب او قصيده کي د تصوف او عرفان او الهيت روح پو کړی دئ او دغه مضامين د دوی غايي مقصد او هدف و، نو ځکه د شعر په ښکلا او د ادب په ذهني تخليقاتو پسې نه ګرځېدل.

مګر دا خبره هم د دوی عذر نه پر ځای کوي، ځکه چي تصوف او عرفاني مضامين خو د شرقي ادب او فارسي قصيدې چاشني وه او د خوند او خوږوالي او مستۍ او نشاط سبب يې سول او په دغه رنګ کي ځيني ادبي شهکارونه لکه حديقه او مثنوي لرو، چي تصوف په هيڅ ډول د هغو آثارو ادبي مقام او صنعتي او هنري قيمت نه دئ ورکښته کړی.

نو ځکه د روښانيانو د دورې ادبي انحطاط پخپله د دوی د هنري لياقت لږوالي ته منسوبوو او دا وايو، چي تر دوی وروسته د خوشحال خان له ادبي نهضته سره بيرته قصيده په هغه پخواني آب و تاب ژوندۍ سوېده.

ميرزا انصاري چي په (۱۰٤۰ هـ) د دکن په يوه جګړه کي وژل سوی او د روښان پير لمسي دئ په يوه قصيده کي عرفاني معروفي خبري په داسي ډول کوي، چي هيڅ ادبي خوند يا صنعتي ښکلا نه لري، دی وايي :

| ترو عاشق به نزدېکت کا | | معشوقه چي حجاب واخلي |
|---|---|---|
| ګهي قهر ګه رحمت کا | | آواز ښه واړه د يو دئ |
| د يوه مولا صفت کا | | چي په زمکه په آسمان دي |
| او سرود يې زيات لذت کا | | په هر صورت سامع پوهيږي |
| کم دليل ځني وحشت کا | | عارفان به پرې خوښيږي |
| ننداره به د وحدت کا | | هر واصل چي يګانه شي |
| نه زياتی نه کمامت کا | | په يوه کي دويم نشته |

اوس نزدې دغه مضمون ته د حضرت سنايي له ملکوتي ارغنونه دا نغمه واورئ، چي په څه قوت او سلاست او پوخوالي په فضا کي انګازې اچوي :

| نزهی که جليلست بر نعوت جلال | | ممقدسی که قديمست از صفات کمال |
|---|---|---|
| به تيغ غيرت او کشته در هزار قتال | | هر آنکه شربت سبحانی و اناالحق خورد |
| نهاده است به پايش هزارگونه شکال | | زآهوان طريقت هر آنکه شير آمد |
| مراست جام وصالش هميشه مالامال | | زما زم ملکوتش کند دلم چون خون |
| شراب وصلش دايم مرا شدست حلال | | بنغمه های مز امير عشق او مستم |

(ديوان سنايي ۱۹۲ مخ)

اوس دغه مطالب د روښان پير د بل شاګرد يعني ارزاني خويشکي څخه هم واورئ، چي د زرم هجري کال په شاوخوا کي ژوندی دئ، دی وايي:

| د احد ډېوه کړه بله | | د اثبات په کور دننه |
|---|---|---|
| او وې کاږه له بغله | | ستا زړه جام جهان نما دئ |
| پوشيده دئ له احوله | | يو څراغ دئ چي بلېږي |
| تر اعلی هم تر اسفله | | د دغه څراغ رڼا ده |
| د انا لول يې ښيله | | چي منصور په سر د دار دئ |
| د خپل زړه له هيکله؟ | | بايزيد سبحاني ولوست |
| د رندانو له عمله | | د ملا پر کتاب نشته |
| د دې غير له امله | | د کامل تخته ده پاکه |

همدغه مضمون ته ورته مضمون دمخه عراقي په داسي ښکلو او خوږو الفاظو په شاعرانه مهارت بيان کړی و :

| روشنان آئینه دل چون مصفا بینند | | روی دلدار در آن آئینه پیدا بینند |
|---|---|---|
| از پس آئینه دزدیده برویش نگرند | | جان فشانند بروکانرخ زیبا بینند |
| عارفان چونکه زانوار یقین سرمه کشد | | دوست را هر نفس اندر همه اشیا بینند |
| در حقیقت دو جهان آئینه ایشانست | | که بدو دررخ زیباش هویدا بینند |

(دیوان عراقی ص ۷۵)

دلته نو اوس پخپله ښاغلي لوستونکي اټکل کولای سي، چي په غزنوي او غوري دوروکي خو پښتو قصیده اوږه پر اوږه له پارسي قصیدې سره تله او په ځینو خصایصوکي لا ځني دمخه کېده هم، مګر د روښانیانو په مکتب کي خو قصیده ژوندۍ وه، اما جوله او بڼه یې کورټ اوښتي وه او هغه لرغوني ښېګني او خوږتیاوي او د جړاو او سینګار ګېڼې یې نه درلودې. مګر دغه وچه کلکه او توره تیاره دوره اوږده نه سوه او خوشحال خان بیا د قصیدې دلربا ناوې په هغه سینګار او ښایست راوایسته چي په لفظي او معنوي خصایصو او فني معیارکي هغه لرغوني قصیدې ته ورته ده.

**قادر داد :**

هم له دغي ډلي څخه قادر داد د محمد زمان زوی د روښان پیر له کورنۍ څخه تر (۱۱۱۸ ق) پوري ژوندی و، چي پلار یې هند ته فرار سوی او هلته به مړ وي، دی هم اوږدې عرفاني غزلي لري، چي کله کله یې دغه غزلي د قصیدې درشل ته هم قدم ږدي.

د ورکي خزانې مؤلف (۳۹۵/۱) د ده څه نظمونه راخوندي کړي دي، چي د روښان پیر د ادبي مکتب یو ورك پلو را روښانه کوي.

قادر داد د روښانیانو په صف کي د کریمداد بنګښ تر څنګ

(مګر وروسته) د دربېدلو حق لري. ځکه چي په کلام کي یې شعریت تر واصل، دروند ښکاري. عمومي موضوع خو یوه ده، مګر کله کله هنر

هم پکښې ځايیږي او سړی ویلای سي، چي غزل یې د شعر ښکلاوي لري، لکه :

چي مدام په زړه کي خـــیال لري و جـــنګ ته
څوك به څه وایي دې مست شوخ و شنګ ته
چي پرې اه د عــــــــاجــــــزانو اثـــر نه کـــه
د نرمۍ خــــوی به څه ســـتایي و ســـنګ ته
لـــکه زه چي د هجـــــران په اورګـــذار شــــوم
خدای دي هسي ساعت پېښ نه که نهنګ ته
اندېښـــــني لــــکه خــــــــارونه رالګــــــیږي
په آرام مي اړخ نه لــــــــګي پالـــــــنګ ته
عـــاقبت به ســـتا د غــم حـــصار ته پرېوزم
چي ارتاو دي کــــــړم د میني وکـــــړنګ ته
د تهمت درســـته رقیب کړه په مـــا تشه
د غضب توره په لاس ګرځي و څنګ ته
رقیبان د کوځې سپي شوه قـــادر داده !
مــــدام غـــاپي د دین وږي ملـــنګ ته

(ورکه خزانه ۱/۱۱۳)

د قادر داد د کلام په نمونو کي یوه اوږده قصیده هم سته، چي په دې ډول شروع کیږي :

ابتدا چي د حمل په درست جهان شي
زمکه سبزه زرغونه هم کوهستان شي
رنګا رنګ ګلونه ګل شي په چمن کي
ډېر عالـــــم یې و دیدن ته نګــــران شي
چي زېلي د خـزان ښایست بیا مـــومي
آه سرد بیرون له جس په ســــندان شي
(الخ)

د تشبیب په سینګارولو کي د ده قدرت دغوني دئ، مګر په تخلص او ګریز کي څه له شاعرانه مهارته کار اخلي او په هنر ځان خپل عرفاني او تلقیني مطلب ته نزدې کوي :

عـــــندلیب په ډېر هــــــوس تر ګلو ګرځي
مړاوی ګل په پرېشاني کي خــــندان شي
له مـــاضي فـــــراقه ژاړي و چــــــــمن ته
ترس مي نه له مستقبل غم د هجران شي
دا اتکل یې هــــــومره نه دئ په خاطر کي
چي به بیا دا زمـــا جـمع زړه پرېشان شي
نه به زه تر تله اوســــم په جـــــــــهان کي
نه به پاته جــــوړ دا هسي ګلســــتان شي
یا به زه وړاندي لـــه ګلـــــــه جدا کـــــیږم
یا به وړاندي تر ما پېښ پر ګل خزان شي

په دې ډول دی ورو ورو ځان مقصد ته څرمه کوي او د خزان مناظر، د ګلو مړاوتوب، د پاڼو رژېدنګ، د سمسورو باغونو خمسوري تصویر کوي، خو ښه په پای کي وایي :

بې وفا دنیا به پاتي شي له واړو
په ارمان به ځني ولاړ شیفتګان شي
له دارا له سکندر یې وفا نکړه
څه امید په دغه بې وفا دوران شي
اورنګزېب ولي پادشاه تر دنیا تېر شو
چي د عدل یې تعریف په هندوستان شي
چي دا هومره نصیحت کړم باور وکړه
ځان ته وایم تش مذکور د دیګران شي
همه واړه عیب وینم پخپل ځان کي
که بهانه په خوله دا نور نور آدمیان شي
هیڅ سړی به غلط نه ځي قادرداده !
که پیرو د انصاري بایزید روښان شي

**د کریمداد بنګښ په دېوان کي قصاید :**

د پښتو ادب د قصيدې په اوږده تاريخ کي چي کله موږ د غوري دورې تر لوړو او ښکلو قصيدو راتېر سو نو د روښاني مکتب له بې خوندو منظوماتو سره مخامخ کېږو او داسي وينو، چي تر (۸۰۰ ق) را په دې خوا پر پښتو ادب باندي د هنري رکود او د ښکلا د فقر دوره راغلې ده. مګر کله کله پخپله په دغه ډله کي ځيني د ذوق خاوندان او د هنر او ښکلا روزونکي شاعران هم پيدا سوي دي، چي له هغو څخه يو کريمداد دئ، چي په دري شعر کي ځان "عيشي" بولي.

د روښاني ډلي د منظوماتو په لړ کي د کريمداد ځيني قصيده وشمه منظومې د هېرولو وړ نه دي. د ده دېوان اکثر په هغو اوږدو تغزلاتو ډك دئ، چي سړی يې غزل نه سي بللای، خو د قصيدې ټول خصوصيات او تعريفونه هم نه لري.

کريمداد هم عمر په هندوستان کي تېراوه، په قوم بنګښ و، ځيني فارسي غزلي هم د دېوان په پای کي لري، چي ادبي ارزښت يې متوسط دئ، مګر د پښتو وينا يې تر نورو روښانيانو قوي ښکاري او سړی ويلای سي، چي کريمداد يو ناظم و، چي د شعر درشل ته ور نزدې سوی و.

د کريمداد د زوکړې ځای د هند شمس آباد او د استوګني ځای رشيد آباد و، او دا ځای هغه رشيد خان آباد کړی دئ چي د روښان پير له لمسيانو څخه و، او د هندوستان کورګاني پاچهانو هلته فراره کړی او په (۱۰۲۹ هـ ق) کال يې د اورنګ آباد په صوبه کي مځکي اوکروندې د جاګير په ډول ورکړې وې، دی وايي :

زما ځای د قــــــاعت رشيد آباد دئ
که هر څو ښهرونه ډېر دي بې شماره

د ماثر الامراء خاوند ليکي :

"رشيد خان در سنهٔ ۱۰۵۸ ق در صوبه داری نانديم بساط هستي در نورد، در شمس آباد ديهي آباد کرده، باغ طرح انداخته، نعش او را برده همانجا مدفون ساختند"، (مآثر دوهم ټوك، ۱۸۹۰ م)

نو کريمداد هم په شمس آباد کي د رشيد خان په دغه کلي کي اوسېدی، چي وروسته رشيد آباد سو، دی وايي :

دريغا سير گلگشت رشــــــيد آباد مــــيخواهم
تماشای پری رويان شــمس آباد مــــــيخواهم
می و معشوق گلرخسار و آواز خوش مطرب
کنار گنگ و سرو ســــــوسن آزاد مـــيخواهم
(د کريمداد دېوان، ص ۹۸)

کريمداد چي په دري ژبه کوم خواږه اشعار ويلي دي، خپل تخلص (عيشی) او قوم بنګښ داسي ښيي :

عيشی ام بنگشی ام خاك رهم
دين و دل باخــــــته در راه تو ام

په هر صورت د کريمداد ژوند تر (۱۰۵۸ ق) پوري چي رشيد خان مري يقيني دئ، پس له دې نه ده معلومه چي په هند کي و، که بيرته خپل وطن تيرا او بنګښو ته راغلی وي که يه؟

کريمداد په روښاني مکتب کي لوړ ځای لري، ځکه چي د ده د بيان قوت په دواړو ژبو پښتو او دري کي ځلېږي، او داسي ښکاري چي د عرفان په څرګندولو او بيانولو کي خپل هنري استعداد هم لري، او د ده ويناوي تشي بې خوندي منظومې نه دي.

تاسي وګورئ چي هنري استعداد څنګه د يوه هنرمن په تخليقاتو کي اثر کوي، او خپله اغېزه ښکاره کوي. خبري هغه خبري دي چي دولت او ميرزا انصاري يا پخپله روښان پير په خيرالبيان کي کړي دي. مګر کله چي د عرفان هغه زر د يوه ماهر زرګر په لاس ورغلي دي نو ده پخپل هنري مهارت هغه داسي سينګار او جړاو کړي دي، چي د ښکلا يوه دلکشه نمونه ده، او سړی چي يې لولي نو خوند ځني اخلي :

| د محبوب د مخ جمال دئ | | د عاشق په نظر ګورئ |
|---|---|---|
| پر سپین مخ یې ایښی خال دئ | | توري زلفي يې خوري کړې |
| بیا جنبش یې پر خپل حال دئ | | ګهي سرو د چمن شي |
| ګه طوطي شېرین مقال دئ | | ګه بلبل خوش الحان شي |
| هم يې قد په اعتدال دئ | | توري سترګي يې مکحولي |
| چي تشبیه یې په هلال دئ | | بیا عجب یې کړې وروځي |
| څه عجب ساقي کلال (؟) دئ | | درست مجلس يې په مى مست که |
| د وحدت د باغ نهال دئ | | موجودات يې برګ بر شه |
| دى دکل بانډوکلال دئ | | ګهي ساز ګهي يې مات کا |
| د جمله حیوانو ګوال دئ | | ساتندوى د زنده سرو |
| بانګ یې ووایه بلال دئ | | د اسلام په لوړه وخوت |
| دا تقلید بې مثله جال دئ | | مقلد پکښې بندي شو |
| پر هغه دیدن حلال دئ | | چي له دې دامه بېرون شو |
| هر چي تېر تر سر و مال دئ | | دا دیدن به هغه کاندي |
| پر هغه دیدن محال دئ | | چي يې آئینه شوه رنګه |
| هر چي حمیده خصال دئ | | ذمیمه اوصاف به څو که |
| چي پسندیده افعال دئ | | له بدئ به تل پرهېز که |
| په زر شپړ پنځوسم کال دئ | | کریمداد دا بیان کښلی |
| بیان کړی يې خپل حال دئ | | یادګاري یې ده پرې ایښې |
| عاقبت يې ارتحال دئ | | هر چي راشي پر دا دنیا |

**د کریمداد بنګښ د قصایدو هنري خوا :**

کریمداد کله د قصیده سرایانو پر سنت برابر اول د بهار د مناظرو تشبیب لري، او بیا خپلو عرفاني او تلقیني مطالبو ته تخلص اوګرېز کوي، او دلته نو سړی دا مني چي زموږ د پښتو ادبیاتو کړۍ د لوی افغانستان په سلسلة الذهب پوري نښلي، او هغه رنګه مطالب چي سنايي پخپلو عرفاني او اخلاقي قصیدوکي ځای کړي وو، دکریمداد په کلام کي هم هغسي ښکاري، لکه دا قصیده :

تشبیب

| عندلیب مي په فغان شه ترګلزاره | | ښه نسیم چي زېرى راوړى له بهاره |
|---|---|---|
| چي په ځان يې محنت وڅکاو له خاره | | په وصال يې دګل ډېره خوښي وشوه |
| په هر هر نفس يې ذوق دئ له دلداره | | په چمن يې له ګلبانګه شراشور که |
| په هر لورګلونو وتړل قطاره | | د نیسان او رو مدد ورسره وکه |
| د نمرود اور شه څرګند له لاله زاره | | مست بلبل لکه خلیل پکي جاروزي |
| نرګس سترګي کړې ور پورته له خماره | | د لاله پیاله له سرو شرابو پر شوه |
| چي په هسي ښه موسم ګرزې بې یاره | | څه راحت به له ژوندونه که په بخره |

د تخلص بیتونه

| پهٔ جهان کې تفرج پهٔ تجربه کړې<br>دغه زمکه لګد کوبه د هر چا شوه | | لا څونه یې مقیم شوې له رفتاره<br>چې مقیمه پخپل ځای وې نه د واره |
|---|---|---|

اصل مطلب ته ګرېز

| له طلبه یو زمان فراغت مه کړه<br>حماقت به دي بدل پهٔ پوهه نه شي<br>افرینش واړه پر تا دئ نثار شوی<br>قافله دي د همت اوده پهٔ خوب ده<br>سرو ځان د آزادئ و ملك ته ویوست<br>قلپ زر به دي قبول پر صراف نشي<br>پهٔ تحقیق به تر انجامه ورسېږي<br>د رښتیني میني قیاس کړه له پتنګه<br>د اشنا میني مي زړه هسي دوه نیم که<br>خشك و تر به یې یکباره سره بل که<br>شراشور به د دیدن پهٔ اهل ګډ که<br>توري زلفي تاریکي دي لکه لیله<br>څوك له شوقه بې تسبیح که تل تر تله<br>له عاشق سره یکتا شو بې پیونده<br>له صوفي سره کلام د تصوف که<br>که ګذر یې د قبور پهٔ عالم وشي<br>چې هر ښهر دي معدن دئ د حورانو<br>ښایسته یې پهٔ هر لوري پهٔ څو لونه<br>پهٔ خوبئ دي هیڅ د یار برابر نه دئ<br>د ما ځای د قناعت رشید آباد دئ<br>د "کریم" پهٔ دود به ژاړي د زړه ویني | | خبر ته شه له هر ملکه له دیاره<br>څو له کوره دي سفر وي تر بازاره<br>د خسیس پهٔ دود لاس مه وړه تر سناره<br>ته پهٔ بانګ د استغنا یې کړه بیداره<br>مېوه داري وني لاندي وي تر باره<br>څو یې ور نه وړې د عقل تر معیاره<br>هره چار چې پهٔ اخلاص کړي اختیاره<br>چې یې خپله هستي ځار کړه تر نګاره<br>چې تشبیه یې پهٔ څهٔ نشي بې اناره<br>پهٔ هر زړه چې شي د عشق شعله حراره<br>که یو ځل پهٔ جلوه ګا شي غمګساره<br>تجلی یې د مخ زیاته له نهاره<br>او د ځینو سریکار شه له زناره<br>پهٔ حجاب کي یې مخ پټ که له اغیاره<br>او له رنده میخواره سره میخواره<br>شهیدان به ژوندي پاڅي له مزاره<br>تر بهښته دي کم نه وینم هندوباره<br>آراسته یې پهٔ انهار او پهٔ اشجاره<br>تجربه ده ډېره کړې پهٔ ډېر واره<br>که هر څو ښهرونه ډېر دي بې شماره<br>هر چې بېل شو د دوستانو له قطاره |
|---|---|---|

یو زمان له درد و غمه نه خلاصیږي<br>
بېلـــتانه مي رڼا ورځ کـــــړه شب تاره<br>
(دېوان، ص ٤٠)

د کریمداد ادبي او هنري استعداد پهٔ دواړو ژبو کي سره برابر دئ، او هغه دا چې ده د روښاني مکتب قصیده له رکوده او بې خوندئ څخه را ایستلې او بیا یې د هنر پر ښکلي تخت کښېنولې ده. علت یې هم دا دئ چې ده پهٔ دري ژبه کي هم دغوني غښتلی لاس درلودی، چې دلته یې یوه غزل رانقلوم :

چو بلبل هر زمان آشفته گرد چمن گریم
بیاد قامت رویش بسر و یاسمن گریم
چو میرم در غمت ای جان ! بیا بعد از وفاتم بین
که از سوز، درون پنهان زمردم در کفن گریم
دلم خون شد، زحسرت تا بکی چون پیر کنعانی
جدا از یوسف خود مانده در بیت الحزن گریم
چنان در محنت راه و بلای منزل افتادم
که گاه از هجر یار و گاه بر یاد وطن گریم
گهی بر شورش و افغان مجنون نغمه یی گریم
گهی در بیستون با ناله های کوهکن گریم
ندارم همدمی اندر همه گیتی، مرا آن به که
در پیغوله غم، بعد ازین با خویشتن گریم
کجا از محرمان بزم وصل او شوم "عیشی" !
پس این کز شوق او چون شمع در هر انجمن گریم

(دېوان، ص ۹۰)

**واصل :**
د ده نوم پخوا موږ اروېدلی و، خو ښه مو نه پېژاند. په (۱۳۵۳ ش) کال ښاغلي پوهاند رشاد د ده څو نظمونه خپاره کړل، چي د ارزاني او دولت او انصاري غونډي یې سړی په فکري لحاظ د روښاني فکر یوه کړی ګڼلای سي. خو په کلام کي یې هنري او شاعرانه ارزښتونه لږ دي.
په دغو خپرو سوو نظمونو کي یو څو اوږدې غزلي سته، چي د قصیدې تر تعریف لاندي نه راځي، خو په (۳۵) مخ کي :

| | | |
|---|---|---|
| هر چي یو سړی افګار شي<br>ځیني دی غواړي ارمان کا | | عیال درست پسې بیمار شي<br>څوك د خپل صورت په ډار شي |

قصیده ده چي (۳۵) بیته لري او په پای کي یې داسي ختموي :

| | | |
|---|---|---|
| نصیحت د کاملانو<br>په اسلام باندي اقرار که<br>هیڅ حیوان په لاري نه ځي<br>وجود ونه د چندڼ ده | | د نادان علاج په ډار شي<br>چي یې سر په ذوالفقار شي<br>څو علاج یې په اوسار شي<br>نوس یې عین تور د ښامار شي |

"واصـــــل" واړه اجـــــاره کړه
تر حضور دیدن یې جار شي

دا سړی که څه هم د خوشحال خان معاصر او د لسم قرن ژوندی ښکاري، مګر په کلام کي یې کټ مټ د روښانیانو د نظم

کړو قصیدو خصایص لیدل کیږي، او په هغه ژبه ګڼه دئ، چي میرزا او دولت او ارزاني مو دمخه ولیدل.
اورکزی :
د ده نوم نه دئ معلوم، د قادر داد او د هند د روښانیانو سره محشور او معاصر و. داسي ښکاري چي د قادر داد تر مرګ وروسته هم ژوندی پاته سوی دئ (حدود ۱۱۷۵ ق). په غزل کي یې څه هنري ښکلا ځلیږي، خو په قصیده کي یې خوند نسته او نه په بحث او کره کتنه ارزي. خو دوني به وواېو، چي د روښان په مکتب کي د ذوق خاوندان او ځیني ښه شاعران هم لرو، چي د دوی قصیدې د پښتو ادب د تاریخ په تندي کي ځای نیسي او سړی ویلای سي، چي دا شعر دئ او تش بې خونده نظم نه دئ.

**میر خان روښاني :**
د دولت لواڼي په دېوان کي (ص ۲۵۲ د کابل طبع) یوه اوږده قصیده د میر خان په نامه سته، چي تر (۱۰۰) بیتو زیاته ده. دا سړی هم د روښاني مکتب شاګرد ښکاري، مګر کله چي دولت ژوندی و (۱۰٦۸ ق) ښایي دا روښاني ناظم به مړ و. دولت د ګنج عارفین تر بیان وروسته چي د رسول ) معجزات دي دا قصیده د دغي اصطلاح په شرحه کي راوړې ده، چي داسي شروع کیږي :

| نن مي زړه له خفي ګنج که څو وینا | | مخفي ګنج دئ بې شریکه بې همتا |
|---|---|---|
| یو عجیب ښایسته نور و بې مثاله | | منزه له سبزو سرخه هم بیضا |
| نه یې رنګ نه یې مثال شته نه یې لوری | | پاك ساده او منزه و تعالی |
| هم کامل هم مکمل او هم غني و | | پاك له فقره له نقصانه له فنا |
| د غفلت او د نیسان اثر پرې نه و | | دی علیم او خبیر و توانا |
| لوی علیم چي و خپل ذات و ته نظر که | | یکباره شو پر خپل ذات باندي شیدا |
| چي دغه رڼا څرګنده شوه صبا شو | | هر چي و له ده رڼا شوه هویدا |
| لوح، قلم، بهشت دوزخ له ده څرګند شو | | عرش، کرسي، آفتاب و ماه ارض و سما |

دا د ځینو صوفیانو هغه عقیده ده چي د (الله نورالسموات والارض) پر اساس یې دغه نور د کایناتو منبع ګڼي او بیا په دغه رڼا کي د رسالت او امامت مقام ښیي، او د رسول او اصحابو ستاینې کوي. خو په پای کي وایي :

اطاعت د حقي لاري پر تا فـــرض و
که عاقل یې اعتراض کړه له جهلا

وروسته څو بیته لري، ګمان کوم چي غلط به چاپ سوي وي، خو په دې بیتو کي خلك د روښان پیر لاري منلو ته راغواړي :

| هر چي لار یې وي له خدای څخه موندلې | | که نېکبخت یې ورپسې کړه اقتدا |
|---|---|---|
| رسالت د عارفانو که و حق ته | | مشتاقان له خپله یاره که اشنا |
| ګماني سحاب یې درست له دلدار واخیست | | له شها سره تل راز د عرفا |

اې میرخانه ! قسمت شوی په ازل دئ
انتها راجـــــــــــــع همــــــــېش د ابتدا
(ص ۱۵۲ د دولت دېوان)

نو په دغه ډول میر خان هم د روښاني ډلي په ناظمانو کي د قصیدې خاوندګڼل کیږي. مګر څنګه قصیده؟ چي شعر خو نه دئ مګر نظم به وي.

**د دولت لوڼ قصیده سرایي :**

د پښتو ادب د روښاني ډلي په شاعرانو کي دولت لوڼ د داداو زوی هم نه سو هېرولای، دی پخپله ځان داسي ښیي :

اې دولته روښـــاني
حسن خېله نوحاني

بل ځای هم وایي :

د کمکوټي ثنا مـــکړه
د داداو نوحاني زویه

نوحاني خو د پښتو لوڼ یا لواڼي یو هندی سوی شکل ښکاري، او په دې بیت کي خپل ځان ښه راښیي :

شیخ دولت مي نوم دئ هـــاتف ایښی
پر زبان د خلکو یاد "فقیر دولت" یم

دولت خو په پښتو د غونډ دېوان خاوند دئ، او د پښتو نور شاعران یې هم په شاعري مني. خوشحال خان غوندي لوی شخصیت هم د ده وزن په پښتو شاعري کي داسي اټکلوي :

بل دولت فقـــیر درې پاوه
زه تري څو شېرشاهي تېر
(دېوان، ص ۳۸٦)

نور شاعران یې هم داسي ستایي :

د فقیر پښتو خـــبري
لکه سپیني مرغلري
(ارزاني)

دولت ځان د میا روښان لاس په لاس مرید او شاګردګڼي :

زه فقیر دولت مرید د میا روښان یم
له فتراکه به یې نه کاږم آســان لاس

له دې څخه ښکاري چي دی د روښان معاصر، ارادتمن او د (۹۸۰ هـ) کال د شاوخوا سړی دئ چي باید د (۹٦۰ هـ) په حدودو کي زوکړی وي، او ژوندون یې تر (۱۰٦۸ هـ ق) پوري یقیني دئ، ځکه چي په همدغه کال یې د الهداد انصاري ویرنه (مرثیه) ویلې ده.
د دولت ژوند هم اکثر په هند کي تېر سوی او د رشید آباد او دکن په سیمو کي رورد دئ، او پخپل دېوان کي هغه افکار او عقاید ځایوي، چي د پیر روښان د مکتب شاګردان یې لري. دی د قرآن او سنت او شریعت او سني مذهب تابع دئ او د خپلي شاعرۍ باغ د عرفان او دیني افکارو په ګلونو سمسوروي.
دېوان یې په (۱۳۵۳ ش) کال د پښتو ټولني په همت په (۲۷۹) مخه کي له کابله خپور سوی دئ.
د دولت شعرونه خو د عرفاني او دیني قالب په محدودو لرګیو کي راګیر سوي او ډېري اوږدې قصیدې لري، او هغه چي د غزل په قالب کي اچول سوي دي هغه هم د غزل تر محدود قالب کله کله وزي او د تغزل شکل مومي. ښاغلي پوهاند رشاد هڅه کړې ده، چي د ده ځیني شعرونه د خلیل بن احمد په عروضي قالب کي کښېباسي، او د عروضي تقطیع په کړاو یې اخته کي، (وګورئ د ده د مطبوع دېوان مقدمه، تر ۱۹ مخ وروسته). دغه هڅه خو د علمي پلوه ښه او په زړه پوري ده، مګر د پښتو ژبي له طبیعته او جوړښته سره سمه نه ښکاري مثلاً دا بیت :

ای چي دایم یې جاجا څرګند
نه وینم غیر بې له تا څـــرګند

دا خو سپك بحر (فاعلاتن – مفاعلن – فع لان) دئ، مګر زه داسي ګمان کوم چي د پښتو عروضي طبیعت د آریایي ژبو له وزمونو سره نښلي، او د دولت ګرده شعرونه به په عربي قالبونو کي اچول مشکل وي.
که موږ په روښاني ډله کي دولت ته کومه درجه ټاکو نو باید چي د شاعرۍ پر ډګر دی تر کریمداد وروسته د ارزاني او مخلص تر څنګ ودروو. خو په فکري لحاظ محقق ښکاري، او توحید له اتحاد او حلوله بیانوي :

د توحید وینا یې شوه پر زړه نزوله
مــــــبرا له اتحــــــــــاده هم حـــلوله

بل ځای وایي :

د یقـــــــــین په نظر یو راته ښـــــکاره شو
له اوله چي مي څوك په نظر سل کوت

قرآن وایي :
(چیري چي مخ کئ، هلته د خدای ننداره ده "اینما تولوا فثم وجه الله").
د روښان د مکتب مفکران له کثرته بیرته وحدت ته ځي او د اسلامي عارفانو په هغه ډله ننوزي چي د دویي له ډګره یکیٔ ته ور تېر سوي وي :

چون یکی باشد همین نبود دویی
هم منی بر خیزد این جـــا هم تویی

خواجه عبدالله انصاري ویلي و :
"از خود فروتر آی ورسیدی" (طبقات الصوفیه، ص ۹۱).
دا مرتبه چي سړی له خودیٔ څخه وزي، او سل یو ویني د اسلامي عارفانو په کلام کي داسي شرح کیږي، چي نېستي سوي خلك د هستیٔ پر ور درېږي.

| نیستانی که بر در هستند | | نه کمر بر درش کنون بستند |
|---|---|---|
| کز ازل پیش عشق و همت و زور | | خود کمر بسته زاده اند چو مور |
| جهد کن، تا چو مرګ بشتابد | | بوی جانت پکوی او یابد |
| بر ګذر ! زین جهان پر او باش | | ګر بدي یانه، بر در او باش |

(د سنایي حدیقه)

دغه نیستان چي ځانونه یې د هستیٔ له ډګره وړي وي او د وحدت په څپان سیند کي فاني سوي وي، د دولت په ژبه داسي وایي :

په قوت دریاب چي ګډ شي یو یادېږي
په جهان کي هر څــــو ډېر دي دریابونه

### د دولت لوڼ په قصایدو کي عرفاني مضامین:

د دولت په تغزلاتو او قصیدو کي عرفان، اخلاق او شرعیات سره ګډ دي، او سړی یې په پښتو کي د سنایي د قصایدو پیرو ګڼلای سي. مګر د سنایي د شعریت قوت نه لري.
د ده د فکر او ادبي قوت د ښکاره کولو له پاره دغه تغزل ولولئ، چي ټول یو ګڼي :

په ظاهر باطن چي ګورې سبحان يو دئ
صورتونه ډېر ليده شي جانان يو دئ
د کثرت په حسابونه غلط مه شه
مومنان هر خوا نيوه دي ايمان يو دئ
په صدف کي در خالص په مار کي زهر
بارنده پر هر ځای ابر نيسان يو دئ
پر اغزي پر ګل يې نور يو شان وېشلی
تابنده پر جهان لمر درخشان يو دئ
رنګ رنګ ګل ځني پيدا شي په پټي کي
چي ګياه پرې زرغونېږي باران يو دئ
که لښکر حشم يې ډېر ليده شي څه شو
چي په حکم يې عمل شي سلطان يو دئ
د دنيا بازار يې جوړ کا په څو شاني
د معنی په سترګو ګوري هر شان يو دئ
د احول سترګي کږې دي يو دوه ويني
جلوه ګر، په عرش، کرسي کان مکان يو دئ
د شاهد لباس اغوستی دلبري کا
ذات واحد، بصير، عليم، څو الوان يو دئ
چي د عاشقانو زړه په زلفو خال وړي
دلربای د زړونو ژر په جهان يو دئ
د معشوق عاشق جامه واغوندي راشي
عشق باقي، شاهد، مشهود بې ګومان يو دئ
پرې مومن، کافر، ماهی، چونګښه زيست کا
پاك درياب بېحده لوی، بې پايان يو دئ
د مجاز په څو ځادر کي يې مخ پټ کا
د "دولت" د زړه انيس پټ عيان يو دئ

(د دولت دېوان، ص ۱۷٦)

په دې ډول تاسي د دولت د بيان هغه اصلي جوهر او پر کلماتو او الفاظو د ده راځرمه توب اټکولای سئ چي يوازي د عرفان فکري پانګه نه لري بلکي د بياني هنر لړ څه ذوق او ذخيره هم ورسره ده.

ځان جهان په لا اله نېست کړه "دولته" !
د جـــانان په سترګو ګوره خپل جانان ته

د دولت قصيدې چي عرفاني او اخلاقي مضامين لري لکه د سنايي عرفاني قصيدې، اوږدې دي، او د ده کلام په پښتو ادب کي د عرفاني پانګي يوه غوره ذخيره ګڼلای سو. د ده شعر د شعر له پاره نه و، هدف يې د روښاني عرفان څرګندول و. د دې کار له پاره چي ده کوم هنري استعداد او د کلماتو ذخيره درلوده، هغه يې ټوله په دې لار کي کښېښووه. که څه هم ده لکه سنايي يو لطيف ادب جوړ نه کئ، مګر بيا هم په پښتو ادب کي د ده وينا تر ډېرو ناظمانو غوره ده، او کله کله د لطيف ادب پر پولو هم پل ږدي، او کله د تغزل ميدان ته رادانګي لکه يو تکړه غزل سرا داسي مضمون آفريني کولای سي :

شېرين يار چي ما د زړه په سترګو تل کوت
هر ساعت به مي د ميني د ده ګل کوت
د ديدن شراب يې راکړه هسي مست شوم
چي هر جز مي د معنی په قوت کُل کوت
ځان جهان راڅخه هېر شو په مستۍ کي
لور په لور به مي دلبر جلوه ګر کوت
چي په لا اله مي غير وجود نفي کا
روحاني پادشاه مي ناست پر تخت د دل کوت
که نظر مي د صفات پر عالم وکا
بې آشنا مي نه جهان، نه ځان، نه بل کوت
د يقين په نظر يو راته ښکاره شو
چي اول مي د ګومان په سترګو سل کوت
د وحدت په باغ څړه بې سره ګډ شوم
ګل او خار مي يو ليده، زاغ مي بلبل کوت
که د زړه ارسۍ صفا کړې و به وينې
هغه مخ چي پاك ولي، نبي مرسل کوت
زه "فقير دولت" هرګز په ميان کي نه وم
دلبر خپل جمال پخپلو سترګو تل کوت

(دېوان، ص ۸۲)

اوس د دولت يوه قصيده را اخلو، چي دا هم د مضمون تسلسل لري او هم د تخيل سره ښتون پکښي ښکاري، مګر موضوع يې هغه عرفان او هغه د روښاني مکتب د افکارو څرګندونه ده :

| هر چي نوش د توحید مي کا | | د خودۍ مرکب به پي کا |
| --- | --- | --- |
| یو دیدن به د دوست ویني | | هر نظر چي پر څه شي کا |
| دا هغه زه، ته پرده یم | | په پرده کي بازي دي کا |
| وایي نه یم، نوازه شي | | څه عجب اشارت ني کا |
| چي د شك ګومان مچ وخوري | | د توحید نعمت په قي کا |
| کامل ځکه غلط نه ځي | | تګ د پیغمبر په پي کا |
| هغه نه مري تل باقي شي | | چي مړ زړه په ذکر حي کا |
| د خیر ساج په شان به | | په رضا د ده مرګي کا |
| درست بدن د ذاکر ذکر | | ګوشت پوست، هډ مغز رګ و پي کا |
| پر بیابان مجنون جاروزي | | لیلي سیل د خپل حي کا |
| یو صفت په خپله ژبه | | چین، ختن په هند، روم ري کا |
| په قدرت له یوې خاوري | | سوار، پیاده، شتر، مزري کا |
| دېګ، طباخ، سرپوښ، ججری | | خم، پیاله، بدنه، ګړي کا |
| بېل د غوښي له صورته | | پيې، شودې، شړومبې، غوړي کا |
| بادشاهان یې خدمت هسي | | لکه ښه عاجز مریي کا |
| اولیا په یوه دم کي | | تر مشرق مغرب لار طي کا |

د دې قصیدې د تخلص په برخه کي داسي نتیجه اخلي او خپل مطلب ته ګرېز کوي :

| غیر مه ګوره دولته! | | خیر، شر سبب کل دي کا |
| --- | --- | --- |
| په ساعت کي نېست نفي شي | | د هستۍ لافي لوګي کا |
| مراد هاله مومي مرید چي | | سر د پښې تلي کا |
| عاشقان د ده له شوقه | | تنن، تن، تنا له لي کا |
| په بهشت کي ګفت کم دئ | | بې سلا مه بې علیکا |

(دېوان، ص ۲۲ – ۲۵)

د دولت د قصیدو موضوعونه د عرفان په ارت چاپېر کي متنوع دي، او ډېر داسي څه پکښې سته چي سړی یې د اسلامي عرفان او د شرقي صوفیانه ادب نخوړ بللای سي. که یو ځوك دغه افکار او ښکلي مضامین سره بېل او تر خپل عنوان لاندي کښېږدي، د عرفان او تصوف یوه ښکلې او ګلالۍ باغچه به وي، لکه:

د دلــــــبر دیدن په هر لــــــوري عـــیان وینم
هر نظر یې په هر څه کي په څـــــــو شان وینم
چي مي سترګي د باطن کړې پیر کامل رڼې
په هر څه کي یو دیدن د پاك سبــــحان وینم

(دېوان، ص ۲۱۲)

د سالك څه زده؟

نن هغه سالك د دې لارې ادب زده
چې له دم سره يې ذكر د پاك رب زده
مرده دل د دل له سره خبر نه دئ
په تقليد يې په زبان د خداى لقب زده
غير دېوال به يې حجاب په ميان كي نه وي
چې يې سهل پر فلك لكه كوكب زده
زه "فقير دولت" به روغ په نور څه نه شم
كل زما درد و دارو د دلبر لب زده

(د دېوان ۹۹ مخ)

بې الحاده او حلوله خالص توحيد:

د توحيد وينا مي شوه په زړه نزوله
مبرا ده له الحاد هم له حلوله
يو الله دئ بې جهته تجلى كا
پوشيده دئ له دوبين، ظالم، جهوله

(دېوان ص ٤٣)

يو حق دئ !

په ظاهر، باطن، اول، آخر يو حق دئ
نصيحت په زړه كي ونغوړه زما دا
د احد په ملك كي بې احده نشته
تل دا حال په ژبه وايي كل اشيا دا

(دېوان، ص ١٨٦)

د وحدت د باغ مرغه د كثرت په ننداره كي

د وحدت د باغ مرغه بلند پروازه
ننداري لره راغلى د كثرت يم
روحاني وطن مي نه هېرېږي هيڅ وخت
د صورت په ملك كي بند په ضرورت يم

(دېوان، ص ١٤٩)

# د خوشال خان خټک
# په ادبي مکتب کي قصيده

اوس نو بيا د قصيدې سمسور موسم راغی او د پښتو پلار خوشحال خان خټك په خپل ادبي زيار او مښود کي قصيده هم تر لاس ونيوله، او د روښانيانو له خانقاه يې بيرته بزم او د رندانو ټولۍ ته راوسته.
پخپله خوشحال خان او تر ده وروسته د ده د کورنۍ ډېرو شاعرانو پښتو قصيده په صنعتي او فني لحاظ هم وپالله، او د مضمون د تنوع له پلوه يې داسي غني کړه چي اوس هغه د غوريانو او روښانيانو قصيده چي پرته له ستايني او تصوفه يې نور رنګونه، نه لرل په دوه ډوله مضامينو وپسولله سوه، او هر راز ادبي ښکلا يې بيا مونده.
اخلاق، حماست، افتخار، شکوه، غندنه، ستاينه، ښېګڼه او تلقين خو کله کله تصوف او توحيد او نور ډېر مضامين هم د قصيدې په ښکلولو کي داخل سوه.
په حقيقت کي خوشحال خان د نوي قصيدې ژوندی کوونکی دئ، پخپله دی د روښانيانو ادبي ضعف او کمزورۍ ته متلفت دئ او په يوه خوږه او ښکلې قصيده کي خپلي ادبي کارنامې او د سابقينو احوال داسي بيانوي :

| | | |
|---|---|---|
| په پښتو شعر چي ما علم بلند کړ | | د خبرو ملك مي فتح په سمند کړ |
| مدعي د توري شپې اور اورکی و | | د سهيل غوندي مي ځان باندي ځرګند کړ |
| يو په حال او په ماضي کي هسي نه و | | چي ښکاره يې د خبرو راته خوند کړ |
| د ميرزا دېوان مي ومانده په ګوډي | | مسخره مي ارزاني خويشکی زمند کړ |
| که دولت و که واصل و که دا نور وه | | په خبرو مي د هر يوه ريشخند کړ |
| کتلمې مي ورته سازي کړې د قندو | | د اوربشو په ډوډيو چي چا شخوند کړ |
| لعل و دُر مي ورته وپېيل د نظم | | د مشکنو بنجاره مي مستمند کړ |
| هر کلام مي واردات دي يا الهام دئ | | چي موزون مي په تقطيع د بحر بند کړ |
| په تشبيه او په تمثيل او نزاکت کي | | عذوبت مي د خبري چند در چند کړ |
| په تازه تازه مضمون د پښتو شعر | | په معنی مي د شېراز او د خجند کړ |
| د بوستان وني مي واړه پيوندي دي | | حقيقت مي د مجاز سره پيوند کړ |

رشيتا هم دا ده چي تر خوشحال خان دمخه د پښتو قصيده د روښانيانو په دورکي داسي وه لکه چي سړی اوربشينه ډوډۍ خوري، خو اوس په خوږتيا او خوند او کيف کي په الهامي ډول او تازګي د خواجه حافظ او کمال خجندي د کلامه سره سياله سوه.
د خوشحال خان په قصيده کي د چا غندنه يا ستاينه يا کومه صله او ګټه مقصد نه وه، د ده کلام د زړه الهام او د محبت کمند و.

نه مي سود نه مي مقصود شته په دا کار کي
محبت زمـــــا په غـــــــــاړه دا کــــــــمند کړ
عشـــــقه ته تر اورنګزېب پاچا بهـــــــــتر يې
چي خوشحال دي په عالم کي سربلـــــند کړ

د خوشحال خان د قصايدو دېوان ټول تر دوه زره بيته پوري رسېږي، چي ما په ۱۳۱۷ ش کال له کندهار په بشپړ ډول خپور کړی و. په دې قصيدو کي د پند او موعظت ګټوره ذخيره، د پښتني اخلاقو او محسناتو ښېګڼه، د تعليم او روزني نکات او د

وطني سندرو خوندوره برخه، حمد او نعت، د جنګ او حماست خبري، د خپلي کورنۍ او قوم څخه ګيلې مانې، د معيشت او طب او حفظ صحت لارښووني، پسرلني ښکلي تشبيبونه، منظر نګارۍ او غندنه او کله کله هزل او ملنډې هم سته.
نو په لنډو الفاظو بايد داسي ووايو، چي:
د خوشحال خان قصيده د ده د شعر يوه جامعه برخه ده، چي د شاعر پياوړتوب او فني اقتدار او ادبي مهارت ښه ښکاره کوي. هم د فرخي او منوچهري د قصايدو صنعتي ښېګڼي لري او هم د سنايي د حکمت او موعظت معنوي مزايا پکښې پراته دي او هم د پښتو او پښتونوالي يوه رڼه هينداره ده.
د خپل زوی نظام په وېرني بولله کي وايي :

| | | |
|---|---|---|
| څه داغونه يږدې پر زړه باندي فلکه | | چي نظام دي له ما بېل کړ خوا يې ډکه |
| خدايه ته خو ستمګر نه يې دا څه کړې | | خلقه دي په دا کار کړه هکه پکه |
| په لحد کي هغه مخ خورې په چنجيو | | چي د هيڅا پرې پېرزو نه وه ځوانکه |
| کشکي ځوان د پښتانه په ننګ کي مړ وای | | نه چي ګور لره روان شو له تلتکه |
| چي د قام په ننګ کي ومړ هغه زويه | | په عالم کي د خپل پلار غاړه کا لکه |

په شرقي شاعري کي خو تل شاعر تش ستايونکی وي، دی د دلاورانو او جنګياليو مېړو جنګي کارنامې او بهادرۍ ستايي اما پخپله د جنګ ډګر ته نه ورځي. خوشحال خان د شاعرۍ سره سره يو جنګي سردار او د جګړې د ميدان توريالی سپاهي هم دئ. نو ځکه د ده وينا په جنګي مناظرو او د توريالیو په ستاينه کي پر يوه واقعي او حقيقي کيف بنا ده او تل له ځانه حکايت کوي نه له نورو، او که کوم وخت د کوم توريالي ستاينه کوي هغه هم هغه څوک وي چي د ده تر مشرتابه لاندي توري وهي، په يوه قصيده کي خپل زوی بهرام ته وايي :

| | | |
|---|---|---|
| څو دي توان توفيق رسېږي بېرون مه شه | | په هر دم د پښتانه له ننګ و نامه |
| ته د چا و جام ته هيله اميد مه کړه | | حريفان دي باده نوش وي ستا له جامه |
| يا تکيه د يوه خدای ده يا د توري | | په جرګو مرکو نه شي کار تمامه |
| که دي نفش د توري کښېښي راته غوړ کړه | | کامروا به شې هاله له هره کامه |
| ښه ځوانان به خپل هوډ پرېښږدي له لاسه | | که يې سر شي د خوني مزري تر ژامه |
| که تل توري غشي خوري ماتي د جنګ وړي | | مرد به سوړ نه شي په زړه له انتقامه |

په يوه بله قصيده کي خپل وروستنی ارمان او د فلك د ناوړو سره ډغري وهل داسي ښکاره کوي، چي د شاعر لوړ همت او پر ځان ويسا ځني څرګنديږي :

مرګه ! هومره مهلت راکړه په جــهان کي
چي جـــمدر د مــدعي په وينو ســور کړم
که يې درست د مټو زور راته ښــکاره کړ
بيا فلك سره کشتي په خپل دستور کړم

د خوشحال خان د قصيدو د منظرنګارۍ او د بهاري تشبيبونو د ګرېز او تخلص ځای بيرته هم هغه د پښتونوالي ښکلې دنيا او د ننګ او ناموس تودکانون دئ. په يوه غرا قصيده کي په تشبيب داسي پيل کوي :

د نوروز منت پر باغ دئ پر صحرا هم
نوراني يې شي له فــيضه هغه دا هم

دا بهاري تشبيب خو ډېر ښکلی دئ، اما داسي ښکاري چي شاعر د بند او له وطنه د ليري تابه په حال کي ويلی دئ نو ځکه

د قصيدې په تخلص لهجه داسي وراړوي :

| د قفس بلبلي ژاړي ګرياني کا<br>په هغو زما سلام ما دي هم يادکا<br>څو بهاره مي بې ميو معشوقو ځي | | چي به چيري په ګلګشت والوزو بيا هم<br>په ګلزارکي چي نګار لري صهبا هم<br>دا خودراى فلك څه چاري کا په ما هم |
| --- | --- | --- |

دلته د شاعر لوړ همت او د پښتونوالي غرور بيا ښکاره کيږي، پخپل ارت زړه کي د جهان غمونه ځايوي او له دنيا او مافيها څخه استغنا مومي، وايي :

| چي و خپلي کامرانۍ ته مي شاکړه<br>د منت داروکه مرم په کار مي نه دي<br>د پرښتو امين منت دئ په دعا کي<br>د جهان غمونه واړه پکښې ځاى شول | | غم اندوه د فلك نه لرم پروا هم<br>که علاج لره مي راشي مسيحا هم<br>لا جرم ورځني پټه کړم دعا هم<br>شکر دا چي زړه يې لوى راکړ و ما هم |
| --- | --- | --- |

په دې دوني جنګي او حماسي تاو او د پښتونوالي په شورماشورکي خوشحال خان د سنايي په دود د حکمت او موعظت ويناوي هم لري، چي سړى له دې مادي دنيا څخه د يوې بلي معنوي نړۍ په يادکي هم اچوي، لکه چي په يوه اوږده قصيده کي وايي :

مخ د هغو تور شه چي يې ميني نفساني دي
يوه مينه باقي ده نوري کل ميني فـــاني دي
مه کړه د نس نغوته د هوا په لوري مـــــه ځه
واړه د نس چاري شيطاني نه رحماني دي

د قصيدې په پاى کي شاعر خاصه روحاني جوله ښکاره کوي، او د خپل زړه د مقاصدو د پوهولو له پاره کوم ترجمان ته هم اړتيا مومي، وايي :

چا و ته ويل کړم ترجمان نشته په منځ کي
زه سمرقندي يم ياران واړه ملـــــتاني دي

خوشحال خان او د ده زامن او لمسي لکه د پښتو ادب په نورو څانګوکي چي د استادۍ لاس لري او زموږ ژبه د دوى د ادبي تخليقاتو مرهونه ده، قصيده هم د دوى په ادبي مکتب کي په ښه ډول روزل سوېده، او د ادب د دې څانګي ته هيڅا دوني پرورښت نه دئ ورکړى لکه د خټکو درنې کورنۍ چي په دې ښکلي بڼ کي رنګي او مسوونکي ګلونه زرغونه کړيدي. اشرف خان هجري او عبدالقادر خان اوګوهرخان زامن او شيدا د ده لمسى د قصيدې پياوړي روزونکي دي، چي له دوى څخه د پلار په شان ډېر غرا و بليغ قصايد په پښتو ادب کي پاته دي اوکه د دوى دغه زيبا او خوندور آثار نه واى نو به د پښتو ځولۍ د قصيدې له ښکلوګلونو څخه هم تشه واى. د دوى په زمانه کي د هند د بابري کورنۍ تاړاکونه پر پښتنو جاري وه.

د مغولو دا تېرى او ناتار خو د دوى له پاره تريخ و مګر د پښتو په ادب کې يو خاص باب پرانيتى دئ، ځکه دا سرداران شاعران چي به له وطنه ليري سول دوى به د احساساتو رقت او د قريحې حساسيت او د زړه نرمي بيا مونده او دغه صفات د ښه او مؤثر شعر په تخليق کي ډېر اغېزه ور دي.

**اشرف خان هجري :**

اشرف خان هجري چي کله کله ځان روهي هم بولي د خټکو د کهول یو پوخ او پیاوړی قصیده سرا دئ. د ده په قصیدو کي د وطن د بېلتانه درد او سوی پټ پروت دئ او دي بېلتون د ده کلام ته خاص اثر او رقت او د آتشینو احساساتو تودوالی او د وطني اشعارو خاص رنګ و آهنګ ور بخښلی دئ. د دکن په منفاکي د روه دغه شېرین نوا بلبل هسي درافشاني کا :

ما هجري ته یې هجران دکن لمبه کړ

ځکه تل د یار له غــــمه در افشان یم

هجري د هنر دوست او د فنان ذوق خاوند و په یوه اوږده قصیده کي د هنر لوړ مقام او د پښتنو شاعرانو هنري منزلت تاکي او په انتقادي نظر د دوی هنر تجزیه کوي، دا قصیده داسي شروع کېږي چي په ادبي اصطلاح یې مقتضیه یا محدوده بوللـه ګڼلای سوای، ځکه چي کوم نسیب یا تشبیب نه لري :

| | | |
|---|---|---|
| د مردانو بهایي علم و هنر دئ | | آرایش د ګلرخانو په زېور دئ |
| د هنر پېشه زېور د زیرکانو | | هر چي فخر په دولت کاندي بقر دئ |

د هجري په نظر کي آرټ او صنعت په دې نړۍ کي یوه لایزاله پدیده ده او په داسي حال کي چي نور اعتبارات نېستي کېدونکي دي فقط هم دغه صنعت د نړۍ ښکلا ساتي او خپل اثر جاویدان پرېږدي، دی وایي :

| | | |
|---|---|---|
| په اقبال د دهر ځای د غرور نشته | | د بقا زوال یې ژر لکه دیګر دئ |
| په هغه یار فرزانه کله نازېږي | | چي یې نن په غېږ کي یو سبا دګر دئ |
| مهین یار تر علم نشته په دنیا کي | | په دوه داره مدعا لره رهبر دئ |
| که عالم په علم جوړ ملك یې بوله | | بلکي لا تر پرښتو نه نېکوتر دئ |

دلته هجري د شاعرۍ فن ته ورګرځي او داسي یې ستایي :

| | | |
|---|---|---|
| هر صفت چي خالق ایښی په بنده کي | | تر همه و ګویایي والا ګهر دئ |
| هیڅ تمیز به یې ونه شي له حیوانه | | خو په ژبه آل ممتاز دیو البشر دئ |
| ګویایي اګر چه کسب د انسان ده | | ولي هر چي سخنور هغه بهتر دئ |
| که سبب یې ګویایي د زبان نه ده | | سکه په څه بلبل په طیرو کي سرور دئ |

دلته هجري د خپل قوم د هنري فعالیت لړوالي ته ملتفت کېږي او پر دغه تریخ حقیقت په داسي ډول اعتراف کوي چي د ده نقاد نظر څني ښکاري :

| | | |
|---|---|---|
| دانایي حکمت نصیب د سرو مغولو | | پښتانه ته جهل خوړ لکه شکر دئ |
| پښتون ذات چي رب پیدا کړ له ازله | | دود د علم و د هنر پکښې کمتر دئ |
| که همه قوم پره کړي سر له سره | | دا حکمت په څو مکانه مقرر دئ |

هجري د خپل پلار په استادۍ او فني مهارت ویاړي او ځان یې مستقیماً خلف او شاګرد ګڼي او وایي :

| اولاً به د استاد له حاله وایم | | چې یې شعر جهانګیر لکه قمر دئ |
|---|---|---|
| په پښتو ژبه چې شعر چا بیان کړ | | د همه وو نظم ستوري دي دی نمر دئ |
| څه خوبي د هغه نمر وایې مهجوره | | چې یې نوم دهر نیولی سر په سر دئ |
| ټول یې وسپاره په ما سریر د نظم | | هغه نمر چې نن د خاورو په بستر دئ |
| نن حریف د څواب نه وینم په دور | | نه مي یو له مړو په شعر برابر دئ |
| زه محتاج د شاهد نه یم په دا قول | | په راستي مي دا غرا شعر محضر دئ |
| که څوك خیال د جدل کا زما له نظمه | | دغه ګوی دغه میدان دغه احقر دئ |

زیبا شعر هسي زړه د هــجري یووړ
لکه زړه د سفله وړی سیم و زر دئ

د هجري په کلام کي د پخوانو قصیده ګویانو اغېزې لفظاً او معناً ښې ښکاري، تاسي دمخه ولوستل چې شیخ اسعد سوري د پښتو پخوانی بولونکی یعني قصیده سرا د امیر محمد سوري پر مرګ څنګه له فلکه سره ګیلې مانې کولې، او څنګه یې د هغه وېرنه یعني رثا په مهارت او غني لیاقت سره ویلې وه، اوس د هجري یوه شکوه هم وګورئ، چې د هغه زاړه فکر او بلاغت بځرکي ښه پکښې ځلیږي او د منظرنګارۍ او استعارې کمال ځني ښکاري :

| هسي چاري په انسان ولي سما کا | | چي یې کار همه په څټ د مدعا کا |
|---|---|---|
| کیفیت یې مشابه له بازیګرو | | نوی نوی مخ له غیبه هویدا کا |
| ماه و نمر جوړه مهرې د حقه بازو | | په ماښام یوه په خوله بله پیدا کا |
| توره شپه ګویا پر ده د نېرنګیو | | و هر چا ته روزانه بازي نما کا |
| سره مهره په لپو ونیسي تیاره شي | | بیا عطسه د شپې مصدره د سبا کا |
| زمکه سره لکه شهپر شي د مورانو | | چي پیدا له فمه زاغ د زرو ها کا |
| د مراد باده څرګنده کا سړي ته | | بیا یې ژر ور ځني پټه په جفا کا |
| نه به یار و یار ته وبخښي قسم دئ | | نه به څوك ځني حاصله تمنا کا |
| بیا به کله درخو وکا سینګارونه | | چي لېمه د حسن سترګې پې جلا کا |
| نه به بیا آدم شمله په څېره کیږدي | | چي درخو یې سینه یخ په تماشا کا |
| دګردون هسي روش دئ له ازله | | دوه مین په زجر تل سره سوا کا |
| هر زمان چي خنجر وکاږي د قهر | | له ګدایه برابر لوی امرا کا |
| د فاضل په فضیلت یې رقت نشته | | نه یې توره لږ ادب له اولیا کا |
| دا ویل به ارمان کیږي په وګړي | | که قرائت یې په منبر باندي ملا کا |
| چي آخر وفا له مرده مونده نه شي | | مرد هغه چي په حیات همه تر شا کا |

هجري دُر دي پیوسته د حقیقت کړه
کیفیت یې کاڼي زړه هــــــم په ژړا کا

وګورئ د شاعر په فکري چاپېرکي تل د زمانې سیاسي او اجتماعي اوضاع اغېزه من وي. د اسعد سوري او د خوشحال خان د زوي رثایي قصیدې هم وېرني او شکوې دي خو هغه وخت د پښتنو سیاسي عظمت د فکري استقلال او پر ځان ویسا او د روحي ټینګار او صلابت موید و، په ویر او ماتم کي هم شاعر له دنیا څخه فرار نه کاوه او د یأس او قنوطیت څپو نه لاهو کاوه، مګر د هجري عصر خو د مغولو د پردۍ سلطې او اقتدار د لوړتیا وخت و، دلته د پښتنو ملي مرکزیت د دوو غښتلو

شاهنشاهیو تر منځ تري تم او خوشحال خان غوندي پیاوړی سردار او د آزادۍ د جنګ نومیالی مبارز او اور ژبی شاعر تر خاورو لاندي سوی و، نو ځکه د هجري په کلام کي یو د یأس او نا امیدۍ رنګ ښکاري په کوم ځای کي چي اسعد سوري او خوشحال له خپلي وېرني او شکوې څخه هم د ژوند او قومي افتخار له پاره نتیجه راباسي هجري د ملي مړیني په ګروم او ویر کي دنیا و مافیها ته شاکوي او وایي :

مرد هغه چي په حیات همه تر شا کا

دا دئ د بلواکۍ او بدبختۍ لوی نښان، چي زموږ په قومي شاعري کي د مغولو د مظالمو او جفاوو څخه پیدا سوی و او پښتنو پوره درې سوه کاله د دغه اجنبي تاړاکه سره مبارزه کوله، مګر سره د دې چي د پښتو ادب د دغي دورې په آثارو کي ډېري المیې او د ګرومه ډکي انګازې پاته دي، بیا هم پښتون مهجور شاعر خپل وطن او د خپل ملي ژوند او افتخار مرکز نه دئ هېر کړی، لکه چي هجري وایي :

کـــه نصیب بنده بندي کړ په دکـــــن کي
دامنګیر یې همېشه عشق د وطــــن دئ
د زړه باز یې د روه په زمـــــکه ګـــــــرزي
که هجري په دکن ناست خالي بدن دئ

**عبدالقادر خان خټك :**

د خوشحال خان بل زوی عبدالقادر خان چي د (۱۱۰۰ هـ) کال په شاوخوا کي ژوندی و او د پښتو له ښو قصیده سرایانو څخه و، دی د خوشحال خان د مکتب پیاوړی شاګرد دئ، او د شعر په ښېګڼو او ادبي مزایاوو کي پس له پلاره دی استاد ګڼل کېږي.

د ده وروڼه هم د پښتو مقتدر شاعران دي خو پخپله اشرف خان هجري هم عبدالقادر پس له پلاره په لومړي پوړ شاګردانو کي ګڼي او وایي :

اوس یې وایه حقیقت د شـــــــــاګردانو
چي هــــــر یو له دې هـــــنره بهره ور دئ
قادر خان که بحــــــر بولم دروغ نه دي
چي یې فکر د اصلي دُرو مصدر دئ

د عبدالقادر خان له قصیدو څخه اوس موږ فقط نه قصیدې د ده په چاپي دېوان کي مومو، چي ما په (۱۳۱۸ ش) کال له کندهاره چاپ او خپور کړی دئ.

په دغو قصیدو کي ثنا، عرفان، حکمت، موعظت، رثاه، شکوه، انتقاد او منظرنګاري تړوله سته، او ځیني قصاید یې ښکلي تشبیبونه هم لري.

عبدالقادر خان د وینا په رواني او خوږتابه کي خپل پلار ته ورته دئ او په لفظ او معنی کي هغسي پیاوړتوب لري او غزل یې ډېره مستانه ده، مګر په قصیده کي یې روحاني رنګ غالب دئ او هغه مطالب وایي چي سنایي پس له خپلي فکري اوښتني پخپلو عرفاني قصیدو کي ویلي وه.

ښایي دا به د هغه څه اثر وي، چي عبدالقادر د خپل سیاسي کړاو او بېلتانه په وخت کي د نقشبندي طریقې د یوه مشهور عارف شیخ سعدي لاهوري لاسنیوی کړی و او دغه طریقت به د ده فکر خاص هغو معناوو ته ګرځولی وي چي د یوه مطیع مرید سره ښایي.

د عبدالقادر خان په غزلو کي شور او مستي او د تغزل ښکلی آهنګ او د شاعریت مظاهر ډېر سته خو په قصیده کي دغه مزایا لږ دي، که څه هم پر الفاظو بشپړ سلطه لري خو د فني تخلیقاتو اندازه یې په قصیده کي لږ ده او په واعظانه ډول خپل مطلب سِده ادا کوي. مثلاً د جهاندارۍ او سیاست د ښېګڼو په تلقین کي د ده له قصیدو څخه دغسي بیتونه راوزي :

| چي د ظلم اور يې بل کړ په عالم کي | | ظالمان به ځان سوخته په دغه نار کا |
|---|---|---|
| پخپل ځان باندي ستم کا نه پوهيږي | | چي ستم پر بېوزلانو ستمګار کا |
| چي پر تله تر پلي لا د سپاره سخت دي | | بډايي پر پلي ولي شهسوار کا |
| لايزال دئ سلطنت د ګدايانو | | د زوال وېره يې نشته نه يې ډار کا |

د پښتو شاعرانو په وينا د مېړه او مېړنتوب د صفاتو په څرګندونه کي ښه ذخيره سته او دا د پښتو د اخلاقي شاعرۍ يوه غوره برخه ده. خو هر شاعر د خپل فکري استعداد سره د دغو صفاتو څرګندونه او څېړنه کړې ده او خپل نظر يې د مېړه د لازمي صفاتو په شرح کي ښکاره کړی دئ، چي مونږ له دغه ډول اشعارو څخه د هغه شاعر فکري سويه او د ده د تخيل مجاري معلومولای سو، مثلاً خوشحال خان د مرد په ستاينه کي د ده له پاره دغه صفات ضروري ګڼي :

| مرد هغه چي همتناك برکتناك | | د عالمه سره خوږ په زيست و ژواك |
|---|---|---|
| مخ يې مخ قول يې قول عهد يې عهد | | نه دروغ، نه يې فرېب، نه تش تپاك |
| چي خبره د پستۍ د بلندۍ شي | | په لويي لکه آسمان په پستي خاك |
| په تمکين کي لکه سبر په پستۍ کي | | په هر لور يې ځانګي ږنګري له تاك |
| لکه ګل شګفته روی تازه په باغ کي | | همېشه د ښو بلبلو پر بلغاك |

د خوشحال خان د تصور او تخيل نيلی د مېړنتابه په څرګندونه او توضيح کي تل د پښتونوالي او مادي نړۍ پر ډګر ځغلي، له ژوندانه سره اړه لري او د ژوندانه خبري کوي.
مګر د ده د زوی د تخيل چاپېريال بېل دئ، عبدالقادر په تصويرکي د ملائيت ځيني نخښي ښکاري او داسي څرګنديږي چي د مدرسې او خانقاه ماحول د ده په قصيده کي اوڅار اثرونه پرې ايښي دي او هغه څه چي خوشحال خان د مېړنتابه په لوازموکي نه ګڼل، د ده زوی هغه هم پکښې داخل کړي دي، او دا هم د عصر د هغي خاصي ديني روحيې اغېزه ده، چي د شرق اکثر اخلاقي شعر همدغه رنګ لري، حتی چي حضرت سنايي شاعر ته هم د دغي لاري تلقين کوي، او وايي:

تو ای مرد سخـــــــن پېشه ! که بهر دام مشـــتی دون
زدين حـــــــــق بما ندســتی، به نيروی سخـــــــندانی
چه سستی ديدی از سنت، که رفتنی سوی بيدينان
چه تقصير آمد از قرآن ! که ګشــــتی ګـــــرد لامـــانی

عبدالقادر خان د مېړه په ستاينه کي دغسي مادي او ديني صفات سره ګډوي، د ده يوه قصيده داسي شروع کيږي :

| مرد هغه چي په بخشش لکه درياب وي | | په ښه بد باندي مشفق لکه آفتاب وي |
|---|---|---|
| لکه مځکه هسي پست په تواضع وي | | د واړه عالم مرجع وي هم ماب وي |
| په ثبات کي تر غره لا ثابت قدم وي | | په صفات او په نرمي کي لکه آب وي |
| تل يې وچولی د مياشتي غوندي ويل وي | | دوست دښمن يې له ديداره کامياب وي |
| قناعت لکه همای په استخوان کا | | نه ظالم نه حرصناك لکه عقاب وي |
| چي د ظلم لمبې بلي په عالم شي | | پرې بريان د ده خاطر لکه کباب وي |

تر دې وروسته زمونږ د شاعر په تصورکي د خانقاهي تلقيناتو اثر داسي ښکاري:

| | | |
|---|---|---|
| په نعمت کي شکر کا په محنت صبر | | زړه يې ټينګ په مسبب نه په اسباب وي |
| په قضا د حق راضي خرم خورسند وي | | ورته يو جنت دوږخ ثواب عقاب وي |
| يو زمان يې زړه خالي نه وي له يادو | | که په ناستي که په تللو که په خواب وي |
| اوامر لکه سنت ادا کوينه | | پټ څرګند له نواهي په اجتناب وي |
| که اشيا ورته ښکاره کماهي شي | | مناجات يې زدني علماً يا وهاب وي |
| عام عالم ته ناست ښکارېږي په رفتار کي | | د وصال تر شپې لا تله د ده شتاب وي |
| لاتاثيره يې بد ښه لکه سره زر شي | | په لمبو د عشق سوخته لکه سيماب وي |
| څو چي ګرزي د دنيا په خرابات کي | | په باطن کي آبادان ظاهر خراب وي |
| د ډك سيند غوندي آواز نکا بهېږي | | نه پر شوره، پر غوغا لکه سېلاب وي |
| د دانا سوال ځواب په ادب ورکا | | و احمق ته يې په پټه خوله ځواب وي |
| د ښو بوی يې په همه د يار پرېشان وي | | درست وجود يې په معنا د مشك ناب وي |
| په ظاهر جامه له خلقه سره خلق | | په باطن کي تابعين وي يا اصحاب وي |

هغه مرد ولي ګڼه عـــــــبدالـــــقادره

چي عمل يې په سنت او په کتاب وي

وګورئ د فکري تحول آثار چي له پلاره تر زويه پوري يې څوني فرق کړی دئ، د خوشحال ايډيل مېړه يو عالي همت او پر خپل بول ولاړ، رښتين او دروند او د ورين تندي خاوند پښتون دئ، چي وسله يې پسول او تکيه ګاه يې فقط خپل همت او خپل مړوند دئ. مګر عبدالقادر خان مېړه يو شاعر او صبور او له خدايه وېرېدونکی ذاکر او پر کتاب او سنت ټينګ او خاموش غوندي خانقاهي زاهد دئ، چي تلقين يې هم هغه له دنيا څخه فرار او د نفس او ژوندانه او د هوا او د هوس د کوډغلي وراني ده.

عبدالقادر خان په يوه قصيده کي وايي :

| | | |
|---|---|---|
| د بقا بهبود يې هيڅ نشته فاني ده | | په دنيا چي مينه کاندي ناداني ده |
| د دنيا د خلقو کار راته ښکاره شو | | د سېلاب په مخ يې کړې وداني ده |
| دا چي ته يې وداني ګڼې ناپوهه | | د عاقل تر فهم عين ويراني ده |

عبدالقادر د خپل پلار خوشحال خان او خپل ورور معظم پر مرګ رثايي قصايد هم لري، مګر د دغو قصيدو فکري جوله هم هغسي خانقاهي او ملايي ده، د کوم خاص او نوي فکر پرورښت نه پکښې ښکاري. خو سره د دې هم ځيني ادبي، د ويلو وړ معاني لري چي د خوشحال خان په وېرنه کي يې دغه بيتونه په ادبي لحاظ ښه دي :

| | | |
|---|---|---|
| اوښکي هم د وچېدو له وېري ولاړې | | له تودې تبغني مي ګرمه تېر لا ده |
| د فراق په اور دي وسو نو مي وچ سو | | اوس مي تل په وچو سترګو ستا ژړا ده |
| په بهانه د آه خپل دم راځني درومي | | له همدغو بېهوده ګيله ځما ده |

د خپل ورور د ځوانيمرګۍ او ښکلا تصوير داسي کوي :

پر هـــــغو رخســـارو پرېوتلې خـــــاوري
شـــــماتت يې چې په ګلـــــو د ګلاب شـــــو
چې دا هسې رنګ ځوانان پکښې پراته دي
په آســـــمان باندې ډېر فـــــخر د تراب شو
غـــواصي کـــوم د اوښـــــيو په درياب کې
نه يې مـــومـــــم معـــــظم دُر ناياب شـــو[15]

له دې لنډې څېړنې څخه په پای کې موږ دا نتيجه اخلو، چې عبدالقادر شاعر دئ، خو مفکر نه دئ، پر الفاظو او ادبي تعابيرو قدرت لري، مګر د فکر غولی يې تنګ او محدود او په خانقاهي تلقيناتو کې نغښتلی دئ. له ځانه سره د فکر کوم خاص اسلوب او جوړښت نه لري، او لکه خپل پلار موږ ته د يوې خاصې فکري دنيا نمايندګي نه سي کولای. خو که د عبدالقادر خان په شاعرۍ کې کوم کمال او ښکلا وي هغه نو د ده په غزل کې ده، چې د پښتو غزلې په څېړنه کې به موږ ده ته بيا پوره برخه ورکوو.

**سکندر خان ختك :**

د خوشحال خان د درنې کورنۍ يو بل ستوری د ده زوی سکندر خان د دېوان خاوند ښه شاعر دئ. د ده له خپله کلامه ښکاري چې په (۱۰۹۰ هـ ) کال د (۲۲) کالو ځوان و، نو يې د زېږېدو کال د (۱۰٦۸ هـ) کال په شاوخوا کې ټاکلای سوای. کله چې د (۱۰۷٤ هـ) کال په دريمه خورکي لوی خان د کورګاني پاچا نوکرانو ونيو او ډهلي ته يې واستاوه نو د ده کډې او زامن لکه جلال خان او سکندر خان او ګوهر خان او عجب خان چې کوچنوټي وو، د خپلو مندو سره له اکوړې څخه د يوسفزو په سيمه کې بائيزو ته ولاړل، دا مطلب خان په خپله فراقنامه کې داسې وايي :

هغه ملــــــــك واړه ثمر دئ
چې پکښې زما سکندر دئ

تر دې وروسته چې سکندر ځوانېږي، نو په اکثرو هغو واقعو کې چې د ده پلار او کورنۍ ته ور پېښېږي د ده نوم هم يادېږي، او په (۱۰۸۸ هـ) کال د امير خان صوبدار (حکمران) سره د خپل پلار په امر کابل ته ولاړ او تر (۱۱۰۰ هـ) او د خوشحال خان تر مرګه وروسته چې اشرف خان د ده مشر ورور د ډهلي پاچا اورنګزېب اته کاله بندي کی، د خټکو د خانۍ له پاره د خوشحال خان د ښيلي ښويېدلي زوی بهرام خان او د افضل خان د اشرف خان د زوی تر منځ شخړې رواني وې، سکندر خان د خپل وراره پر خوا و، دی پخپله وايي :

د پېښې وار اوس پر سکندر راوړه فلکه
رقص دي وکړ د منحوس بهرام په کام
په شلمه د رمضان په جان کړ کي
افضل خان سره يکرنګ په اهتمام
که تاريخ د سن و سال غواړې له مانه
د ابجد په حروف عين غين، لام

جانه کړ له پېښوره شرقي پلو ته د چراټ په جنوب کې د آدمخېلو اپرېدو ځای دئ او دغه واقعه د ( ع ۷۰ + غ ۱۰۰۰ + ل ۳۰ = ۱۱۰۰ هـ ق) ده. د ده د مړينې کال موږ ته نه دئ معلوم، خو دوني پوهېږو چې تر شعبان (۱۱۱٦ هـ ق) پورې ژوندی و، چې په همدغه تاريخ يې د خپلو زامنو ويرنه (مرثيه) ويلې ده او د افضل خان په تاريخ مرصع کې هم د ده احوال لږ و ډېر راغلي

[15] دغه بيتونه (د پښتو ادب په تاريخ کې قصيده) نومې کتاب کې نسته.

دي.
د سکندر خان د شعر دېوان د پښتو ادارهٔ اشاعت چاپ کړی او دوهم ځل په (۱۹٦۲ م) کال خپور سوی دئ، چي د ښاغلي دوست محمدکامل په اهتمام او مقدمه ښکلی دئ، او غزل، قطعه، رباعي او قصاید لري.
د ده غزل لطافت او خوږوالی او پر مضمون آفرینۍ باندي قدرت ښيي، تعقید او ابهام نه لري، په ساده الفاظو او ترکیبونو کي مضامین ځایوي، دا غزل یې د نمونې په ډول زه انتخابوم :

| | | |
|---|---|---|
| غوږ کاڼه کړه د غمازو و پېغور ته | | مزري نه ګوري د سپیو شر و شور ته |
| د یار خیال راغی و سترګو ته شرمېږم | | چي دا څه عزیز مېلمه راغی وکور ته |
| نرګس هسي ستا شهلا سترګو بیمار کړ | | په قوت شو د همسا له مزکي پورته |
| د هجران لمبې یې لا لیدې سوزاني | | ځکه ځان هندوي واچوه و اور ته |
| له هغو خاورو د اعذار لاله پیدا شه | | چي یې داغ د ښکلي مخ یووړ وګور ته |
| خط و خال چي یې رقیب وته څوك ستایي | | د مصحف توري نقطې ښایي وکور ته |
| درست صورت مي لکه کسی شو له شوقه | | چي دیدن د هغه یارکړم و هر لور ته |
| پر قوته لینده وشلوي ژر ژبه | | زوره ور څه دئ د چرخ و هومره زور ته |
| حال دي هیڅ راڅخه پټ نه دئ "سکندره" | | په فراق کي نارې مه وهه په زور ته |

"سکندر" زړه غم ته ورکړ راشئ ګورئ
په ســـــــاتنه یې خس وســــــپاره و اور ته

دلته د چاپي نسخې په دریم بیت کي "ستا شهید سترګو" راغلی دئ، چي معنا نه لري، او باید صحیح یې شهلا سترګي وي.
په آخر بیت کي " و غم ته" د بیت وزن ورانوي، باید (و) حذف سي.
د سکندر د کلام په ټولو اقساموکي د تصوف او عشق او میني او اخلاقو ښه مضامین سته او داسي ښکاري چي د ده له شاعرانه طبیعته سره ادبي مطالعات اوګڼ معلومات هم مله وه، او وینا یې هم پوخوالی او صلابت لري او هم خوږوالی او سلاست.
د ده په ګرده شاعري باندي تبصره د دې ځایه سره مناسبه نه ښکاري، ځکه چي زموږ څېړنه تش په قصیدو پوري اړه لري او دا د ده د دېوان دوهم ټوك دئ، چي له (۲۱۳) مخه شروع کېږي.
د سکندر ادبي او شاعرانه مروچي او د هنر تجلا د ده په غزل کي تر قصیدې ښه ښکاري، نو دی په حقیقت کي غزل ویونکی شاعر دئ، چي کله کله قصیده هم وایي، خو قصیده یې نه د غزلو ښکلا لري، او نه د قصیده سرایۍ آداب او لوازم.
دی پخپلو قصیدوکي نېغ په مطلب شروع کوي، تشبیب یا نسیب او تمهید نه لري، رډېلې خپل مقصد وایي او د کاکړو په اصطلاح (یوګای) کوي، او هغه په څه پیرایه او تمهید خبروکي نه نغاړي. مثلاً اخلاقي قصیده او د نصیحت وینا یې داسي ده :

| | | |
|---|---|---|
| ته چي فخر په مردۍ کړې د بابا | | راښکاره دي شوه مردي درومه بابا |
| دروغژن، زاني، ممسك به سردار نشي | | هم بخیل، قول بیعت چي کا ابا |
| مه بدګوی شه مه فحاش شه مه زود رنځ شه | | په ښه خوی کي آراسته اوسه زېبا |
| لکه زمکه هسي پست همېشه اوسه | | چي ښه بد درباندي ځي سبا بېګا |

په دې ډول دا قصیده شل بیته ده، خو نېغ نصیحت دئ ،کوم شاعرانه هنر یا د مضمون ښکلا نه لري، او لکه د یوه اخوند

غوندي وايي : "ښه کوئ بد مه کوئ!".
سکندر خان خو حساسه طبعه لري، شاعر دئ، دکلام قدرت يې په غزل کي ښه ښکاري، نکته آفرين دئ. د دغي غزلي په هر بيت کي يوه ښکلې معنا لري. په دوهم بيت کي د يار خيال او عزيز مېلمه او په څلورم بيت کي د نرګس ناروغي او په همسا پورته کېدل او د يار توري سترګي او په پنځم بيت کي د ستي کېدلو علت او په شپږم بيت کي له خاورو څه د لاله ګل راټوکېدل او په اووم بيت يوه صوفيانه نکته او د جهاني جمال ځلا داسي تخيلات دي، چي په پښتو کي يې د تعبير او تصوير او قوت بيان ښې نمونې ګڼلای سو. د اووم بيت جمالي ارزښت د دري د دې بيت سره اوړه پر اوړه درېږي :

در هر چه بنـــگرم تو پديدار بوده يی
ای نانموده رخ تو چه بسيار بوده يی

نه پوهېږم چي سکندر خان د خپل طبيعت دغه استعداد او قوت او نازکي او لطافت ولي په قصيده کي نه دئ ښکاره کړی؟ د ده د پلار او ورور هجري ځيني قصايد خو ادبي ښکلا په پېخرو پېخرو لري.
په دېوان کي تر اتيا بيته زياته يوه اوږده قصيده لري. په دې مطلع :

ځيني څه کارونه شي په دا جهان اوس
خصوصاً فتنه فســاد په دا ايوان اوس

وګورئ بې له کومه تمهيده يا نسيبه نېغ خپل مطلب ته ورننوزي. دی حق لري، چي د خپل عصر له ناوړو څخه شکوه وکي، ځکه چي د زمانې غالبو ظالمو حکمرانانو يعني د دهلي پاچهانو د ټول هند ثروت او د مظلوموويني زبېښلې، او د ډهلي او اګرې مانۍ يې په جوړولې او د ملوك الطوايف ډمامې پرګرده نيمه وچه باندي ډنګېدلې. دغه ټول فسادونه چي سکندر پخپله قصيده کي ځای کړي دي، تاريخي واقعيتونه دي او د فيوډالي نظام طبيعت او خاصيت هم دغه دئ.
وګورئ ! د شاه جهان زوی راولاړېږي او خپل پلار نيسي، په زندان کي يې غورځوي، خپل ورور تر غاړه نيسي او خوله يې ورېټوي، پرګرد هندوستان باندي د لمن الملکی (؟) نغارې وهي. دلته به د مظلومو بزګرانو او خواريکښانو او بېوزلو رعيتو حال څه وي؟ سکندر په دغه قصيده کي وايي :

| | |
|---|---|
| مروت، وفا، رښتيا له دنيا ولاړل | ځای (يې) ونيوه دروغ، مکر، بهتان اوس |
| که پخوا دهر بهار و اوس شو منی | چي هر لور آه و فريادکا رنځوران اوس |
| نه هغه لولوګوهر له دريا ووزي | نه هغه لعل و ياقوت له بدخشان اوس |
| نه هغه باران په وخت له اورو اوري | چي تمامه مزکه وکا ګلستان اوس |
| د ماضي ايام شاهان به کوم کوم شمارم | په ښه نام واړه حيات دئ په دوران اوس |
| يو د دوی غوندي ځما په عصر نشته | چي لايق د سلطنت وي په دوران اوس |

١٦

په دې ډول سکندر د خپل عصر ټول معايب او ناوړي په دې قصيده کي رابرسېره کوي، او د خپل چاپېر د خلکو اخلاقو او سلوك ته د انتقادګوته نيسي :

[١٦] په اصل (کي) مګر غلط چاپ سوی دئ.

| | | |
|---|---|---|
| په راتلل د تنګسې څه په اورېدل | | لور په لور درڅخه لاړ شي همرهان اوس |
| که د یار د بېلتانه په تیر زخمي شي | | په طلب يې طالب مشه د درمان اوس |
| درې څلور چي سره ناست وي مه ور درومه | | سراسر دي په ورتلل کي وينم زيان اوس |

د سکندر د عصر په ټولنیز ژوندانه کي د رياکارو او مغرضو شيخانو ډله هم دګوتنيوي وړ وه، دی حقيقي شيخان او د صافو زړونو خاوندان او هغه رهنمايان چي په فساد او ناوړو ککړ نه وي ښه بولي، خو پر ريايي او کرغېړنو مدعيانو باندي داسي انتقاد کوي :

| | | |
|---|---|---|
| که بازيد و که ذوالنون واړه ښکاره وه | | هسي نه وايم چي نشته بزرګان اوس |
| د عالم له بدخويۍ پوشيده اوسي | | په جبال او په ځنګل په بيابان اوس |
| پکښې اور دئ د ټګۍ ويسا پر مکړه | | چي لړلي په ايرو ويني جوګيان اوس |
| پندارونه يې پراته پر سجاده دي | | په دا مکر فن اکثر وينم شيخان اوس |
| شب و روز چي تسبيح اړوي په لاس کي | | خپل حساب کاندي د زرو عالمان اوس |
| د دنيا په جمعيت په فکر و غم دي | | په زانو مراقبه شي متقيان اوس |
| روايت د معتبر کتاب منسوخ کا | | چي سکه د زرو وويني قاضيان اوس |

دا خو د رياکارانو او زاهدنمايانو او رشوت خورو قاضيانو غندنه وه، چي د سکندر خان د عصر د ټولني په ورانۍ او اجتماعي فسادونو کي بې برخي نه وه، اوس د دغي اجتماع د فساد بل اړخ وګورئ :

| | | |
|---|---|---|
| بېګانه ورته قرين وينم تر خپلو | | خوی خصلت د سردارانو شو دا شان اوس |
| جاهلان ورسره خوښ په مسند ناست وي | | د عالم التماس نه وروړي دربان اوس |
| سيه تور داغ يې ښکاره د زړه په سر شي | | چي له کوره د ده ووزي سوې نان اوس |
| ويني سرې د مظلومانو نه دي څه دي؟ | | چي پرې سقف ستني رنګ کا د ايوان اوس |
| رحمدل، خدا ترسان به عامل نکا | | دا ظلم به علمدار وي ظالمان اوس |
| په کښتونو يې د ملك باران نه ووري | | چي په ځای د ابر ژاړي يتيمان اوس |

دا قصيده د سکندر د عصر د اجتماعي حال او د خلکو د ژوندانه او مسلطو طبقاتو د تېريو او ناخوالو هينداره ده، او که يې موږ په قديم ادب کي نظير وغواړو، نو د ناصر خسرو يا سنايي د ځينو قصيدو سره به شباهت ومومي. ځکه دغه دواړه شاعران دغسي د خپل عصر ناوړي غندي او سخته انتقادي ژبه لري.
د سنايي ځيني اخلاقي او اجتماعي ګټه وري قصيدې هم کوم تشبيب او تمهيد نه لري، نېغ په نسيب او انتقاد پيل کوي، او سکندر هم په قصيده کي د سنايي غوندي نقاده او نېغه لهجه لري. تاسي دلته د سکندر د قصيدې منتخب يو څو بيتونه وکتل، چي د حضرت سنايي يوه دري قصيده هم دغه شانته مضامين لري، او ګمان کېږي چي سکندر دغه قصيده ضرور لوستلې او خپله پښتو قصيده به يې هم د سنايي د انتقادي او اخلاقي وينا تر اثر لاندي ويلې وي، واورئ د سنايي څخه يو څو بيته :

ای مسلمانان خلایق حال دیگرکرده اند
از سر بی حرمتی معروف، منکرکرده اند
کار و جاه سروران شروع در پای او فتاد
زانکه اهل فسق از هرگوشه سر برکرده اند
پادشاهان قوی بر داد خواهان ضعیف
مرکز درگاه را سد سکندرکرده اند
ملك عمر و زید را جمله بترکان داده اند
خون خشم بیوگان را نقش منظرکرده اند
عالمان بی عمل از غایت حرص و امل
خویشتن را سخرهٔ اصحاب لشکرکرده اند
خرقه پوشان مزور سیرت سالوس و زرق
خویشتن را سخره قیماز و قیصرکرده اند
گاه خلوت صوفیان وقت باموی چو شیر
ورد خود ذکر برنج و شیر و شکرکرده اند
خون چشم بیوگانست آنکه در وقت صبوح
مهتران دولت اندر جام و ساغرکرده اند

د سنايي دغه قصيده د خپل عصر هينداره ده، او دا د شاعر هنر او د مروج کلام اثر دئ چي مور د اخلاقي او انتقادي شاعرئ په ښېګڼو روديږو، او تر ده وروسته ډېرو شاعرانو پخپلو ژبو کي د ده اغېزه منلې او د عصر د اجتماعي او واقعي مناظرو عکاسي يې کړېده. سنايي په پای کي وايي :

ای مسلمانان دگرگشته است حال روزگار
زانکه اهل روزگار احوال دیگرکـــــرده اند
ای ســــــنایی پندکم ده کاندرین آخـر زمان
در زمـــین مشتی خـــر وگا سر و برکرده اند

سکندر هم خپله قصيده داسي ختموي، چي د سنايي له کلامه سره بې شباهته نه ده :

چي په دا مـــــــکر فســـاد زمـانه وينم
لا عجب که سلامت يوسم ايمان اوس
نندارهٔ د نېك و بدوکړه ســــکـــــندره
چي څه چاري کا عالم په دا آوان اوس
و هر بيت وته يې ګوښي ګوښي ګـوره
آيينه ده د سکندرګوره جـــــهان اوس

اشرف خان هجري د سکندر ورور، پخپله يوه انتقاديه قصيده کي د ده شعر داسي ستايي :

د سکندر شـعر له څه سره مخئ کـــــړم
طبـــــــيعت يې ډېر تر درو مـــــنور دئ
د اشعارو ملك يې همه په ژبه خپل کړ
په سرير د نظم شــــــاه بل ســــکندر دئ

(د هجري خطي دېوان، ٤٤ مخ)
لنډه يې دا چې سكندر خان د خوشحال خان د زامنو شاعرانو په
لومړي صف كي درېږي او په تېره يې بيا غزل خورا خوږه او د سهلو وړ او خوندوره ده.

**ګوهر خان ختټك :**
د خوشحال خان د درنې او د ستايني وړ كورنۍ چې پښتو ادب ته كوم خدمتونه كړي دي، د دوی په سبب د ختټكو كام د احترام وړ دئ.
ما د دې كورنۍ پر قصيده سرايي باندي څېړنه اوكتنه تر دې ځايه رارسولې وه، چې متأسفانه د دماغي او قلمي كارونو د ډېرښت په سبب داسي ناروغي راته پيښه سوه، چې بايد د طبيعت په سپارښت قلم كښېږدم، كتاب او كاغذ هم پرېږدم. ځكه نو پر سكندر خان باندي هم لنډ لنډ ورغېدم او د دې له پاره چې د خوشحال خان د زامنو څخه يو بل قصيده ويونكی ناپېژندلی نه وي پاته سوی، ناچاره يم چې دا بحث پوره كم او يو څو ټكي پر ګوهر خان باندي هم وكاږم.
راسئ چې لومړی خو ګوهر خان لږ څه وپېژنو :
دی د خوشحال خان له زامنو څخه دئ، چې د خپل پلار سره له كوچنيوالي څخه تر ځوانۍ پوري په اكثرو سفرونو او جنګي واقعو كي ملګری و، (تاريخ مرصع، ٣٢٢ – ٣٩٦)، او كله چې خوشحال خان په (١١٠٠ هـ ق) كال وفات سو، ده په دغه مثنوي كي د وفات تاريخ ووايه :

| | | |
|---|---|---|
| خان خانان و قدوهٔ افغان | | آن حكيمی سر خردمندان |
| چون به هفتاد و هشت سال شده | | چو الف بود، همچو دال شده |
| روز آدينه بود چون زجهان | | رفت و مانديم ما به آه و فغان |
| غرهٔ ماه مهر بود آن حوت | | كه به لب می نهاد مهر سكوت |
| بيست و هشتم ربيع آخر بود | | كه امين جان پاك او بر بود |
| چون زتاريخ فوت خان خبرم | | شده "زما رفت زين جهان پدرم" |

(تاريخ مرصع، ٤٨٢ مخ)
تر خوشحال خان وروسته چې په قبيلوي رقابتونو كي افضل خان د اشرف خان زوی او د ګوهر خان وراره بريالی او د ختټكو خان سو، نو ګوهر خان هم د خپل وراره سره ملګری و، خو د سياست چاري يې هغه ته پرېښي وې. وخت يې په علمي او ادبي چارو تېراوه، د ده دېوان ما نه دئ ليدلی، خو يو غونډ او ضخيم منثور كتاب يې د قلب السير په نامه (٤٠٠) پاڼي ما د پيښور په موزيم كي كتلی دئ، چې په دېرش بابه كي يې د حضرت محمد ) سير او انساب او احوال او د خلفای راشدينو تاريخ د ډېرو عربي او فارسي معتبرو كتابو په حواله ترجمه كړی دئ، او د پښتو نثر په غورو آثارو كي راتلای سي.
ګوهر په دې كتاب كي ځای پر ځای خپل اشعار لكه غزل، قطعات، رباعيات او تغزلات او قصايد راوړي او د كتاب نثر په ښكلي كوي.
دا كتاب يې په (١١٢٠ هـ) كال د خپل وراره افضل خان په نامه كښلی او د دغه اديب او مؤرخ او مقتدر خان ادب پالنه او د پښتو كتابونو را ژوندي كړنه يې ستايلې ده.
دی وايي :
"اګر چه پښتو ژبه په علت د دورنشينۍ هونبره لذت نلري چه عربي او فارسي سره نسبت شي، ليكن از راه ضرور پښتنو ته هم په پښتو ويل بهتر دي، او سنت الهي هم پدا جاري دئ. هر كتاب چې به نازلېده، هم د هغه قوم په ژبه به نازل شه، دا پدا چې د هر چا پخپله ژبه فهم كېږي :

دوه یاران چي راز د زړه تر بله نمايي
بایده دئ چي پخــــــــــپله ژبه وايي
د فارسيانو کن مکن ویل څه سود کا
پښــتنو ته کړه مــکړه ویل ښه ښــــايي

دکتاب د مضمونونو په ترڅ کي ځيني مفيدي اخلاقي او اجتماعي ټوټې داسي ځايوي :

مال چي دي وخوړ، هم هغه ستا دئ
چي له تا پاتو شي نور د نور چـا دئ
که دي څه وښنده د خدای په لـوري
مال دي هم دا دئ مال دي هم دا دئ

دګوهر خان د فکر جولانګاه هم هغه ديني او مذهبي چاپېر دئ او دغه کتاب يې هم په ديني احساس او روحاني داعيه د ديني لویو لارښوونکو پر احوال کښلی دئ. نو ځکه د ده قصيده هم دغسي رنګ لري او په ديني پيرايو سمباليږي.
د قلب السير په سريزه کي د حمد و ثنا یوه ډېره اوږده قصيده لري چي د حضرت محمد ) پر نعت او دعا ختميږي، او داسي ښکاري چي سړی په مسجد کي د یوه ژبور اخوند خطبه اوري، دا قصيده داسي شروع کيږي دلته نو په صنعت التفات لوی څښتن ته خبره اړوي :

نه د خيال د عقل کار شته ستا و ذات ته
انبيا دي سرګــــشته په دا اســـرار شي

وروسته بيرته له مخاطبه، غايب ته ملتفت کيږي :

څه عجب خرګاه يې روغ کړ بې ستونه
پکښي نورکارونې ... چي يې رفتار شي (؟)
څه عجبه فرش ترو لاندي غوړولی
بيا پر جوړ، جبال، اشجار، دريا ثمار شي
ډېر تأثير يې په آفتاب مهتاب کي ايښی
هم له نوره يې روشن ليل و نهار شي

دا دئ له دغي قصيدې څخه د نعت څو بيته :

محمد يې کړ پيدا له خپله نوره
عرش و فرش يې کل روشن پدا انوار شي
دی سلطان دئ اولوالعزم د انبياوو
د آدم او د حوا پرې افتخار شي

قصيده خورا اوږده ده، دلته نوره نه ځايیږي. مقطع يې په شاعرانه وياړ ختميږي، مګر ښاغلي لوستونکي په ذوقي توګه دا ټاکلای سي چي ګوهر خان به په دغه افتخار کي څوني برخه لري؟

ښه يې وپېيل ګــــــوهر په تار د نظم
آفرين دي پدا هسي شان اشعار شي

(د قلب السير له خطي نسخې څخه)
تر هغه ځايه چي دګوهر خان نظمونه او نثرونه ليدل سوي او پيدا سوي دي، موږ ده ته د خوشحال خان په شاعرانو او ليکوالو زامنو کي دريمه برخه ورکولای سوای، ځکه چي د ده په تخليقاتو کي هنري ښکلا او شاعرانه لطافت لږ ښکاري، او په فني لحاظ يې ناظم بللای سو، نه شاعر.
دګوهر خان د وفات نېټه نه ده معلومه، خو د قلب السير له سريزي او د ده له ويناوو څخه ښکاري چي په (۱۱۲۰ هـ ق) کال سپين ږيری او د کورنۍ مشر و. خپل وراره افضل خان ته دکشر په خطابونو سره دعاوي کوي، او د ده توفيق د قوم او ژبي په خدمت کي غواړي.

**کاظم خان شيدا :**

کاظم خان شيدا د ختکو د کورنۍ د ادبي ګلستان وروستی ګل او د هغه آسمان آخرنی ځلاند ستوری دئ، دی د خوشحال خان کړوسی او په څلور پښته د خپلي کورنۍ د ادبي رواياتو حامل و.
کاظم خان په داسي محيط کي پيدا او لوی سوی و، چي نيکه او پلار او ټول تربرونه يې شاعران او ليکوال او مؤلفان وو او له دغسي ادبي چاپېره حتماً په ټولو ادبي رواياتو او فني عنعناتو خبر سړی راوزي.
اما دکاظم خان په شاعري کي چي غزل يې لويه برخه ده يو راز لفظي او معنوي بدعت ښکاري، ځکه چي ده د فارسي ادبي تعبيرو او د عربي غريبو الفاظو راوړلو کي داسي افراط کړی دئ چي يقيناً يې د ده شعر د پښتو له ادبي معمول سبکه ليري کړی دئ.
دکاظم خان د دې فکري او لفظي تحول د تحليل له پاره موږ مجبوره يو چي د ده د ژوندانه محيط او د عصر ادبي جريان وڅېړو او ويې ګورو.
د شيدا د ژوندانه دوره د هند د مغولو د آخرينو سوګليو وخت دئ، د ده مخي ته د فارسي د سبك هند د مقتدرو استادانو لکه کليم او عرفي او فيضي او نظري ښکلي تخليقات پراته وه، مګر هم په دغه عصر کي د سبك هند افراطي شاعرانو لکه بيدل او ناصر علي د شعر پر ادبي جريان دروند تسلط درلود، چي دغو استادانو په فارسي ژبه کي د تعبير او ادا او موشګافۍ او نزاکت آفرينۍ او شاعرانه تلازماتو او استعارو يو نوی ور پرانيتی و. حتي چي ځينو پخو د فارسي ادب استادانو دغه جريان کورټ بدعت ګاڼه او سخت يې غانده.
محمدعلي حزين چي له فارسه هند ته راغلی د ادب منلی استاد و، د دغه جريان داسي مخالف و چي ده به ويل :
"که زه بيرته وطن ته ولاړ سم نو د خپلو ملګرو او دوستانو د خندا او ملنډو له پاره د ناصر علي تر کلام بل بهترين شی نه سم وړلای".
مګر ميرزا عبدالقادر بيدل چي يقيناً د خپل عصر لوی پوهاند او صوفي او پوخ شاعر و دغه سبك يې داسي مقبول او د منلو او سهلو وړ کړ، چي وروسته دغه استاد ډېر پيروان او عقيدت مندان وموندل او يو خاص د ادب مکتب يې وپرانيت چي حقاً بايد د ده په نامه د بيدل مکتب وبلل سي.
په پښتو ادب کي همدغه هندي سبك اغېزې وکړې او لومړی پلا حميد ماشوخېل مهمند د دغه سبك ادبي موشګافي او تلازمات د نظيري او عرفي په پيروي خو په معتدل ډول پښتو ادب ته راوستل.
مګر د حميد استادي دغه ده چي د پښتو د تعبير قوت او رنګ او جوله يې پکښې خوندي کړه، او په دې کار کي يې له بې ځايه افراطه ځان وژغوره.
اما شيدا خو د خپلي کورنۍ په فيوډالي کړاو کي د سياست ښکار سو او د عمر اکثره برخه يې په کشمير او هند او رامپور کي له وطنه ليري تېره کړه او د سبك هند سره مستقيماً مخامخ سو او د هند د ادبي جريانه څخه يې درنې او سِده اغېزې قبولي

کړې[۱۷].
نو که د ده په شعر کي موږ یو ډول بدعت او افراط کاري او د سبك هند د آخرني عروج نخښې وینو، دی به ډېر نه ګرموو، ځکه چي محیط خو حتماً د شاعر په فکر او سبك کي اثر کوي، او پخپله شیدا هم دې نکتې ته متلفت و، چي ویل به یې:

| | | |
|---|---|---|
| که نکات مي عجایب دي<br>خاص به حسن د کلام وي<br>خالي نه وي له صنعته<br>په لوستنه یې ابتهاج کړه | | عبارات مي غرایب دي<br>د معنی دقت یې عام وي<br>عاري نه وي له رفعته<br>آفرین مي په مزاج کړه |

رشیتا دا ده چي شیدا د فنان ذوق او مضمون آفریني قریحې خاوند او ده په پښتو کي هغه کار کړی دئ چي بل چا نه و کړی.
نو لکه په فارسي کي چي د حضرت بیدل تخلیقي ادب خاص مقام لري او حتی مخالفین یې هم د فکري یوې خاصې ذخیرې په ډول مني او دغه ګران بها پانګه نه سي هېرولای، دغسي هم د شیدا شعر او په خاص کړه بیا غزل یې د پښتو یوه خاصه او خوندوره پانګه ګڼل کېدای سي.
د شیدا پر شاعرۍ باندي څېړنه او ږغېدنه ډېر وخت غواړي، خو دلته زما د دې څېړني سره یوازي د ده قصیده اړه لري.
ښاغلي بېنوا څو کاله مخکي د ده دېوان ترتیب او چاپ کی، چي فقط د شیدا دوې قصیدې لري او یوه یې نزدې دوه سوه بیته ده.
د دې قصیدې تشبیب د منظرنګارۍ او د شاعر د نکته آفرینۍ یو اوږد سجل دئ چي داسي پیل کېږي :

| | | |
|---|---|---|
| بیا تحول شو د حمل ګوره آثار<br>څه بیان وکړم د ګلو له افراطه<br>یا چه چه د عندلیب په ښاخ د ګلو<br>یا خوبي په هر طرف د خرمیه<br>یا په سر د هر زلمي زېبا ګلونه<br>یا له خیاله آشفته د دستار ولونه<br>یا لباس د دلبرانو قسم قسم<br>یا یې دور د خلخال او د څړیه<br>یا نغمه د مغني په څو څو رنګه<br>یا شوخي د رقاصانو په ادا کي<br>یا هر دم باده نوشي د ساقیانو | | شګفته په هر طرف تازه بهار<br>یا انواع کړم د ګلونو درته شمار<br>یا جلوه د روان آب به سبزه زار<br>سرسبزي د باغ و راغ هم د کوهسار<br>یا په غاړه د خوبانو رعنا هار<br>بې شماله توري زلفي تار په تار<br>یا یې ټیك په تور اوربل باندي آشکار<br>په خرام کي یې ادا د ژرنګهار<br>ترانه یې د شیدا رنګین اشعار<br>یا ګرمي د حریفانو په خپل کار<br>منعدم وینمه هوش د باده خوار |

دا قصیده د شیدا فکري مجرا ښه راښیي چي د هندي ژوند نخښې پکښې تصویر سوي او داسي ښکاري چي شاعر د هندي بزم په رنګ پوره رنګېدلی و او هر څه چي ویني او هر څه چي وایي، ته وا ږغ یې د یوه هندي موشګاف ویونکي ږغ دئ.
وګورئ په دې بیتو کي شرري تخم او د بنفشې ږمنځ، او د غنچې پرده، او د برقي شعلې ګرم بازاري او د ګلو د اور لمبې ټوله

[۱۷] د پښتو ادب تاریخ، د څلرم ټولګي له پاره، پر همدغه ځای پای ته رسېږي، وروستني ټول مطالب مي (د پښتو ادب په تاریخ کي قصیده) نومي کتاب څخه رانقل کړي دي. (م. روهیال)

هغه تراکیب او تعابیر دي چي فقط هم د هندي سبك د آخرني عروج په وخت کي د بیدل او ناصر علي له خولې اورېدل کیږي. خو د نورو په غوږو کي داسي ږغونه حقیقتاً غرابت او وحشت لري، او د محمدعلي حزین په تعبیر فقط د خندا او منلړو وړ دي، شیدا په دغه قصیده کي وايي :

| | | |
|---|---|---|
| د غنچې له پردې مخ د ګل ښکاره شي<br>چي په سر لکه شعله یې حواله شي<br>توري زلفي یې پرېشاني په سبا شوې<br>پرېشاني د ګل خرمن کړ ګل فروشو<br>په لمبه یې لکه دود د بهار ابر | | د عروس غوندي په ډېر زیب و سینګار<br>پس شرر د ګلو تخم کړ ګل کار<br>شانه هیڅ د بنفشې نه ده په کار<br>که د برق په شعله ګرم دئ بازار؟<br>افروخته په باغ و راغ د ګلو نار |

د هندي نڅا یو منظر داسي تصویر کوي، چي د دې فن کمال دئ، خو رنګ یې داسي هندی سوی دئ چي له پښتني ذوقه او د پښتو له تعبیره ډېر لیري ښکاري:

| | | |
|---|---|---|
| څرخ وهل د دل آرام دي راته وایه<br>په رنګین قالین رفتار کوي د رقص<br>حنايي قدم چي اوس په قالین کیږدي<br>په صفا یې د لقا قالین مرآت شي<br>په صدا یې د هر زنګ او د کنګرو هم<br>د مهتاب په چپ و راست په پېش و پس هم<br>د سیم تن په هر طرف افراط د نقد | | که فلك دئ نن زما په کام د وار<br>که صبا دئ په ګلشن کاندي ګذار<br>د کاشان اهل صنعت شه ځني زار<br>د توتي نقش ګفتار کاندي چغار<br>هر نفس د شاهد باز خاطر افکار<br>لکه خاص شي کواکب په انتشار<br>چي حاصل یې وي د فن کامل عیار |

شیدا د دغو موشګافیو او صناعیو وروسته ځینو اخلاقي مطالبو ته ګرېز کوي، او خپلي قصیدې ته د پند او موعظت رنګ ورکوي. مګر دلته هم منفي او فراري فلسفې ته هڅه کوي، چي دا هم د هند د روحاني محیط او د ده د ژوند د اوږدو محرومیتونو نتیجه ده، وايي :

| | | |
|---|---|---|
| د دنیا اوج لړلی په ډېر غم دئ<br>اعتماد یې هیڅ په داد و ستد نشته<br>انقلاب د زمانې تنده سېلۍ ده<br>طاوسي تخت یې په شان د بنې واخیست<br>خپله خونه لکه مرغ د پیر کاه کړه | | لکه کښېنوي عاصي په سر د دار<br>کجبازي یې ده په مثل د قمار<br>چي په هند یې وه راغلې دند و کار<br>بیا یې تېر کړ ترکابل و قندهار<br>چي محتاج نه شي په عمر د معمار |

د شیدا دا فکري فراري اړخ خو اوس زموږ له پاره اخلاقي سرمشق نه سي ګرځېدلای، مګر د ده ادبي زیار او رنګارنګ مضمون آفرینۍ او نوي تعابیر خو زما په خیال پښتو ادب ته د یوې پانګې په ډول ډېر غنیمت دي، او که ده څه بدعت کړی وي، نو هغه به هم د بداعت حصه په شمېر راتلای سي او دی به د ادبي شریعت په حکم په دې خپل کړاو کي مأخوذ نه وي.

ځکه په ژبه کي باید تل د توسیع او ارتوالي وسایل موجود سي او د هر راز تخیل د تصویر له پاره الفاظ او تعابیر ولري. نو د مرحوم شیدا سخنګویي چي د پښتو په بحار کي د سوسن ژبه سرمه سایه کوله پر خپل ځای د قدر وړ ده، او موږ د شیدا زیار او مښود د پښتو ادب په تاریخ کي کورټ نه سو هېرولای.

د سوسن ژبه حیرت کړه ســـرمه ســـــایه
چي شیدا په دا بحار کي سخنګوی شو

شیدا پیاوړی آرټیسټ و، خو افسوس چي د ده د آرټ ذوق له خپله محیطه لیري د هند په مځکه کي پرورښت وکی او هندي اداکارو په دې ساده پښتون نوري چاري وکړې، دی پخپله وایي :

په هندي ادا یې وکړې په ما چــــاري
زه شیدا په زړه ساده د روه افغان یم

# د نورو شاعرانو قصاید

## د خواجه محمد بنګښ قصیدې :

د یوولسمي هجري پېړۍ دغه نازکخیاله شاعر موږ هغه وخت و پېژاند، چي د ده (٢٤) غزلي او شپږ قصیدې راوړتي پخپل کتاب ګلشن روه کي په (١٨٦٠ م) کال د انګلستان په هرتفورډ کي چاپ کړې، او بیا فادر هیوز په کلید افغاني کي هم ځای ورکی، (د لاهور طبع ١٨٩٣ م).

کله چي په (١٣١٩ ش) کال ما د پښتانه شعراء لومړی ټوك سره راټولاوه، نو مي د بنګښ پر احوال او شاعرۍ باندي فقط د ګلشن روه او کلید افغاني په حواله لږ څه ولیکل، خو وروسته د ده د دېوان یوه خطي نسخه د مردان د پښتنو یوه پوه ښاغلي حبیب الرحمن ما ته راولېږله، چي تر اوسه راسره پرته ده، څو چي په (١٩٨٥ م) کال د پېښور پښتو اکاډیمۍ د پرېشان خټك د مقدمې سره چاپ کړه.

خواجه محمد د خوشحال خان د زمانې سړی دئ، چي هم د شاه جهان او بیا د اورنګزېب معاصر ګاڼه سي، پخپله وایي :

هسي خـوښ د تخـــت د پاسه خـــرم نه دئ
چي عاشق د ستا په درکي خوښ خرم دئ
(د دېوان **٩٣** مخ)

خرم خو د شاه جهان نوم دئ، چي په (١٠٦٨هـ ق) کال خپل زوی له تخته راوغورځاوه. په بل بیت کي خپل معاصرت د اورنګزېبه سره هم داسي ښیي :

د اورنګ په پاچهي کي مي نیاو نه شي
زه خواجه محـــمد به ووزم و بل لــــــور ته

نو موږ د ده د ژوندانه حدود له (١٠٣٠ هـ ق څخه تر ١١٠٠ هـ ق) پوري ټاکلای سوای.

دغه مطلب په لاندي دلیل هم ټینګېږي چي بنګښ په چشتي صابري طریقه کي د میا عبدالرحیم مرید و او د دې سړي پلار میا علي د شېرپاو اوسېدونکی بیا د اکبر پورې د اخوند پنجو مرید و، پخپله وایي :

چي ســــــاکن د چشــــــتیانو په سریر دئ
شیخ حضرت عبدالرحیم زموږه پیر دئ

د اخوند پنجو بابا د مرګ کال (۱۰۷۳ هـ ق) دئ (خزینة الاصفیا، ۱/۷۹ مخ). نو بنګښ په درو وسیلو د اخوند پنجو د طریقت په سلسله کې داخل بلل کیږي.
د خواجه محمد بنګښ غزلې خو په لفظ او معنی کې د هنر ښکلا لري، هم یې قالبونه ښه دي هم یې محتوی ښکلې ښکاري، د تصوف په رنګ کې عاشقانه غزلې لري چې کله کله په اخلاقي او عرفاني ګڼو هم پسوللې سوي دي، لکه د زړونو ماتول (نه آزارول) چې شاعرانو راز راز مضمون آفرینۍ پکښې کړي دي، خواجه محمد یې په دې بیت کې څنګه په یوه حسي تشبیه سره تلقین کوي :

زړونه مه ماتوه لعل د بدخشان دي
بیا مشکل دي رغول د شکسته وو

په دې بیت کې د جناس او استعارې او تضاد اقسام څنګه سره یو ځای سویدي :

ګوتې توري کړې په ما یې کړې راپوري
زه حیران یم ستا د سپــــینو ګــوتو تور ته

د ښاغلي پوهاند رشاد په حساب د ده خطي دېوان (۱۸۱۳) بیتونه اوګرده (۱۴۲) غزلې او (۳۱) قصیدې لري، (وړمه مجله، ۲ ګڼه ۱۳٤۸ ش)، او دغه نسخه چې په (۱۳۲۰ هـ ق) د حمیدالله په بد خط کښلې سوېده، ډېر نواقص او ادبي عیوب هم لري، چې سړی ورته اریانیږي. ځکه چې د خواجه محمد ځیني غزلې خو د ده بشپړه ادبي استادي او پر لفظي او معنوي ښیګڼو باندي احاطه څرګندوي چې په عروضي اصطلاح یې خرم بولي.
او د ځینو بیتونو ضروري هجاوي یې کمې دي، یعني پزېږې کړي بیتونه لري. داسې ګمان کیږي چې دغه به د کاتبانو ګناه وي، چې د ده د ځینو بیتونو پزې یې ور پرې کړې دي.
د ده له یوې اوږدې قصیدې څخه د اڅو بیتونه ولولئ چې د شاعر د هنري کمال ځلا ځني ښه ښکاري :

زړه راځخه وړی دئ جمال د چشتیانو
سرې سترګې، سرې شونډې مجذوب حال د چشتیانو
واړه شهبازان د لا مکان سیرونه کاندي
هسې رنګه تېز دئ پر و بال د چشتیانو
پټ په زړه کې تل لکه لاله وینه د زړه خورم
نشته دئ په ژبه قیل و قال د چشتیانو
دا څه سپوږمۍ نه ده چې ځلیږي په آسمان کې
تللی په آسمان کې د آس نال د چشتیانو
زړه به د دردمنو لکه ګل پرې وغوړیږي
کله به راوالوزي شمال د چشتیانو
هیڅ ورته څرګند شوه د دنیا واړه شالونه
هر چې یې اغوستي شړی، شال د چشتیانو
سر و مال به ورکړم کې یوه ذره ترې راکړه
ډک جامونه ګرزي مالامال د چشتیانو
واړه ښایسته په مثال ستوري د آسمان دي
ما پکښې موندلی دئ هلال د چشتیانو

(ص ۸۲ خطي دېوان)

قصیده اوږده ده، او سړی د شاعر د استعداد نښاني پکښې لیدای سي، خو ټوله د یوه مخلص ارادتمند له زړه راوتلي کلمات

دي، چي د نورو په درد نه خوري.
خواجه محمد د تلقين او وعظ و پند قصيدې هم لري چي د کلام قوت او رواني يې ځني ښکاري، دا د سنايي غوندي زهديات دي، چي د شرقي ادب يوه لويه برخه گرځېدلې ده، لکه دا قصيده :

| | | |
|---|---|---|
| د دنيا عمر دي تېر که بېهوده | | که شپېته و، که اتيا وکه زياده |
| بختورو له دنيا فايده يووړه | | تا بې زيانه هيڅ ونه کړله فايده |
| د مجلس ياران همه درڅخه لاړه | | نظر نه کړې په رڼو سترگو اوده |
| په سرې باندې چي غم پرېوزي خوب نکه | | ته چارپا يې که سړی آدم زاده؟ |
| پلار، نيکونه دي همه په مرگ تمام شوه | | خلاص به نه شې يکتنها علاحده |
| زنده سر به په دنيا کي پاتې نه شې | | چا اخيستې ده غافله ستا هوده |
| په پيرئ دي ږيره سپينه شوه ملا ټيټه | | لا ترکومه به پايېږې جك زده |
| ستا شپېته کلونه تېر شوه زوړ بوډا شوې | | ته لا ځان گڼې تر اوسه چهارده |
| که عاقل يې دنيا پرېږده قلندر شه | | فقيران په دواړه کونه آزاده |
| د گمان پرده دي ليري کړه له مخه | | رضا کېږي د صاحب په اراده |
| د مغان د دروازې د در خادم شه | | چي د عشق له جامه درکاندي باده |

دا زاهدانه قصيده په مناجات داسي ختمېږي :

| | | |
|---|---|---|
| هدايت وکړه و ما ته يوه خدايه | | چي و تا ته ځم په سم لار رسېده |
| ما بد وکړه زه بنده يم بې ادبه | | ته بخشش کوه پخپله قاعده |
| گناه کار خواجه آزاد کړه غني خدايه | | غنيان تل آزادوي زاړه برده |

(ص ۹۲ خطي دېوان)

په دې قصيده کي د عشق او ميني د مرموزي دنيا ځيني اسرار او دردونه يا خوندونه او شواخونونه څرگندوي، او داسي ښکاري چي دی پخپله په عيني ډول له دغو وارداتو سره آشنا و :

| | |
|---|---|
| عاشقان نظر په مخ د قمر نه که | ښېله یاره و بل مخ ته نظر نه که |
| شپه و ورځ د ده په فکر مستغرق وي | غیر فکر (یې) په زړه کې ګذر نه که |
| نور عالم چې سپوږمۍ ویني اختر که | عاشق بې د یار له میني اختر نه که |
| هغه لاف د عاشقۍ کا په دروغو | چې بلبل غوندي فریاد په سحر نه که |
| د هجران اغزی مي ښخ دئ په پهلوکي | عاشقان بېغمه خوب په بستر نه که |
| پروانه له بلي شمعي نه جاروزي | څو آخر پرې دړې دړې بشر نه که |
| که یار سر ورځخه غواړي ترې (یې) ځار که | هیڅ د سر په پرېکولو خطر نه که |
| عاشقي د تن پرورو خلکو نه ده | خر، ټټو به خدای د آس برابر نه که |
| په خوله تشي لافي کا د عاشقۍ | معشوقه چې ورته وایي اثر نه که |
| که هر څو وربانديکا ناځاري چاري | عاشقان د یار له جوره حذر نه که |
| مستغني د قناعت په خزانو شي | جستجوی د دنیا دارو په در نه که |
| هم سفر هم یې مقام دئ پخپل کورکي | و بل لوري ته هیچري سفر نه که |
| که په هر وېښته یې وي هزار هنره | بې له عشقه عارفان بل هنر نه که |
| د عشق تاج به د هغه پر سر حرام وي | چې د یار له پاره خاوري په سر نه که |
| په دا لاري ډېر خطر دئ لاړ به نه شي | څو چې توره د اخلاص په کمر نه که |
| له دې غمه به هرګز بېغمه نه شي | څوګردن د غلیم غوڅ په خنجر نه که |
| د عاشق نامه به کله وي پر روغه | څو په سرو لنبوکي ځان سمندر نه که |
| بحروبر یې دواړه بیا مونده په کورکي | عاشقان سفر د بحرو د بر نه که |
| د تهمت له ناپاکیو به خلاص نه شي | څو پناه ورته د صبر سپر نه که |
| که تندی په دواړه لاس وهي له غمه | نور به کښلي د محفوظ د دفتر نه که |
| په یوه نظر یې زړه راځخه یووړ | یار و ما ته نظر بار دیګر نه که |
| پرهرونه مي د زړه واړه زون شوه | طبیبان مي هیڅ علاج د پرهر نه که |
| زه په یار پسي په غلا ژاړم له خلقه | چیري نه وي چې رقیب راخبر نه که |
| ما به سر له تنه غوڅ د رقیب پرېکړ | ملګري راسره چرغ اخضر نه که |
| آه فریادکوم له درده سره ژاړم | د آه غشی مي هرګز پرې اثر نه که |

۱۸۱۹

د خواجه محمدکه سر ځي لاړ به نه شي
څـــــو یوه بوســـه یار ده لـــــــره ور نه که
(خطي دېوان، ۷۰ مخ)

دا وې د خواجه محمد د قصیدو یو څو نمونې چې دلته راغوره کړه سوې.
ښاغلي لوستونکي که دغه د عشق او زهد بیانوونکي قصیدي ولولي، او بیا یې د ده د غزلو سره پرتله کي نو به دا له ورایه ورښکاره سي چې غزلیات یې ډېر ښکلي او مستانه او لطیف دي، خو په قصیدوکي یې د زاهدانه تقشف ډېري اغېزې لیدلي

[18] مراد د نقشبندي صوفیانو سفر در وطن دئ. چې صوفي پخپل نفس کي یون کوي، او خپل باطن تصفیه کوي او ځان پېژني.

[19] زوی : هغه د وینو سره ګډې اوبه چې په زخم کي وي. زون : هغه پرهار چې اوبه واخلي او زوي کوي.

کیږي.

موږ به خواجه محمد په دې واعظانه قصیدو او مریدانه ویناوو نه کړو، دی د خپل عصر د روحاني فضا نمایندګي کوي، او دغه کیفیت د دغه عصر په اکثرو هنرمندو شاعرانو لکه د عبدالقادر خان او ګوهرخان او نورو په ویناوو کې هم سته.

لنډه یې دا ده :

که موږ د خواجه محمد د ځینو غزلو طراوت او ښکلا او مضمون آفرینۍ او بیا د ځینو قصیدو واعظانه ډول یا د مضمون اوچتوب ګرده سره راټول کو او ده ته د پښتو نورو شاعرانو په کوم پوړ کې د درېدلو ځای وټاکو، نو به په متې د هجري او عبدالقادر ځای ته ورسیږي.

وګورئ ! د بنګښ دغه د وعظ او زهد مطلبونه که د غزل په قالب کې توی سي، نو داسي ګټوره، ښکلې او موثره وینا ځني جوړیږي :

| | |
|---|---|
| چي بازار لره خالي لاسونه درومې | اټکل نه کیږي چي سود به ځني راوړې |
| ته د وړاندي ځې دنیا دي کړه د وروستو | په تورتم کي مشال ولي پسي شاوړې |
| عاقبت به یوه ورځ درڅخه مات شي | که هر څو په احتیاط لوښي متیا[20] وړې |
| چي دي تخم پر پټي کرلی نه وي | د غلې په وخت به واخلې ځني خاورې |

نصیحت و بل ته کړې خواجه محمده !

ته یې ولي د خپل زړه په غوږو ناورې؟

(خطي دېوان، ٤١ مخ)

**د علي اکبر اورکزي په ګلشن افغان کي قصیدې :**

د اتحاد جماهیر شوروي د ارمنستان د جمهوریت د مرکزي ښار ایروان په کتابخانه کې یو ډېر خوشخطه او ښکلی او منقوش او مذهب (طلاکاري) او مصور دېوان سته، چي په هغه کتابخانه کې یې نمبر (٥٣٨) دئ.

نه پوهیږم چي دغه قلمي ښکلې او مصوره نسخه څنګه له پښتونخوا او کشمیره ارمنستان ته وړل سوېده؟ د دې نسخې یو میکروفلم د کابل په عامه کتابخانه کې سته.

د نسخې خط ښکلی نستعلیق دئ او ځیني مصور مخونه هم لري، د تصویر او تذهیب سبك یې کشمیری او متأخر دئ، خو د ښکلا او رنګ او تصویر او تذهیب اټکل یې په تور میکروفلم کې ښه نه کیږي او فقط دوني ښکاري، چي یوه ښکلې او ښه خوشخطه نسخه ده. علي اکبر په قام اورکزی دئ، دا پښتون قام په تیرا او د کورمې په سیمو کې له قدیمه اوسي او دا هغه وادي ده، چي تر اسلام دمخه د کوشانیانو د وروستنیو شهزادګانو او د کابلشاهانو په لاس کي وه، او اکثر د هندوستان تجارتي کاروانونه او د فاتحانو لښکر به له دغو سیمو تېرېدل.

کله چي امیر تېمور لنګ په (٨٠٠ هـ) د هندوستان د نیولو له پاره له دغو سیمو څخه تېرېدی د دې ځایو مشران شیخ احمد، خواجه اوغاني او ملك محمد او لشکرشاه اوغاني او شیخ عبدل وو[21]، او مؤرخان د دې ځای د ایریاب او شنوزان درې یادوي، چي هلته یوه اوغاني قبیله اورکزۍ اوسېده.

له دې تاریخي سنده ښکاري چي اورکزي اوغانان اوه اته سوه کاله دمخه له امو په دې ځای کي اوسېدل[22].

علي اکبر اورکزی له دې ځایه د (١١٥٦ هـ ق) په حدودو کي هندوستان ته تللی او په اکثرو ښارو ګرځېدلی دئ، د ده وظیفه غالباً عسکریت دئ، خو په پښتو او دري ژبو ښه شاعر او لیکوال هم و. د ده دېوان مردفي پښتو او پارسي برخي لري او یو

[20] متیا : له مات څخه صفت دئ، یعني ماتي قبلوونکی لکه بسیا، لګیا او نور.

[21] ظفرنامه، ٣٤/٢، ٣٧.

[22] روزنامۀ غزوات هندوستان ٥٨، د پتروګراد طبع ١٩١٥ ع، په دې کتاب کي دا نوم غلط اورکزنی(؟) چاپ سوی دئ.

سني مذهبه حنفي او نقشبندي طريقې پيرو باذوقه او اديب پښتون ښکاري. د خپل دېوان مقدمه يې په دري داسي ليکلې ده :

"سپاس و ستايش بی پايان و حمد و ثنای فراوان، مر متکلمی را سزاوارست، که زبان هر حامد به چندين لغات مختلفه گويا گردانيد، و هر قومی را معنی لغات تازی و دری[23]، و افغانی دانايند ... اين فقير احقر مولای سيد علی اکبر بن قاسم خان اورکزی قوم افغان ساکن تيرا خيبر، در حداثت سن و آوان طفلی که طبيعتش مانند کف مفلسان، از نقد فن شاعری عاری بوده ... به فرمايش سلطان شوق به تسويد غزل چند، بزبان افغانی که محاوره اسلام و مانوس الاستعمال بود، چند صفحه را سياه ساخت و برقعات متفرقه مرقوم شده ... بعد از ان در عنفوان شباب در تعليم و آموختن اين فن نزد اکثری از اولوالالباب سعی و فور بکار برده ... و چون اين گلدسته مشتمل بر ازهار الفاظ رنگين و متضمن اشعار معانی شيرين است به اتقای حضرت يزدان به "گلشن افغاني" موسوم گشت ...".

د گلشن افغان لومړۍ غزله

| | | |
|---|---|---|
| زړه مي بل هغه دلبر په اور د غم کا | | چي مي ورك په دغه اور د سترگو نم کا |
| هسي ما غوندي يې ډېر عالم خراب کړ | | کرشمه و ناز پېشه چي يې صنم کا |
| د عالم په باب ژوندی له مړو بتر يم | | که شوك شمار زما په عين د عالم کا |
| سرو مال تالاکوي پروا يې نه شي | | که جهان سره برهم په يوه دم کا |
| لکه دی کاندي د هر عاشق په باب کي | | د ازل حکم نه لوحه، نه قلم کا |
| په دغه ساعت يې زړه له ما نه يووړ | | اوس په خپله غلا انکار راوړي قسم کا |
| د سپين مخ په عکس هر شي ته به گوري | | د مضمون په نمايش يې جام د جم کا |

هر ســــــاعت به د يار ذکــــــر کا په ژبه
که "اکبر" د زړه د زخم شوك مرهم کا

اکبر د هند په ښارو گرځېدلی، او هلته هم د پښتنو سره محشور و، او له هيواده يې خپل سلامونه د وطن يارانو ته را استول. دی په يوه اوږده قصيده کي خپل ياران يادوي. چي څو بيته يې دا دي :

| | | |
|---|---|---|
| باده والوزه وطن ته په رفتار شه | | د هر چا له حاله ښېل ښېل خبردار شه |
| لکهنو له ښاره کوچ وکړه بهار ته | | په کتهيرو پښتانه باندي گذار شه |
| د سردار سرفراز خان پرسش لازم دئ | | چي څښتن يې هم ياور هم مددگار شه |
| د حاجي اخون په قبر دعا وکړه | | د يوسف په حال دانا او خبردار شه |

[24]

وروسته د پېښور د سيمي ځيني ياران يادوي او د ميا عمر څمکني دوه زامن داسي ستايي :

کشر ميان ته په دوه لاسه تعــــظيم وکه
محمدي صاحب ته هم په تعظيم پار شه
د اکـــــــبر سلام په هر چـــا باندي وايه
په دعا مي يادوئ چي برخـــوددار شه

[23] د دري د نامه استعمال دلته د پارسي پر ځای د غور وړ دئ.

[24] کوچ بهار د هند يوه سيمه ده، او دلته د کوچ په معنی کي يو راز ابهام موجود دئ.

اکبر چي د تیرا د غرو او ښو خوشنوا بلبل و، په هندوستان کي له ژوندونه په عذاب سوی او خپل وطن یې داسي یاداوه :

نور توبه مي له پنــــجابه هم له هــــــنده

په نصیب زما که خپل ملك و وطن شي

له دې لاندي بیته ښکاري چي په کابل کي هم څو عمر اوسېدلی دئ :

چي خاطر مي دي بندي په تور اوربل کي

ځـــکه نه مي شي اســــتوګه په کابل کي

اورکزی د پښتنو شاعرانو له کلامه سره آشنا دئ، ډېر شاعران یادوي او خوشحال ختك داسي ستایي :

نور د شعر مزه مه غــــــواړه له چـــا نه

پوهنده د هر کلام ښه ســـــخندان ولاړ

د خوشحال ختك ارمان به اکبر یوسي

چي د میني د اخلاص کان له جهان ولاړ

د اکبر په دري او پښتو اشعارو کي د ده د عمر ډېر وقایع ذکر سوي دي، دی په پښتو ژبه کي د متوسطي درجې شاعر ګڼل کیږي، او کله نامانوس الفاظ هم راوړي. اکبر په خپل دېوان کي شاه عبدالرحیم نقشبندي خپل روحاني پیر ستایي او بل خپل استاد شاه معظم[٢٥]، ښیي چي د هغه یوه موعظت نامه په دري نثر هم لیکي. په دې ډول اکبر اورکزی زموږ د ادبیاتو د تاریخ د دوو ژبو شاعر او لیکوال او باذوقه سړی دئ، چي د ده دغه مستانه بیت د ده د ذوق ښه نمایندګي کوي :

هر ساقي چي د طرب پیاله کـــه پورته

میخواران به واړه ودانګي دې لور ته

او دا غزل د خواجه محمد بنګښ د هغي غزلي جواب دئ، چي یو ښکلی بیت یې دا دئ :

ګوتي توري کړه په ما یې کړه راپوري

زه حیران یم ستا د سپینو ګوتو تور ته

د اورکزي دېوان قصیدې، غزلي، مثنویات، ترجیع بندونه او رباعیات لري. د شعر قالب او محتوی یې دواړه کومه خاصه ښېګڼه نه لري، په دوهمه درجه ناظمانو کي درېدلای سي. کله کله عشقي، اخلاقي، حماسي او صوفیانه مضامین د ده نظمونو ته تنوع وربخښي، خو قصیدې یې اکثره د واقعه نګارۍ ډول لري، او دا هغه یو راز بیان دئ چي خوشحال خان او د ده زامن هم کله کله د ژوندانه د واقعاتو په څرګندونه کي کار ځني اخلي، بې له دې چي خپل نظم د شعر په ښېګڼو او هنري ګېڼو ښکلی کي، مثلاً په یوه قصیده کي د خپلي زیږېدني وخت داسي ښیي، چي فقط یو نظم دئ نه شعر :

زه چي راغلم په دنیا کي

له عـــــدمه په اظـــــــهر

پادشاهي د نادرشاه وه

په عـــالم کي لـــکه لمر

په دې ډول د ده د تولد نېټه د (۱۱۵۰ هـ ق) حدود ټاکل کېدای سي، چي د تېمورشاه تر زمانې پوري (۱۱۹۰ هـ ق) هم ژوندی و.

---

[٢٥] پیر معظم شاه د پیر محمد فاضل زوی د پېښور د پیر سباك اوسېدونکی و، چي په هند کي د حافظ رحمت خان برېڅ په خدمت کي داخل و، او د ده په خواهښت یې د خواجو ملیزي د پښتو تواریخ افغاغنه د تواریخ حافظ رحمت خاني په نامه په (۱۱۸۱ هـ) کي لنډ کړ. تاریخ افاغنه په (۱۰۳٦ هـ ق) په پښتو لیکل سوی و، دا کتاب د خښي او غوري او یوسفزي قبایلو تاریخ دئ، چي اووه مقامه لري، د پیر روښان او د ده د مریدانو حال هم لري، تاریخ حافظ رحمت خاني په (۱۹۷۱ ع) کال او خلاصة الانساب د حافظ رحمت خان تألیف په (۱۹۷۳ ع) کال د پېښور اکاډمۍ چاپ کړي دي.

سن زر سل نوي وایه شه
چي له کوره شـــــوم روان

په دغه قصیده کي بې له کومه تشبیبه رډبډ پخپل حال داسي شروع کوي :

| | | |
|---|---|---|
| نن به وایم یو یو حال درته د ځان | | ته یې واوره په نامه د پاك سبحان |
| نوم د خدای او د رسول مي درته واخیست | | غوږ پرې کښېږده که بنده یې د رحمان |
| دا خبره وه مشهوره په عالم کي | | هر څه وکړې بیا ربېې هغه شان |

دلته وزن هم سپکېږي، او ناظم یې په بل ډول په هغه قافیه پسې ځي :

| | | |
|---|---|---|
| د نېکۍ عوض نېکي ده | | بدي وي د بدخواهان |
| د ښه خدای څه ښه قدرت دئ | | چي له چا نه شي بیان |
| ښه کارونه په قدرت کا | | دی پرې ښه رسي یکسان |
| ځای د گفت و شنود نشته | | په رضا د پاك یزدان |
| که له خاورو گل پیدا کا | | یا له گل پیدا خاران |
| مدعا غرض خپل وایم | | غوږ پرې ونیسئ دوستان |
| د ښه خدای له شفقته | | هم له فضله د دیان؟ |
| په کشمیر کي وم څو کاله | | و حاکم نورالدین خان |
| په قسمت مي نصیب (و) شو | | ښه دیدن د بزرگان |
| په زیارت د پیر مرشد شي | | خدای عطا کړ دین ایمان |

داسي ښکاري چي علي اکبر د اورکزو مشر و، او په لښکري لاموکي به یې د عسکري یا ملکي حکمران په څېر برخه لرله :

| | | |
|---|---|---|
| له وطنه را روان شوم | | د لښکرو په سامان |
| لك مي کړ د خدای په فضل | | په کامراج کي خپل نښان |
| د سلطان اساني وشو | | په دښنه شولم ډېر گران |

د تېمورشاه له درباره حاجي کریمداد خان (د کشمیر خان د احمدشاه بابا د دربار د عرض بېگي لمسی د کهندل خان زوی) د کشمیر حکمران مقرر سو او علي اکبر ورسره ملگری و، خو چي کریمداد خان ولاړ، نو دی هم خپل وطن تیراه ته راغی :

| بل د وروستو مي بډغ راغی<br>شو سردار کشمير يې واخيست<br>امير بيا شو په ځای پاتو<br>زما هم دا ملك تر فهم<br>ځني ولاړمه وطن ته | | چي حاجي کريم داد خان<br>شوم امير ته لوی آسمان<br>بيارته لاړ کريم داد خان<br>نهايت شو ډېر ويران<br>په فراق، غوغا، ګريان |
|---|---|---|

علي اکبر دوه کاله په کور کي و، څو بيا تېمورشاه وغوښت،
او د اورکزو د لښکرو سره يې په (۱۱۹۰ هـ ق) کال د کشمير خوا ته واستاوه :

| آخر بيا پس له مدته<br>په طلب يې کړ ځان ستړی<br>زما هم پرې خدای وار جوړ کړ<br>د لښکر سامان مي ساز کړ | | سلطان شو راپسي پښېمان<br>هم سړی يې خپل ستومان<br>دا مي غوښته له سبحان<br>ښايسته، ښکلي سپايان |
|---|---|---|

چي کامراج ته ورسېدی، نو يې جنګونه شروع سوه، د يوه جنګ مناظر داسي ښيي :

| يوه ورځ له همه راغلو<br>جنګ تر ميان شولو صاحبه !<br>بيا په توره شوه تمامه<br>رفيقان راځخه وتښو<br>بې له خدايه څوك مل نه و<br>که ميدان يارانو بای کړ | | په موږ باندي دښمنان<br>د توپکو د سنان<br>کل لښکر راته حيران<br>موږ يې پرېښوو په ځان<br>يا مدد و بزرګان<br>خو موږ بيا لك کړ نښان |
|---|---|---|

په دې ډول د اورکزي قصيده په حقيقت کي د واقعه نګارۍ يوه نظم کړې او بې خونده منظومه ده، چي هيڅ شاعرانه هنر کاري او د تخيل او لطافت او عاطفې رنګينيو څخه برخه نه لري.
اوس نو تاسي پخپله ووايāست، چي دی شاعر بولئ او که تش يو ناظم؟
بايد دا هم وويل سي، چي د ده فارسي او پښتو غزلي دوني بې خونده نه دي، لکه قصايد. موږ د ده په پښتو غزلو کي د ځينو غزلو نمونې دمخه ولوستلې، او د پارسي غزلو دغه نمونه يې هم ولولئ :

به مشتاقان رویت قصه هر جا میتوان گفتن
حدیث حسن یوسف با زلیخا میتوان گفتن
چو احوال شهیدان از طبیبان کس نمی پرسد
زبیمار نگاهت با مسیحا میتوان گفتن
فتاده نیم بسمل بر سره همچو من صدها
جفای ابرویش قضا را میتوان گفتن
چمن گل گل شگفته از نسیم صبح نوروزی
زحال غنچه دلها کسی را میتوان گفتن
خراب بادهٔ لعل تو شد امشب اگر بخشی
که حال "اکبر" بد مست فردا میتوان گفتن

# د لومړۍ دورې د ادبي جريان لنډيز

د غوريانو زمانه د پښتو ادب يوه ښه دوره بلله کيږي او علاوه پر هغو شاعرانو، چې دمخه ذکر سول، دغه لاندي شاعران هم په لنډ ډول ذکر کوو :

١ - قطب الدين بختيار :

دا سړی د احمد زوی او د موسی لمسی په قوم پښتون بختياری و، چې په بختيارکاکي مشهور دئ، په ٦٣٤ هـ په ډهلي کي وفات سوی دئ او قبر يې تر اوسه هم مشهور دئ. د سليمان ماکو په تذکرة الاولياء کي د ده يوه عشقي سندره نقل سوېده او يو فارسي دېوان هم لري.

٢ - شيخ متي (٦٢٣ – ٦٨٨ هـ) :

شيخ متي د عباس زوی او د خليل د قوم څخه و، د ده کورنۍ د ترنک په وادي کي اوسېدله او قبر يې تر اوسه د کلات پر غونډي د کلات بابا په نامه مشهور دئ. شيخ متي يو لوی عرفاني شخصيت و، د پښتنو مؤرخين يې د اولياوو په جمله کي شمېري. د ده کورنۍ هم متيزي بلل کيږي، چې ډېر شاعران او مؤلفان پکښې تېر سويدي او په پېښور او کندهار کي لوړ علمي شهرت لري. د پښتو مؤرخ شيخ کټه د لرغوني پښتانه مؤلف هم د ده له لمسيانو څخه دئ، (د ٧٥٠ هـ حدود).

بل شيخ قاسم د تذکرة الاولياء مؤلف په ٩٥٦ هـ زوکړی دئ او د ده زوی شيخ امام الدين د تاريخ افغاني مؤلف په ١٠٢٠ هـ پيدا سوی دئ. د شيخ متي له اشعارو څخه فقط يو شعر د پټې خزانې مؤلف رانقلوي او وايي چې شيخ متي يو دېوان درلود، چې نوم يې و : (د خدای مينه)، دا شعر په پښتو ادب کي يو شاهکار دئ او شيخ متي د کايناتو ښکلا او د جمال تصوير په ښه ډول په دې ښعر کي کښلی دئ او دا هغه خبره ده، چې صوفيان تل په خپلو اشعارو او آثارو کي د جمال بيان کوي. د شيخ متي دغه ښکلی شعر په لاندي ډول دئ :

| | | |
|---|---|---|
| پر لويو غرو هم په دښتو کي<br>په غاړه برغ او په شپېلو کي | | په لوی سهار په نيمو شپو کي<br>يا د ويرژلو په شپېلو کي |

ټول ستا د ياد نارې سورې دي
دا ستا د ميني ننداري دي

| | | |
|---|---|---|
| جُنډۍ زرغون که په بېديا دئ<br>ترنك چي خړ دئ په ژړا دئ | | د بر بڼ خوا ته په خندا دئ<br>دا ټول اغېز د ميني ستا دئ |

ټوله ښکلل دي ستا له لاسه
اې د پاسوالو پاسه پاسه !

| یا د سپوږمیه تندی ورین دئ<br>لکه هنداره مخ د سین دئ | | که لمر روښان مخ ئې سپین دئ<br>که غر دئ ښکلی پرتمین دئ |
| --- | --- | --- |

ستا د ښکلا دا پلوشه ده
دا ئې یو سپکه ننداره ده !

| د ژوند ورمې پکښې چلیږي<br>سترګې لیدو ته یې هېښیږي | | دلته لوی غرونه زرغونیږي<br>بوراوي شاوخوا کړیږي |
| --- | --- | --- |

لویه خاونده ! ټوله ته یې
تل د نړۍ په ښکلېده یې

| ښکاره ئې لور په لور کمال دئ<br>ستا د قدرت کمکی مثال دئ | | خاونده ! ښکلی ستا جمال دئ<br>که ورځ که شپه که پېړۍ کال دئ |
| --- | --- | --- |

ستا د لورونو یو رڼا ده!
دلته چې جوړه تماشا ده!

| سوی د عشق په سوځند اور دئ<br>بېله دې هیڅ دئ ورك ئې پلور دئ | | زړه مې دا ستا د میني کور دئ<br>رپ ئې و تا ته ستا پر لور دئ |
| --- | --- | --- |

ستا د جمال په لیدو ښاد دئ
که نه وي، دغه نور برباد دئ

| په غروکي ستا د عشق شپېلکی دئ<br>که غټ که وړ، که پنځ نری دئ | | د دې نړۍ په عشق سمی دئ<br>ستا د جمال ځری هر شی دئ |
|---|---|---|

چي پر دنیا مي سترګي پرې سوې
ستا د جمال په ننداري سوې

| نه هسك نه مځکه وه تورتم و<br>نه دا ابلیس نه ئې آدم و | | تیاره خپره و، ټول عدم و<br>ستا د جمال سوچه پرتم و |
|---|---|---|

چي سو ښکاره ښکلې دنیا سوه
د پنځ پر لوري ئې رڼا سوه

| زه چي څرګند پر دې دنیا سوم<br>ستا پر جمال باندي شیدا سوم | | د ښکلي مخ په تماشا سوم<br>له خپلي ستې راجلا سوم |
|---|---|---|

په ژړا ژاړم چي بېلتون دئ
یمه پردېسی بل مي تون دئ

| سورې ئې اورى غاړي غاړي<br>خپل تون اوكور وكلى غواړي | | وګړيو ولي "متي" ژاړي؟<br>څه غواړي، څه وايي، څه باړي |
|---|---|---|

چونې چي ببل سي نيمه خوا سي
تل ئې د بڼ په لور ژړا سي !

# پښتو ادب ته يوه لنډه كتنه
## تر ۱۰۰۰ هـ پوري

د شيخ متي تر زمانې را وروسته د پښتو ډېر شاعران لرو، چي د دوى اشعار حماسي يا عشقي يا اخلاقي يا تصوفي دي. په دې اشعاروكي كله ملي اوزان اوكله هم مثنوي يا قصيده يا رباعي يا غزل سته، مګر دغه اشعار د خپل ادبي ارزښت له رويه د غوري دورې له پاته سوو آثارو سره مقابله نه سي كولاى، كه څه هم د غوري دورې پاته آثار فقط يو دوې قصيدې دي، مګر د دغو قصيدو ادبي ا و هنري ارزښت دومره ډېر دئ، چي په وروستنۍ دوره كي تر خوشحال خان پوري څوك د هغو مقابله نه سي كولاى. په دغو شاعرانوكي بابا هوتك د بارو زوى او د تولر لمسى دئ. د ده ژوند له (٦٦١ - ٧٤٠ هـ) پوري و. دغسي هم شيخ ملكيار د هوتك بابا زوى د (٧٤٩ هـ) په حدودوكي ژوندى و او اكبر زمينداورى د (٧٨٠هـ) په حدودوكي په زميندادوركي اوسېدى. دغسي هم سلطان بهلول لودي، چي د هندوستان لوى پښتون پاچا و (جلوس ٨٥٥ - وفات ٨٩٤ هـ)، د پښتو يو ښه شاعر و، چي دا يوه رباعي د ده دكلام نمونه پاته ده :

ملك به زرغون كړم په وركړه راسه
ګـــــــوره اوريځي د داد له پاســـــه
خول مي د عــــــدل په درو روڼ دئ
جهان به زېب مـــــــومي زما له لاسه

خليل خان نيازى هم د (۸۹۰ هـ) په حدودوكي د دغه پاچا د دربار پښتون شاعر و.
دغسي هم زرغون خان نورزى د (۸۹۰ هـ) په شاوخواكي د پښتو دېوان خاوند شاعر دئ، چي د زميندادور په نوزادكي اوسېدى، او له ده څخه يوه ساقي نامه په مثنوي كي پاته ده.
د دې دورې درې پښتنې شاعراني هم د يادولو وړ دي.
اول زرغونه كاكړه، بله شاعره رابعه د (۹۲۰ هـ) په حدودوكي په كندهاركي اوسېدله. بله مېرمن نېك بخته د (٩٦٠ هـ) په حدودوكي د شيخ الله داد لور وه، چي د پېښور په اشنغركلي كي يې يوكتاب د ارشاد الفقراء په نامه ليكلى و. دوست محمد كاكړ د ږوب اوسېدونكى د (۹۲۰ هـ په حدودوكي) د تذكرهٔ غرغښت ناظم او شيخ عيسى مشوانى د (۹۰۰ هـ په حدودوكي) په هندكي اوسېدى، شيخ بستان بړيڅ د محمداكرم زوى، چي دى هم د (٩٦٠ هـ په حدودوكي) ژوندى و. بل

شاعر علي سرور لودي د (۹٦۰ هـ په حدودو کي) د ملتان د کهرور په قصبه کي اوسېدی. شیخ محمدصالح الکوزی د (۱۰۰۰ هـ په حدودو کي) د کندهار په جلدك کي ژوندی و. پیر روښان د پښتنو یو مجاهد او آزادي غوښتونکی ادیب مشر و، چي په (۹٤۲ هـ) زیږېدلی او ټول عمر یې د آزادۍ په جنګ او ادبي او تبلیغي کارو کي تېر کړی او د (۹۸۵ هـ په حدودو کي) وژل سوی دئ. د بایزید روښان په ژوند کي دوې نکتې د یاد وړ دي :

اول دا چي داسي حرکت ئې په پښتونخوا کي د هندوستان د مغلو د سیاسي اقتدار په مقابل کي منځ ته راوست، چي هدف ئې د پښتنو د یوه آزاد حکومت تاسیس و.

دوهم : پیر روښان د خپلو تبلیغي مقصدونو له پاره پښتنو ته په پښتو ژبه خیرالبیان کتاب لیکلی دئ، چي د پښتو ژبي قدیم لیکلی کتاب دئ، چي اوس یې یوه نسخه سته، د پیر روښان دغه سیاسي او ادبي مجاهده د پښتنو په تاریخ کي ډېر اهمیت لري، مګر د ده د نوشتو ادبي ارزښت ډېر لوړ نه دئ. ځکه چي ده په خیرالبیان کي د نثر یو داسي ډول غوره کړی دئ، چي هغه ته موږ نه روان او ساده نثر ویلای سو او نه یو خوږ او تکړه نظم. د پیر روښان نثر یو مصنوعي او د تکلفه ډك نثر دئ، چي د پښتو د پخواني نثر سره ډېر تفاوت لري، مثلاً په (٦۱۲ هـ) چي سلېمان ماکو کوم نثر په تذکرة الاولیاء کي لیکلی و، هغه نسبتاً ساده او روان او سپېڅلی و. مګر پیر روښان د جملو په اخر کي په مصنوعي ډول سجع رعایت کوي، چي هغه د پښتو له اصلي بیانه سره اختلاف لري او دغه نثر و، چي وروسته اخون درویزه او د ده کورنۍ او نورو لیکوالو تر ډېره وخته پوري پیروي کاوه، څو چي پس له (۱۰۰۰ هـ) څخه خوشحال خان ختك پیدا سو او ده هم لکه پیر روښان په ژوندکه دوه واره په مبارزه شروع وکړه :

اول د پښتنو د آزادۍ د ساتني له پاره د خوشحال خان مجاهده د هندوستان د مغلو سره روانه وه او دې توریالي ادیب د افغان په ننګ توره تړلې وه :

د افــغان په ننـــــګ مي وتړلـــه تـــوره
ننګیالی د زمانې خوشحال ختك یم

دوهم : د خوشحال خان په نظر کي د پښتنو د سیاسي اقتدار او آزادۍ د ساتني سره سره د پښتو ژبي ساتنه او روزنه هم یو مهم مقصد و، نو ځکه ده له توري سره قلم ملګری کی او د پښتو د نثر او نظم پالني ته یې ملا وتړله. د نظم خو یې ډېر ښکلی او وسیع او د ارزښت خاوند کړ، مګر په نثر کي د خوشحال خان ابتکار او هنر دا و، چي بیرته یې د نثر لیکلو سبك د پیر روښان له مصنوعي او د تکلفه ډك طرز څخه سادګۍ او روانۍ ته راوګرزاوه او د خوشحال خان دغه ادبي ابتکار و، چي تر اوسه پوري هم په نثر او نظم کي تعقیب کېږي. په دې دوره کي د پښتو ادب درې لویې کورنۍ تېري سوي دي، چي هره کورنۍ د پښتو ادب په روزنه کي لاس لري. خو یوه د خوشحال خان کورنۍ داسي ده، چي د هغوی ادبي تخلیقات د هنر له پلوه ډېر ارزښتونه لري.

اول د پیر روښان کورنۍ، چي پخپله پیر روښان او انصاري او دولت او ارزاني ئې ارکان دي.

دوهمه کورنۍ د اخون درویزه ننګرهاري ده، چي کریم داد او نور د دې کورنۍ رکنونه دي.

دریمه د خوشحال خان ختك کورنۍ ده، چي د ده زامن لکه عبدالقادر خان او اشرف خان هجري او صدرخان او سکندر او لمسی ئې کاظم خان شیدا او افضل خان د دې کورنۍ تکړه ادیبان دي. د پښتو ادبي سیر په نثر او نظم کي تر خوشحال خان را وروسته روان پاته سو او موږ وینو، چي زبردست شاعران او لیکوال په ټوله پښتونخوا کي پیدا سوي دي، لکه :

رحمان بابا او حمید مومند، علي خان، عبدالرحیم هوتك، پیرمحمد کاکړ او نور ډېر شاعران، چي عدد ئې تر سوو پوري رسېږي. دغه دوره چي تر ۱۲۵۰ هـ پوري رارسېږي دغه لاندي خاصیتونه لري :

اول : په پښتو شاعري کي د شعر ظاهري ډول هم ملي او پښتني وزنونه لري او هم د فارسي او عربي د عروضو اثر پر سوی دئ، مثلاً : ملي لنډۍ او کسرونه او بدلي او چاربیتي او نور آثار هم سته، خو د فارسي غوندي قصیده، غزل، مثنوي، رباعي او نور ادبي فنون هم پښتو ته راغلي دي.

دوهم : د فکر او موضوع له پلوه هم پښتو ادب پراخ سوی دئ، یعني هر ډول ادبي، تاریخي، دیني، فلسفي، تصوفي، اخلاقي، عشقي او داستاني ادبیات پکښې موجود سوي دي.

دريم : د پښتو شاعرۍ خپل پښتني او حماسي رنګ هم ساتلی دئ، يعني په پښتو ادب کي د حماست او پښتونوالي او آزادۍ غوښتلو پلوشې او تجليات ډېر برېښي او دا هغه محيطي خاصيت دئ، چي د پښتو شعر ته يې ډېر خوند ورکړی دئ.
څلورم : خوشحال خان په خپله دستار نامه او نورو منثورو ليکنو کي د پښتو نثر و محاورې او د پښتنو عمومي ادا ته را نژدې کی. د ده لمسو همدغسي کوښښ وکی، ګوهر خان خپل کتاب (قلب السير) او افضل خان خپل (تاريخ مرصع) پر دغه سبك وليکل، چي وروسته نو پټه خزانه او نور ډېر کتابونه په پښتو نثر کي ميدان ته راغلل او دغه حرکت و، چي په ټوله پښتونخوا او افغانستان کي تر (١٢٦٠ هـ) پوري راورسېدی او په دغو کلو کي د احمدشاه بابا د کورنۍ پاچاهي ختمه سوه او امير دوست محمد خان د محمدزو د کورنۍ څخه پاچا سو. دغه وخت د پښتنو سلطنت ته چي له پنجاب او کشميره تر هرات پوري خپور و، يو نوی خطر د هندوستان له خوا متوجه سو، چي هغه د انګرېز استعمار و. کله چي په (١٨٣٩ م) د انګرېزانو ايندس ارمي يعني د اباسين لښکر د بولان څخه پر کندهار حمله وکړه، نو د افغان او انګرېزانو لومړۍ جګړه شورو سوه.

# د پښتو خاصيتونه
# په وروستنۍ دوره کي

له (١٢٥٠ هـ) را پدېخوا په يوه پېړۍ کي د پښتو ادب لوی تحول وموند او د دې تحول اصلي سببونه، چي د پښتو ادب ته يې نوي جوله او قيافه ورکړېده په لاندي ډول ښوول کيږي :
(١) په دې وخت کي د اروپا د مدنيت صنعتي دوره شورو سوې وه او پر هندوستان باندي د انګرېزانو استعمار بشپړ سوی و او هندوستان ته د نوي مدنيت او صنعت اثرونه رارسېدلي وو، د انګرېزانو حکومت په هندوستان کي د ادارې او انضباط او امنيت او تنظيم نوي دودونه او اصول رواج کړي وو او په ټول هند کې د ټګ راټګ لاري او د اورګاډي خطونه جوړ کړي وو، نوی فکر او د مدنيت نوي دودونه او نوی معارف او مکتبونه په ټول هند کي موجود سوي وو. جرايد او مطبوعات هم په انګرېزي ژبه او هم د هند په ژبو کي خپرېدل.
چاپخانې او د کتابونو د خپرولو وسايل هم ډېر سوي وو، انګرېزان د دغسي يو قوي مدني تشکيل سره د اباسين غاړو ته راورسېدل، دوی د پښتونخوا يو مهم د فرهنګ مرکز يعني پېښور هم ونيو او په (١٨٣٩ م) يې پر افغانستان هم حمله وکړه، دلته نو د دغه اجتماعي او سياسي کيفيت اثرونه د پښتو پر ژبه او ادب او ثقافت باندي لازمي وو. نو ځکه د پښتو نظم او نثر دواړه تر دغو لاندي راغله. په نثر کي رواني او د محاورې سره برابره ليکنه چي خوشحال خان يې اساس ايښی و، ښه رواج سوه او ځيني پښتو کتابونه يا اخبارونه هم په دغه ډول منځ ته راغله. نظم هم په هغه قديم قالب کي نشو و نما وکړه او ځيني نوي سبکونه هم رواج سول.
(٢) د اروپا د مدنيت او صنعتي غورځنګ اثرونه پر پښتونخوا باندي د اېران له خوا او د شمالي روس له خوا هم راغلل، تجارتي ټګ راټګ او سياسي روابط د روس او اېران سره موجود سول او د شمالي له خوا هم د روس د اورګاډو خطونه تر بخارا او خيوا پوري راورسېدل، دلته نو د يوې خوا له روسه او د غربي خوا څخه له اېرانه داسي قوي اثرونه پښتونخوا ته راورسېدل، چي د پښتنو فکر او ادب يې حتماً تر قوي اثر لاندي ونيوه، دلته نو اوس موږ وينو، چي په پښتو ادب کي نوی فکر او د نوي مدنيت اثرونه پيدا کيږي. خلك د وطن او آزادۍ او د نوي ژوندون په فکر کي لوېږي او کله چي د (١٩١٤ په حدودو کي) لومړی عمومي جنګ شورو سو نو دلته پر شرقي ټولو ملتو باندي، لکه : هندوستان، افغانستان، اېران، دولت عثماني او عربو باندي د اروپا د استعمارچيانو يا مستقيم سياسي تسلط و يا دا چي دغه مملکتونه تر اقتصادي او کلتوري

اثرونو لاندي راغلي وو.
نو په په ټولو مملکتوکي يو د داخلي آزادۍ فکر پيدا سو او لومړی پلا سيد جمال الدين افغان له کنړه وپاځېد، ده په هندوستان، ايران، مصر او ترکيه کي داسي يو فکر پيدا کړ، چي دغه بيده ملتونه يې راويښ کړل او په دوی کي يې د مبارزې دوه قسمه حرکتونه پيدا کړل :
يو دا چي بيده ملتونه بايد د پردو د استعماره څخه ځانونه آزاد کړي.
دوهم دا چي دغه مظلوم ملتونه له داخلي استبداده څخه ځانونه وژغوري او داسي حکومتونه جوړ کړي، چي هغه حکومتونه د خلکو د ديموکراسي حقوقو حامي وي او دغه مظلوم خلك وکړای سي، چي خپل ملي قوتونه د ځان د سعادت له پاره په کار واچوي.
د سيد جمال الدين دغه تبليغ و، چي په هند کي د آزادۍ حرکت پيدا سو او هغه پښتانه چي د افغانستان په شرقي خواکي د انګرېزانو د استعمار تر اثر لاندي سوي وو په هغوکي د آزادۍ احساس وخوځېد او د پښتو ادب ته ئې د آزادي خواهۍ او وطن دوستۍ قوي جذبه راوړه او دغه اثر و، چي د پښتو ادب په نثر او نظم کي د فکر له پلوه نوی تحول راغی.
(۳) په دې وروستنۍ دوره کي د پښتو په نظم او نثر دواړو کي د ترجمې حرکت هم پيدا سو، ځيني کتابونه له اردو او انګرېزي څخه او ځيني هم له عربي او فارسي څخه په پښتو ترجمه سول، مثلاً : نعمان الدين احمد کاکاخېل د ابن بطوطه سفرنامه او قاضي عبدالقادر پېښوري عسکري نومونه او اصطلاحات له انګرېزي څخه په پښتو ترجمه کړل، غلام محمد پوپلزی چي د چارسدې اوسېدونکی و د مولانا حالي اردو مد و جر اسلام ئې په پښتو منظوم کړ او منشي احمدجان د افغانستان تاريخ له انګرېزي څخه په پښتو راواړاوه، د ترجمې دغه حرکت و، چي د ځانه سره ئې نوي فکرونه او د نوي مدني ژوند اساسونه هم راوړل او پښتو ادب ته يې يو نوی ادبي تحول وروباخښه، په دې ترجمه کي شاعران او ليکوالان دواړه مجبور وو، چي په داسي ژبه خبري وکړي چي لوستونکي يې په مطلب ښه پوه سي. نو له دې جهته هم په نظم هم په نثر کي رواني او شګفتګي موجوده سوه، خلك خپل قديم تاريخ ته متوجه سول او د اروپا د مدنيت او د ژوند نوي فلسفي فکرونه هم په نظم او نثر کي وارد سول او هغه فکري انقلاب چي د ۱۹ قرن له ملي او قومي نهضتونو سره راغلی و د پښتو ادب ته يې هم نوې ښکلا، نوې مفکوره او نوي تغيرونه وروبخښل.
(٤) په دغه دوره کي ځيني شاعران او ليکوال داسي هم وو، چي دوی داستاني ادب ته توجه وکړه، ځيني ليکوالو هغه قصې او داستانونه نظم کړل چي په خلکو کي مشهور وو. د دې ډلي مشهور استاذ ملا نعمت الله د نوښار اوسېدونکی و، چي دغه کتابونه د ده چاپ سوي دي :
(۱) د ليلی او مجنون کيسه، (۲) د فتح خان کيسه، (۳) د موسی او ګل مکۍ کيسه، (۴) د حضرت علي جنګنامه، (۵) شاهنامه، (٦) الف ليلی، (۷) د حاتم طائي کيسه.
د دې ډلي بل شاعر ملا احمد جان د پېښور اوسېدونکی و، چي د ورقه ګلشا کيسه، د ممتاز کيسه، د بهرام او ګل اندامي کيسه، د امير حمزه داستان او د يوسف او زلېخا کيسه يې ليکلي دي. بل د دې ډلي شاعر احمد په قوم اخوندخېل دئ، چي د جمجمې کيسه او قصص الانبياء د ده اثرونه دي، د دې ډلي ادبي اثرونه د تاريخ او مفکورې له پلوه کوم ارزښت نه لري خو ادبي او شعري ارزښتونه ئې د يادولو وړ دي.
(٥)په دې دوره کي ځيني کتابونه د تعليم او ښووني په مقصد هم ليکل سوي دي، په افغانستان کي د پښتو د زده کولو له پاره ځيني داسي کتابونه وليکل سول او د پښتو ژبې قواعد او ګرامر ته هم توجه وسوه. د پښتو لومړني لوست کتابونه د کابل په مدرسه حبيبيه کي مولوي صالح محمد کندهاري وليکل او بيا په پېښور کي هم دغسي نور کتابونه چاپ سول، چي دا حرکت هم د پښتو د ژوندون له پاره ډېر مفيد و.
کوم کتابونه چي د ديني تعليم له پاره په پښتو ليکل سوي دي هغه هم په دغه نوعه ادب کښي داخل دي، لکه : د ملا عبدالباقي افغان تبيين الواجبات يا د دوست محمد خټك تفسير بدر منير او بحرالعلوم، يا د فيض محمد لوګري روضة المجاهدين يا د کامې د مرادعلي صاحب زاده تفسير يسير.
(٦) په دې دوره کي د شعر او ادب يوه بله عامي او وګړني ډله هم سته، چي د پښتو په کلو او بانډو کي ناخوانه امي شاعران

موجود دي او دوی د خلکو په عامه ژبه شعر وايي او کله کله د ملي تاريخ بعضي مهم وقايع او د ملي پهلوانانو کردارونه په خپل شعر کي بيانوي، دا ډله يقيناً د عامو خلکو د فکر او ژبي او اخلاقو نمايندګي کوي. دغه نوع ادب د پښتو خاص شعري وزنونه او ادبي بحرونه هم رانښيي او موږ په پښتو ژبه کي په سوو داسي ملي او وګړني شاعران لرو، لکه :
کمال، نوروز، ملا ميران او نور. د دې ډلي شاعري بې تکلفه او ارتجالي او ساده ده. دوی د ژوندانه مختلف وقايع په ساده ژبه د عوامو د فهم سره برابر تصوير کوي او د ملي ژوند پټ اړخونه لوڅوي، مثلاً کله چي په اول وار انګرېزانو کابل ونيو، دلته نو دغسي يوه وګړني شاعر د خلکو د زړه درد په يوه بدله کي تصوير کړ، او ويې ويل :

| بې شريکه بې زواله! | | خالقه لايزاله! |
| --- | --- | --- |
| فرنګ ورك کړې له کابله ! | | ايمان مي خطا مه کړې |

زاري مي نشته بله
د افغانستان د استقلال په جنګ کي يو بل وګړنی شاعر د پښتنو مېړمنو اشتراك په جهاد کي داسي بيانوي :
چا ئې پلو ليدلی نه و
اوس د جمرود پر غاړه ځي سرتور سرونه
په کابل جنګ دئ

# د پښتو ادب ارزښتونه
## په دغه دوره کي

پښتو ادب د پخوانۍ او متوسطي دورې له ډېرو ارزښتونو سره دې اخيرنۍ دورې ته راورسېدی. د ژبي بياني او بديعي خاصيتونه او د مفکورې ذخائر چي پښتو ادب له قديمي او متوسطي دورې سره راوړي وو هغه ټول د شاعرانو او ليکوالو مخي ته پراته وو. دلته نو اوس د دوی وظيفه دا وه، چي له هغه ټولو قديمو ذخيرو څخه د نوي ادب په تخليق کي کار واخلي او نوي مفکورې او د نوي ژوند لوازم او ضروريات پښتو ادب ته را وارد کړي. يقيناً چي نوی عصر او د ۱۹ قرن سياسي او اقتصادي او فکري تحولاتو پر پښتون قوم باندي ژور اثرونه وکړل او دلته نو موږ ګورو، چي په پښتو ادب کي ځيني نوي ارزښتونه موجود سول. د پښتو غزل د فارسي ادب په تقليد په عشقي موهومو خيالاتو کي تباه سوې وه. شاعر په خپل ذهن کي د عشق يوه موهومه دنيا فرضوله او د هغې په بيان کي په ډول ډول خيال بافي کوله، د غزل ډېره حصه د معشوق د وروځو او سترګو او سراپا توصيفونه وو او په دې کي به داسي مبالغه امېزه شعرونه ويل کېده، چي تل به درواغجن شاعر د سترګو په ګوليو ويشتلی يا به د ښو په غشي ژوبل سوی و. دی به د هجران په اور کي لولپه و، مګر هيڅکله دا ونه ليده سوه، چي دی دي حقيقتاً د ژوند له يوه جزوي نعمت څخه محروم سوی وي. ډېر داسي شاعران وو چي په خپل عمر ئې د شرابو څکه نه وه کړې مګر د شعر په تخيلي دنيا کي به تل په باده پيمائي بوخت و.
قصيدې هم دغسي يو اغراقي او مبالغه وي د مداحۍ رنګ درلود او شاعر به کوښښ کاوه، چي په څه ډول او کومو الفاظو

کولای سي، چي خپل ممدوح تش په الفاظو وغولوي او جایزه ځني واخلي. دې ادبي جریان خو پر پښتو ادب هم ژور اثر درلود او د لفاظۍ او سخن ورۍ او خیالبافۍ له پاره ئې ډېر مواد پیدا کړل مګر مفکوره او معنوي ښېګڼې ډېري پکښې لږ وې، د پښتو شعر د موهوماتو او ایډیالیزم په تیاروکي لاس او پښې وهلې اما د الفاظو ذخیره او د خبرو قالبونه او د ظاهري وینا ښېګڼې یې درلودې. د اوسنۍ زمانې شاعر له دغسي یوه په ظاهر ښکلي او په باطن تش پس منظره سره مخامخ و او د زمانې انقلابي جریان هم دی نه پرېښود، چي په شلم قرن کي د وروځو په لېندۍ کي د بانو غشی وولي یا د ملا په نري تار غټ غټ غرونه وځړوي. نو پښتو شاعري په دې دوره کي د شاعرۍ د قدیمو اسلوبونو پیروي لږکړه او د خیال بافۍ له دنیا څخه د حقیقت لدني او ریالیزم میدان ته راغله، د فراق او مهجورۍ د درد او نارو پر ځای قومي درد او د ټولني اجتماعي ضرورتونه ودرېدل، هغه موهوم معشوق چي رسا قد به یې تر سبر هم جګ و او ناز و خرام به یې د شاعر زړه ورسولاوه اوس د هغه پر ځای د وطن او مملکت او مسلك نوی معشوق پیدا سو او دغه حرکت په پښتو ادب کي ځیني نوي ارزښتونه راوستل، چي هغه د دې عصر له سیاسي جریان او تحولاتو سره برابر وو او دغه کلیه په ښه ډول ثابته سوه، چي انسان د خپلو ټولو مادي او معنوي متعلقاتو سره د زمانې د تحول په لاس کي دئ او حتماً بې له زاړه حال څخه نوي حال ته را اړوي، که موږ د پښتو ادب په دغه زمانه کي له اردو او فارسي سره مقایسه کړو نو دا نکته راڅرګندېږي، چي د شعر پر ډګر د پښتو ادب بالکل نوی رنګ موندلی دئ، ځکه چي د اردو او فارسي غزل تر اوسه لا هم د مفکورې او موضوع له پلوه په هغه قدیم اسلوب باندي د خیالیت په دنیا کي سیرکوي او تر اوسه لا هم غزل ګوی شاعران پر هغه زړو لارو باندي روان دي، مګر د پښتو شعر معنوي ارزښت بالکل اوښتی دئ او د زاړه سبك او فکر پیروي ډېره لږه لیدل کېږي، په پېښورکي ځیني داسي غزل ګوی پښتانه شاعران لرو، چي دوی د اردو ژبي د خیالي شاعرۍ پیروي کله کله کوي، مګر پر دوی باندي پښتني تخیل دومره غالب دئ، چي په غزل کي د شاعر د تخیل سلسله هم ضرورت مشغول کوي، حمزه شینواری وایي :

وایي اغیار چي د دوږخ ژبه ده
زه به جنت ته د پښتو ســـره ځم

په دې اخیرنۍ دوره کي چي د ادبي تجدد او نوي فکر دوره ده، په پښتو ادب کي دوې ډلي شاعران او لیکوال لرو :
یوه هغه ډله ده، چي پر زاړه اسلوب روان دي او لکه پخواني شاعران او لیکوال زاړه افکار د شعر په زاړه قالب کي ځایوي.
دوی کله کله ځیني نوي فکرونه هم په هغه پیرایه کي اداکوي، چي د شعر عنعنوي زوږ قالب دئ. له دې ډلي څخه غلام محی الدین افغان، مستغني، سید محسن، مخلص کندهاری، مولوي صالح محمد خان، خادم، الفت، رشتین، عقیق زاخیلي؟، سمندر بدرشوی، سید راحت زاخیلي، محمداکبر خادم او نور ډېر شاعران دي چي د پښتو ادب د وروستنۍ دورې لویه برخه په دوی پوري اړه لري.
مثلاً د مستغني ځیني نوي اشعار نوی فکر روزي، مګر قالب یې قدیم دئ، دکندهار سید محسن هم د دې عصر د نوي فکر خاوند شاعر دئ، چي د استقلال تر جنګ پوري لا ژوندی و. دی په اول عمومي جنګ کي، چي په (۱۹۱۸ میلادي) کي ختم سو د اسلامي مملکتو مغلوبیت د اروپا د استعمار په مقابل کي او بیا د ترکانو د اسلامي خلافت سقوط د حسرت په سترګه ویني او داسي وایي :

پر اسلام ډېر اضطراب دئ لا ترکمه
هم د دین حالت خراب دئ لا ترکمه
هم راحت مو سدالباب دئ لا ترکمه
ظلم و جور تل کامیاب دئ لا ترکمه

ټول وطن مو مست له خواب دئ لا ترکمه

عاقلان به مو ترکمه سر په جېب وي
چې مدام به دوی په صبر په شکېب وي
د اغیارو به ترکمه مکر و فرېب وي
د غرض په پښو به ځغلي دا یې زېب وي

موږ به غرق د خورد و خواب یو لا ترکمه

چې قلم مو په قبضه کې د کفار سو
ملك و ځان مو په قبضه کې د کفار سو
نوم نښان مو په قبضه کې د کفار سو
ټول اسلام مو په قبضه کې د کفار سو

موږ بیده یو په غــــفلت کې لا ترکــــمه

ټول یورپ په اتفاق راته بلا سو
زموږ په غوښو په املاکو مبتلا سو
دښمني یې کړه ظاهره برملا سو
لا په کور کې ورته ګورو ها لالا سو

ربه ته به مــــو بیدا رکــــړې لا ترکمه

هند و مصر بریټش یوه ګوله کړه
په موږ نه سو پر بغداد باندې حمله کړه
پر ایران او عثماني ئې غلغله کړه
مقدس ځایونې ټوله په قبضه کړه

هوښ غیرت له موږه ولاړی لا ترکمه

مسلمان چې مبتلا په عیش و ناز سو
اشفته و پرېشان د هر طناز سو
چاپلوسي د اجانب کاندي غماز سو
په سودا د ګلرخانو بې نماز سو

کاهـلي يې په رګـــو سوه لا ترکـــمه

ټول اسلام نن ګرفتار په مصیبت دئ
غوړېدلی پر جهان ټوله ظلمت دئ
اسلام ولاړی په بلا او په نقمت دئ؟
هم دا واړه زموږ د خپل عمل شامت دئ

د یورپ ظلـــمونه ګورو لا ترکـــمه
د طلوع افغان لومړی کال، دریمه ګڼه، ۱۳۰۰ شمسي کال.

# منشي احمدجان

د (۱۳۰۰ هـ ق) په شاوخوا کي د پښتو په نثر لیکلو کي لږ څه تحول پیښ سوی دئ، تر دې دورې مخکي د پښتو د نثر کومه شېوه او سبك چي د خوشحال خان په کورنۍ کي پالل سوی و، هغه په کندهار کي د پټې خزانې د مؤلف محمد هوتك له خوا لږ څه اصلاح سو، یعني د خوشحال خان د کورنۍ په نثر کي جمله بندي او ترکیبونه او د لغاتو استعمال ډېر د فارسي یا عربي تر اثر لاندي و. مګر محمد هوتك په پټه خزانه کي د نثر د اصلاح له پاره یو بل قدم واخیست، ده کوښښ وکړ چي جملې او ترکیبونه د پښتو رنګ ولري او ځای ځای د فارسي او عربي کلماتو په مقابل کي پښتو لغتونه او تعبیرونه هم استعمال سي. تر دې زمانې را وروسته سل کاله په همدغه ډول د پښتو پر نثر باندي تېر سول، په احمدشاهي دوره کي چي کوم نثر په کندهار کي پیرمحمد کاکړ یا د احمدشاهي فتاوی لیکوالو کښلی دئ هغه هم د خوشحال خان د کورنۍ او بیا د محمد هوتك د اصلاحي اقدام تر اثر لاندي ښکاري او سړی ویني چي د پښتو نثر ورو ورو د فارسي او عربي له تقلیده څخه آزادېږي او څه نا څه د پښتو خپل رنګ مومي اما د دې اصلاحي حرکت قوي محرك د (۱۳۰۰ هـ په حدودو کي) منشي احمد جان دئ، دې سړي په پښتو ادب کي کوم فکري تحول نه دئ راوستی او د ده په آثارو کي کومه داسي ذخیره نه ښکاري، چي هغه دي فکري ارزښت ولري، دی د انګرېزانو د پښتو معلم و او د استعمار په کړۍ کي نښتی و. مګر د نثر د ظاهري شکل په اړولو او د پښتو محاورې ته په نزدې کولو کي لاس درلود او داسي آثار يې لیکلي دي چي هغه د پښتو په نثر کي ښه کتابونه بلل کېږي، کوم کتابونه چي ده لیکلي یا ترجمه کړي دي مشهور ئې دا دي :
د قصه خوانۍ ګپ، چي په ۱۹۳۰ م چاپ سوی دئ.
ګنج پښتو په ۱۹۳۰ م د لاهور چاپ.
تاریخ افغانستان، چي په همدغه کال په پېښور کي چاپ سوی دئ او له انګرېزي څخه ترجمه سوی دئ.
له فارسي تاریخ فرشته څخه هم ده د سلطان محمود د تاریخ ترجمه کړېده.
هغه دغه ، هم د ده یو مشهور کتاب دئ.
د منشي احمد جان په ټولو آثارو کي د نثرنویسۍ دغه خاصیتونه شامل دي:
دی کوښښ کوي چي د پښتو د نثر د لیکلو ژبه د خلکو محاورې او عامي لهجې ته رانژدې کړي او د لیك او وینا تر

منځ موافقت ومومي.
د فارسي او عربي ژبي مستعمل او پېژندل سوي کلمات او لغات له خپله نثره څخه ارادتاً نه باسي، مګر د پښتو تعبيرونه او د ادا کولو خاص خاص قالبونه هم نه هېروي، نو له دې جهته دی يو معتدل او د ذوق خاوند ليکوال ګڼل کيږي، مثلاً په کوم ځای کي چي د جنګ مشترکه پښتو او فارسي کلمه استعمالېدای سي، هلته هندۍ جګړه نه راوړي، خو په کوم ځای کي چي دغي کلمې د پښتو په محاورو کي ځای نيولی او د استعمال حق ئې موندلی دئ هلته نو د دې کلمې له استعمال سره کوم تعصب نه ښکاره کوي.
منشي احمد جان په خپل نثر کي اوږدې اوږدې جملې نه راوړي او داسي کار نه کوي، چي د څو جملو خبر د اخرنۍ جملې په پای کي راوړي، بلکي هره جمله ئې خپل خبر لري او دا د پښتو د اصلي بنسټ سره سم کار دئ.
د منشي احمد جان د نثر يوه بله ښېګڼه دا ده، چي د ده د کتاب له ويلو څخه د اعلی ادبي ذوق خاوند هم نه ستړی کيږي او که يې د ابتدايي سواد خاوند هم لولي نو په فهمولو کي مشکل نه ورپېښيږي. نو له دې جهته ده ته يو معتدل او د ذوق خاوند ليکوال ويلای سو، اوس به د ده د نثر يو څو نمونې راوړل سي :

## له ګنج پښتو څخه

نقل دئ چي يوه سړي آس ساتلی و او ډېره مينه ئې ورسره کوله، شپه او ورځ به په خدمت ورته ولاړ و، سحر مازديګر به يې لمباوه، ګراره(؟) به يې وخت په وخت کوله. د اوربشو د ارداوې غور به ئې په ښه شان کاوه او ناری به ئې مساله دار ورله مدام تياراوه او هره ورځ بې د ولو په غاړه باندي په شنو شنو واښو کي ګرزاوه، او چي چرته به ډېر واښه پېښ شول نو هلته به يې لويه رسۍ پکښې واچوله او موږی به يې ټك واهه او رسۍ به يې په موږي پوري وتړله، نو دغه آس به يې په هغه واښو کي پرېښود، بيا دی به پکښې کله چريده او کله به رغړېده او کله به يې لکۍ پورته کړله ټوپونه به يې وهل او خاوند به يې په تماشا خوشحالېده. يوه ورځ له ورځو وه، چي دې سړي دغه آس بهر بوت ! ناګهانه چي ترې کوز شو چوړ آس ودنګل، سرکښې يې وکړله زين، واګي، جلب، ترسيري واړه اسباب يې د ځان سره وتښتاوه. خاوند پسې تمامه ورځ وځغلېده، مګر هغه آس و او دی سړی و لاندی يې نکړای شو، اخير سړی ستړی شو او آس لاړ له سترګو يې پنا شو. چي ماښام شو سړی غريب ستړی ستومانه کور ته راغی، بې طاقته په کټ کي پرېوت او په آس باندي چي وخت د داني شو نو وږی شو، چي خوله يې واښو ته کښته کوله واګي په زين کي نښتي وې، خوله يې واښو ته ونه رسېدله، چي نيت يې د رغړېدولو وکړ زين پرې دپاسه پروت و هغه کار هم برابر نشو، چي په يوه ډډه به يې آرام کاوه يو رکاب به ترې لاندي شو، په بله ډډه به يې بل رکاب ورته وړاندي شو، دا خبره هم ونه شوه. تمامه شپه لکه څوکيدار په ولاړې پرې تېره شوه، سبا بيا په هغه ميدان کي حيران ګرزېده، ناګاهانه يې يوه واله په محکښې راغله، چي دا ورګډ شو هغه واله ژوره وه اوبه پکښې ډېري وې، ټول اسباب يې په اوبو کي لوند شو، چي په ډېر کوښښ سره بهر راووت او لمر پرې ولګېد، هغه تسمې د اسباب د ده ټولي د اومې څرمني وې خو چي وچي شوې نو ډېري کلکي شولې. بيا هر ځای چي د ده په تسمه لګېده هغه ځای به غوڅېده، غرض دا ده چي ګيډې ته يې زخم ورسېد، ملا يې خوږ شوله، څټ يې غوځ شو، چي څه سختي په دنيا کي يادېدله هغه ورته پېښه شوله، چي ډېر وږی، کمزوری او عاجز شو، نو په يو ځای باندي ولوېد، ناګهانه خنځير ورباندي پېښ شو اول خو ورته په قهر شو، ولې چي د ده خواره ورځ يې وليدله نو زړه يې پرې وسو او ترې يې پوښتنه وکړله چي دا ولې دي داسي حال شوی دئ؟
آس ورته وويل : "چي دا ټول زين او د اوبو او د تسمو سبب دئ". بيا آس ورته وويل که لږ کوټې ما له دې بنده خلاص کړې نو ډېر ښه به وي، ثواب به دي وشي، خنځير ورته وويل چي زه خو داسي هيڅ ګناه خپل ځان ته نه ګڼم چي د دومره سختۍ لايقه وي، خنځير ورته وويل چي داسي نده يا ته دروغ وايې او يا جاهل يې نه پوهيږې چي ګناه څه ته وايي نو که دروغ وايې خو زه دي نه خلاصوم پرېږده چي کړېږې او بيا مړ شې او نه دي اشنايي کوم ځکه چي خلك وايي چي د بدخوی سړی

سره اشنايي ښه نده، د سړي خوی خرابيږي او که نه پوهيږې نو بيا ستا دپاره دغه بند ښه دئ، ځکه چي ناپوهي داسي څيز دئ چي له دې سختي نه به دي په زياته سختي کي پرې باسي.
بيا آس زاري وکړله ويل يې چي خلاص مي کړه. خنځير ورته وويل چي ما ته رښتيا ووايه نو به دي خلاص کړم. آس ورته له سره خپله قصه شروع کړه. نو خنځير وويل چي اوس پوه سوم، چي ته لوی جاهل ئې او په تا کي شپږ ګناوي جمع شويدي : ړومبی د خاوند پرېښوول، دوهم د هغه احسان هېرول، دريم هغه ځان پسي ځغلول او ستړی کول، څلورم اسباب د ځان سره تښتول، پنځم په ځان باندي دا ګمان کول چي زه به يوازي ګذاره وکړای شم، شپږم همېشه په ګناه کي پاتي کېدل او توبه ورنه نه ايستل او خاوند له بيرته نه ورتلل.
آس وويل چي اوس پوه سوم، چي زه له دې عذابه دوچند لايق يم. خنځير وويل چي اقرار دي وکړ او ځان ته دي ملامت وويل نو اوس به دي خلاص کړم، بيا ئې هغه تسمې پرې کړې او آس ئې له بنده خلاص کړ.

# ملا نعمت الله

د پېښور د نوښار اوسېدونکی و او تر (۱۲۸۰ هـ) وروسته د ده د ژوند زمانه ده او دغه سړي په پښتو اوسني ادب کي د داستان ليکلو په سلسله کي ډېر کار کړی او متعدد داستانونه ئې نظم کړي دي. د ده اشعار خواږه او روان او د ويلو وړ دي، د ليلی او مجنون قصه، د نيم بولا او تيم بولا قصه، د فتح خان قصه، د موسی او ګلمکۍ قصه، د حضرت علي جنګنامه، د حاتم طائي قصه، د شهنامې پښتو ترجمه او الف ليلی د ده مشهور او نشر سوي کتابونه دي. ملا نعمت الله په خپلو ټولو آثارو کي د ژبي سلاست او خوږوالی ساتي او د هري قصې په نظمولو کي دا خبره په نظر کي نيسي، چي د داستان ټولي خواوي په قوي نظم او د پښتو ژبي د اساسي تعبير پر اصولو باندي برابري وي. د ده د بيان قوه داسي منظمه او تکړه ده، چي هيڅ وخت ظاهري ادبي ښېګڼي تر معنی نه قربانوي او هم معنی په ښه ډول افاده کولای سي نو ځکه د ده هنر د ظاهري او معنوي ښېګڼو جامع دئ اما د افسوس ځای دا دئ، چي دغه هنرمند شاعر ټول خپل هنري او ادبي استعداد د داسي شيانو په ويلو کي صرف کړی دئ، چي په ژوند کي لږ په کار راځي، يعني د ده په آثارو کي د فکر ذخيره ډېره لږه ده، خو د لفاظۍ او داستان ليکلو استاد دئ. حقيقت دا دئ که د ملا نعمت الله هنر د ژوند له پاره استعمال سوی وای نو به حقيقتاً شاهکار وای، دی عادت لري چي د هري قصې د هري برخي په سر کي يو ادبي تمهيد ړدي او بيا د هغه څخه د اصل داستان خوا ته هڅه کوي، په دې تمهيد کي د الفاظو قوت او خپل ادبي مهارت په ښه ډول ثابتولای سي او د ده قصې په پښتو د باندې والو د مشغوليت لوی سبب دئ. د ملا نعمت الله د هنر قوت هلته ښکاري، چي دی د شهنامې مطالب په پښتو مثنوي را اړوي، مګر دی پر خپل بيان دوني غالب دئ، چي د ترجمې هيڅ اثر نه پکښې ښکاري، مثلاً کله چي رستم په يوه جنګ کي په نافهمي خپل زوی سهراب وژني دغه تراژيدي ملا نعمت الله په داسي ډول تصوير کوي.

اور مي بيا نن لګېدلی په خاطر دئ
چي په غوږ مي د سهراب د مرګ خبر دئ
د وجود باغچه په غم زما تالا شوه
د بېلتون د محصلانو حوالا شوه
په هر ځای د بېلتانه له لاسه وير دئ
د هر چا مرګ ته فلك استاده خير دئ
کوراکور د بېلتانه نارې سورې دي
د خزان له لاسه مړاوي منجرې دي
دا فلك د ستم ژرنده ګرزوي بيا
ککرۍ پکښې د خلکو غورځوي بيا
لا بوستان نه وي تازه د نوبهار
چي خزان ورپسې سم راسي دوبار
لا خورکړی بنفشې نه وي اوربل
چي بورا سي د خزان د لاس غوبل
ګلاب نه وي پورته کړی سر له خواب

چي خزان يې کړي په غم سينه کباب
لاله نه وي اوچت کړی سر په باغ
چي خزان ورباندي کېدي د غم داغ
بلبل هم نه وي په ديد د ګلو موړ
چي فلك يې بيا په وژلو کړي زړه سوړ
د اسمان ناکردي څو به درته وايم
که يې ستايم تمام عمر به لګيا يم
پدا شان ما ته راوي ويلي صاف
د سهراب لښکر چي ولاړ په خپل اطراف
رستم هم ترېنه رخصت شو په ماتم
په طرف (يې) د سيستان کېښود قدم
د سهراب تابوت ئې هم يوړه له ځانه
دا خبر چي ورغی خاص تر سيستانه
کور و کلی په نارو په ژړا سر شه
تا به وې ګويا قايم هلته محشر شه
ووړ (و) لويو د سيستان به کړې کوکاري
چي هر څوك به خبرېده له هسي چاري
د واريه د رستم مور راغله سرتوره
د سهراب په غم کي پرېوته نسکوره
په ژړا يې (و) ګرېوان د اوښکو ډك
د افسوس فرياد ئې تلو په پاس فلك
په سيستان کي کور په کور کېده ويرونه
د سهراب په ماتم ناست وو عالمونه
چي دفن شو هغه ښکلی نازنين
تهميته هم چا خبر کړه په يو حين
چي سهراب قتل له لاسه د رستم شو
د سيستان په ښار کي ښخ په ډير ماتم شو
د خبر په اورېدو پرېوته کوزه
ډېر ساعت پرته بې خوده هغه چوزه
تار په تار ئې کړه ويښته د اوربل واړه
سترګي سرې کړې په ژړا خماري دواړه
اور يې بل کړو وې چي ځان پکښې ستي کړم
ځان ملګرې د سهراب سره دستي کړم
الغرض چي ځان ئې کړو پکښې ګوزار
چي ناګاه ورباندي خلك شو خبردار
په تلوار يې دا له اوره کړه بهر
لاس و پښې وېښته يې سوي وه د سر
د دي سپين بدن چی و د ګلو باغ

# فیض محمد اخوندزاده

پر افغانستان باندي د انګرېزانو لومړۍ حملې د دې ملت پر ژوند درانه اثرونه وکړل، په عملي ژوندکي يې خلك د آزادۍ ساتني ته چمتوکړل خو له بلي خوا يې د دوی توجه د ژوندانه له نوروکارو څخه فقط د استقلال ساتني ته راوګرځوله اما په پښتو ادب کي دغه حرکت ډېر ښه اثرونه پرېښول. مثلاً د پښتنو دکلو شاعرانو د جنګ واقعې په حماسي شکل نظم کړې او له بلي خوا عالمانو او پوهانو هم په دغه حرکت کي برخه لرله او دوی داسي کتابونه وکښل چي هغه خلکو ته د آزادۍ د ساتني په لارکي ګټور وي، له دغو پوهانو څخه يو هم فيض محمد اخوندزاده و، چي د لوګر په موسهي کي اوسېدی او ده د امير شېرعليخان په اوله پاچاهي کي يوکتاب د روضة المجاهدين په نامه په پښتو مثنوي جوړکی او مقصد يې دا و، چي خلك په ديني تبليغ سره د جهاد او د وطن د ساتني خوا ته راوبولي. داکتاب تقريباً پنځه زره بيته او ښه تبليغي او اخلاقي مضامين لري، د ده د نظم ژبه ساده او روانه ده چي هر څوك بې تکليفه په پوهېږي او د قرآن او حديث مضامين په پښتو ژبه ښه نظم کولای سي او د ده کتاب د هغه عصر په پښتو ادب کي ښه ځای نيولای سي، دی خپل ملت ته د يووالي بږغ داسي رسوي :

همه واړه يو وجـــــــود شئ

په طلب کي د مقصود شئ

ملا فيض محمد په دې کتاب کي غواړي، چي د مملکت عسکرو ته د دوی مهم اجتماعي مقام وښيي او خپلو مسئوليتونو ته يې توجه ور واړوي، مثلاً د يوه مسلمان عسکري مشر وظايف داسي ښيي :

| | |
|---|---|
| په لښکرکي چي افسر وي | مى بايد چي دلاور وي |
| شجاعت لري کرار وي | په صفوتوکي جرار وي |
| هم عاقل او مدبر وي | ښه دينداره مذکر وي |
| دلسوزي لري ناصح وي | هم انصاف لري صالح وي |
| سخاوت لري ښه دادکا | له لښکر سره امدادکا |
| چست چالاك وي ثقيل نه وي | هم ظالم او بخيل نه وي |
| کبرجن او جاهل نه وي | بدکرداره غافل نه وي |
| له لښکره باخبر وي | پخپل کارکي باهنر وي |
| تېښته نه کاندي صابر وي | په نعمت د رب شاکر وي |
| له سلطانه طاغي نه وي | له الله نه باغي نه وي |
| د پاچا په خدمت راست وي | د الله په طاعت ملاست وي |
| نه شراب خوري نه زاني وي | نه رشوت خوري نه جاني وي |
| حکومت ئې سراسر | په کتاب وي برابر |
| داسي نه چي دولت ټولکا | دی خپل ځان ورباندي موړکا |
| عالم واړه در په درکا | خپل مخ تور خاوري په سرکا |

له دې يوې نمونې څخه سړی دا معلومولای سي، چي په افغانستان کي هم پس له اوله جنګه څخه يو فکري حرکت په

خلکو کي د دې له پاره پيدا سوی و، چي دوی د خپل ژوندانه لارو چارو ته متوجه سي او دغه فکر و، چي د امير شېرعليخان په زمانه کي پښتو ژبي او د عسکرو تنظيم ته توجه وسوه او په مملکت کي لومړۍ پلا يوه کابينه تشکيله سوه او يو اخبار د شمس النهار په نامه نشر سو.

**د دغه حرکت ادامه :**

په افغانستان کي لومړۍ پلا مدني حرکت امير شيرعليخان شروع کړی و او دغه پاچا د مملکت د نوي ژوندانه له پاره ځيني ښه اساسونه کښېښودل، د خپلي کابينې نومونه ئې پښتو کړل، عسکري قوماندې (بولۍ) يې له انګرېزي څخه په پښتو راواړولې او په خارجي سياست کې هم غوښته چي له ټولو دولتونو سره دوستانه روابط ولري او د روس او دولت عثماني سفيران ئې په خپل دربار کي ومنل مګر انګرېزانو نه غوښتل چي د هندوستان له څنګه د پښتنو يو قوي حکومت موجود سي، نو دوی دوهمه پلا پر افغانستان حمله وکړه او امير شېرعلي خان کابل پرېښود او په مزارشريف کي پاته سو او تر ده وروسته يو داسي سخت او قوي لاس پر افغانستان باندي مسلط سو، چي هغه د امير شېرعلي خان حرکت ئې په سرعت تعقيب نه کړ، نو ځکه د پښتو ادب هم تر شل کالو پوري لکه چي لازم و هغسي وده ونه کړه، مګر د امير حبيب الله په زمانه کي بيرته هغه حرکت لږ څه سره وښورېدی او يو څو مکتبونه په کابل کي جوړ سول او يو اخبار د سراج الاخبار افغانيه په نامه له کابله خپور سو.

په دغه وخت کي موږ ګورو چي پښتو ليکوالو او شاعرانو هم قلمونه راواخيستل او په افغانستان کي د پښتو حرکت بيرته شروع سو، سراج الاخبار د پښتو ژبي اهميت ته خلك متوجه کړل او يو څو ليکوال داسي پيدا سول، چي دوی په پښتو ژبه څه ليکل يا به ئې شعرونه ويل، د دې ډلي په سر کي ملا عبدالباقي افغان کندهاری او سيد محسن کندهاری او غلام محي الدين او مستغني او د سراج الاخبار ليکوال دي، چي لومړی مدير او مؤسس يې مولوي عبدالرؤف کندهاری و.

او بيا محمود طرزي هغه چلاوه او ملګري يې عبدالهادي داوی او عبدالرحمن لودين وو، دغو خلکو د پښتو ژبي د نوي ژوند فکر په مملکت کي وروزه او لږ و ډېر يې په پښتو کي شعر او ادب ته هم خدمتونه وکړل. دلته موږ د هغو ليکوالو نومونه او ادبي تخليقات ښيو، چي دوی د پښتو په نوي حرکت کي لومړۍ برخه اخيستې ده.

# ملا عبدالباقي افغان

د پښتو د اخيرنۍ دورې په ادبياتو کي چي کوم فکري تحول راغلی دئ د هغه يوه برجسته نمونه د دغه سړي په کلام کي ليدله کيږي. دی تر (۱۲۷۰ هـ ق) وروسته د کندهار په ښار کي پيدا سوی او په (۱۳۰٦ هـ ش) کال وفات سوی دئ. په شعر کي يې تخلص افغان و او د خپل عصر يو باعمله عالم او صوفي شمېرل کېدی، په وارو وارو يې له وطنه څخه تر مصر او حجازه پوري پياده سفرونه کړي دي او تر کلکتې پوري هم تللی دئ.

د هند مشهور عالم مفسر او سياسي رهنما مولانا ابوالکلام آزاد خپل ترجمان القران تفسير د دغه سړي په مجهول نامه اهداء کړی دئ، ځکه چي دغه عالم د قرآن د تفسير د ځينو پښتنو له پاره تر کلکتې پوري پياده سفرونه کړي وه، دې فکور عالم د پښتنو د بدو عاداتو د اصلاح او انتقاد له پاره د (۱۳۲۰ هـ ق) کال په شاوخوا کي يو منظوم پښتو کتاب ليکلی دئ، چي وزن ئې اورد مثنوی او نوم يي تبيين الواجبات فی التخريب
العادات دئ، دا کتاب تقريباً (٦۰۰۰) بيته لري او د کتاب په سر کي داسي وايي :

را اخیستی مي شهباز دئ د خپل عشق رباب وهمه
نغاره د اسلام کوك سوه دواړه برېته تاوومه
سو شراب ساقي له عشقه عالم ټوله سو ګل رنګه
خوشحالي د هغو چي يې زړه پاك سو له زنګه
څه نغمې څه ترانې دي قسم قسم آوازونه
قمريان پر ښاخو ناست دي مطرب نوي کړه سازونه
خم په جوش پیاله په دور قلقلي سو د صراحي
مستانه په رقص راغله درب دروب د پاکوبي
خورا پسته پښتو وایه بلنده مه درومه افغانه !
که قلم بافضولي کا ټینګ ئې نیسه له بیانه
التماس د سعادت کړه پښتانه لره د خدایه
د نېکۍ خښته ئې کښېږده ښه محکمه له تهدایه

افغان د پښتو په اجتماعي عیبونو انتقادکوي او د دوی د اجتماع په منځ ورننوزي او د یوه اجتماعي نقاد جوله پیداکوي، مثلاً پښتانه سوداګران په مالوکي ناوړه شیان ګډوي او خالص مال بازار ته نه راوړي، دا کار لکه چي شرعاً ناروا دئ په اجتماعي او اقتصادي لحاظ هم غندلی دئ او د تاجر اعتبار ورکموي، افغان وايي :

خیانت له مسلمانه سره منع دئ په دین کي
فریبنده او حیله ګر سو په انګار آتشین کي
چا چي غش په مال کي وکی هغه نه دئ زموږ له ډلي
دا حدیث له مصطفی سو چا له نسته چي دا ولي
که موچنه که څپلۍ سوه چي په منځ کي وي خرڅوړي
دکومك لحاظ يې نه وي په قیامت به کښته ګوري
د لندن کافران ګوره غوټې خلاصي کړي دلته
پر هغه قرار ښکاره سي چي لیکلي وي هلته
د عراق وړې غوزې دي د ورېښم په شان پېچلي
په دوه چند قیمت خرڅېږي سپیني پاکي صافي ولي
ستا دونیم په یوه شمار سي پاکېده يې خرڅي غواړي
د دنیا فهم چي دا سو حق تعالی دې وله نغاړي
یو د بله کړي نسبت چي د پټان پټان دروهلې
دین دي سپك په نظر ورکی داسي مه کوه نتلې
ته باید چي مقدا او رهنما ئې و ملت ته
لمر خاته لوېده رابولي صفوت او شریعت ته

ستا د غش په چپلاخه د لویانو مخ خوږېږي
ځکه موږ ته رسول وایي چي له ډلي دي بېلېږي
سترګي روښي کړه ناکسه ځان وګوره بیدار سه
خس؟ دزدي د مېړه عیب سو له خپل ځانه خبردار سه

پښتانه په کلو او کوڅو کي ناپاکي پاشي او د نورو د صحت مراعات نه کوي افغان دغه اجتماعي او صحي عیب ته هم متوجه دئ او داسي انتقاد پر کوي :

که د ښا اوبه راتلې و داسي ځای ته چي ضرر و
د بوده او د سړیو پر خټ بېل د ده ممر و
د حساب تخمین یې وکړه هر حیوان چي پرې تېرېږي
په لحد کي یې عذاب دئ څو ابرو یې کوره کېږي
انبارونه د بامو چي د کوڅو و میان ته پاشو
د دوزخ د اور ازغي دي د لحد دپارې تراشو

افغان کله کله د خپل قوم د عظمت په یاد کي مستي کوي او ځوانانو ته د مېړاني او سلاحشورۍ درس وایي :

توپك ښه اسباب د دین دئ
خوار سړي له تبرزین دئ
پخه توره دي تېره کړه
که دي رب ته تندی سپین دئ
بدن آس دئ پر سپاره سئ
په یوه ګراتۍ پوره سئ
توپك واچوئ اوږو ته
یو بل په ننداره سئ
زما نوبت په کله راسي
ربه غم مي زړګی تراشي
چي د توپ ګولۍ مي درومي
د مکاب کنګرې تراشي

# غلام محمد پوپلزی

د پښتو ادب په نوې دوره کې چې کم فکري تحول پیدا سوی دئ هغه د نورو ژبو څخه د نوو ادبي آثارو د ترجمې په برکت راغلی دئ، کله چې د نولسم قرن په وروستنۍ برخه کي په هندوستان کي انګرېزي تمدن خپور سو، نو په اردو او هندي ژبو کي داسي کتابونه تألیف یا ترجمه سول، چې موضوع یې د نوي عصر خبري وې، د هندوستان ټول قومونه خپل ذلت ته متوجه سول او هر چا کوښښ کاوه، چې د نوي عصر له جریان سره ځان ملګری کړي.

په مسلمانانو کي هم دا فکر پیدا سو، چې دوی ولې متفرق او خپاره او ذلیل دي؟ د اردو یو مشهور شاعر الطاف حسین حالي چې د پاني پت اوسېدونکی و، یو کتاب د مد و جزر اسلام په نامه منظوم کړ، چې په هغه کي یې مسلمانانو ته د دوی د تاریخي ارتقا سببونه وروښوول او د اوسني ذلت او خوارۍ علتونه یې هم په خوږه ژبه بیان کړل. دې کتاب په اردو ادب او د هندوستان په مسلمانانو کي یو نوی روح پو کړ او د هر چا سترګي خلاصي سوې. په پښتو ادب کي هم په دغه زمانه کي نوی فکر پیدا کېدونکی و او د نوي ادب په فکري طلیعه کي غلام محمد خان د پېښور د چارسدې اوسېدونکی ودرېد او په پښتو مثنوي یې د حالي مد و جزر ترجمه کړ او پر هغه باندې په نثر یوه مقدمه هم ولیکله، دا کتاب په (۱۸۹۳ میلادي) چاپ سوی دئ او د پښتو نوي ادب د اغاز یوه ښه نمونه ده.

د کتاب په سر کي وایي :

"د ټولو مسلمانانو په خدمت کي عرض دئ، چې دا کتاب مدوجزر اسلام چې الطاف حسین صاحب انصاري پاڼي پتي مقیم د دهلي چې حالي یې تخلص دئ په اردو ژبه کي چې د مسلمانانو د ترقۍ او تنزل په باب لیکلی دئ په دې ورځو کي محض په خیال د خیرخواهۍ د اسلام او د مسلمانانو خصوصاً د پښتنو له اردو نه په پښتو ژبې کي ترجمه کړای شو. دا هغه کتاب دئ، چې په لیدو یې په تام هندوستان کښې یوه زلزله پرېوتې ده او چا چې دا کتاب په غور سره کتلی دئ او لږ کوټې شان تعصب یې په ډډه کړی نو هغه ته معلومه شوېده چې د مسلمانانو اوس څه حال دئ او مخ کي پرې څه حال راتلونکی دئ او په چا کي چې څه قدر لحاظ د احکامو د قران مجید او د حدیث د پاك نبي شته په هغو کي د همدردۍ یو جوش پیدا شوی دئ او د خپل طاقت په موجب یې لاس پښې وهل شروع کړي دي. دا خبره ظاهره ده، چې لوی عبادت په دنیا کي هغه قدم شمېرلی شي چې ضرورت ئې ټولو نه زیات وي، مثلاً په هغه وخت کي چې مسلمانانو باندي یو هسي ظالم دښمن په ظلم سره راوخېژي چې د دوی په مال او عیال، په دین او په ایمان لاس اوږده کا هغه وخت د هغه دفع کول په ښځو او نرو لازم وي او د دغه کار دپاره په نمانځه او روژه کي تاخیر کول جایز شمېرلی شي دغه رنګه که ملك په قحط کي مبتلا وي نو دغه وخت چې څوك د لوږي مري د هغو همدردي کول په نورو ډېرو عبادتونو ړومبی شمېرلی شي او چې ببړۍ ډوبېږي او خلك پکښې ډوبېږي نو هغه وخت د ډوبېدونکو ویستل په نورو ثوابونو زیات دي".

غلام محمد خان په دې پښتو لیکنه کي خپل د نثر لیکلو قوت هم ښودلی دئ او داسي نثر لیکي، چې د پښتنو عام لوستونکي به هم ښه په پوهېږي، دی وایي چې د مسلمانانو د تنزل سببونه دا دي :

"اول - ورکېدل د علم د دین او د دنیا.

دوهم - بې اتفاقي د قوم.

دریم - بې ځایه تعصب یعني ضد او جهل په خپله خبره او د یوه بل نه نفرت او کرکه کول.

څلورم - غفلت د اسبابو د تنزل نه.

پنځم - د اولاد تربیت او تعلیم نه کول.

شپږم - خرابېدل د اخلاقو او د خویونو.

اوم - په محنت او مشقت کي سستي کول.

اوس پاتي شوه دا خبره چي موږ له څه کول مناسب دي د دې څواب ډېر اورد دئ او په هغې زموږ د قوم د زاړه خيالاتو خلك يعني هغه چي د نوي تعليم د نوو خيالاتو نه واقف نه وي ډېر کم پوهيږي، دا ظاهره ده چي په هر قوم کي چي اتفاق او قوت او علم وي هغه همېشه په نورو قومونو باندي غالب وي او ملك او دولت د هغوی په قبضه کي وي او په کوم ځای کي چي څو قومونه يو ځای اوسي نو په هغوی کي چي په کوم قوم کښي اتفاق او علم او محنت کشي او دوراندېشي وي هغه قوم همېشه آسوده او په عزت کي وي".

د مدوجزر اسلام ترجمه داسي شروع کيږي :

له بقرات حکیم نه وکړه چا پوښتنه
چي هوښيار د کامل عقل څښتنه
کوم یو رنځ دئ چي سړی پرې هلاکیږي
په دنيا کي يې دوا نه پیدا کیږي
وې دا هسي ناجوړتيا په جهان نشته
چي دوا يې مونده نه شي هولته هيشته
که وړیا دي که اسان دي که مشکل دي
هر مرض له پیدا کړي خدای درمل دي
بې له هغه چي اسان ورته ښکاریږي
چي طبيب ښيي علاج وايي تړیږي
که د رنځ نخښي سبب ورته څرګند کا
په خندا شي په طبيب پوري ریشخند کا
نه دارو خوري نه پروا يې په پرهېز شي
په ورو ورو هغه کمزوری مرض تېز شي
د طبيب له نزدېکته يې نفرت شي
تر هغه چي له دنيا ځني رخصت شي
دغه حال به په دنيا د هغه قوم وي
چي په سپينه رڼه ورځ وده په نوم وي
په جهان کي وي پراته طوفان يې راوړي
په ګرداب کي يې کړي بند بادبان يې راوړي
غاړه لري وي سيلي زياتیږي(؟)
ګمان دا دئ چي جهاز دا دئ ډوبیږي
د بېړۍ خلك په هغه شان پراته وي
اړخ نه اړوي د مرګ په خوب ویده وي
وریځ ګوره يې په سر د بدبختۍ وي
په موسم نوې راغلې د سختۍ وي
د نېستۍ نخښي يې په سترګو ورليده شي
دا اواز له وړاندي وروسته اورېده شي
چي پرون مو څرنګ حال و نن په څه شوې
لا تر اوسه پوري ويل وې اوس بيده شوې
وليکن د دې غافل قوم غفلت هم
هم هغه وي هغه صبر په ذلت هم
که شو خاوري فخرتوب يې هم هغه وي
سپينه ورځ شوه ولې خوب يې هم هغه وي
نه ارمان افسوس چيري د خپل ذلت کا
نه سيالي د نور قومونو د عزت کا
هيڅ فرق نشته د ډنګر دوی تر حاله
په هر حال کی چی پراته دي وي خوشحاله

په دې ډول غلام محمد خان يو روښان فکره او د قوم همدرده شاعر و، چې پښتنو ته يې د خپل فکر اثر پرېښود، نو ځکه دی د اوسنۍ زمانې د منورو اديبانو په لومړي صف کې درېږي.

# غلام محی الدين افغان

دی اصلاً د کندهار و، خو تر (۱۳۰۰ هـ ق) کال دمخه هند ته فرار سوی و او خپل تحصيلات يې هلته تکميل کړي وه، په اردو، پنجابي او انګرېزي هم پوهېدی. کله چې د (۱۳۳۰ هـ ق) په حدودو کې کابل ته راغی دلته د دارالمعلمين مشر او په يوه ډله کې شامل و چې نوم يې (اخوان افغان) و.
ده په کابل کې ډېر ځلمي په نوي فکر او د افغانستان د آزادۍ له پاره وروزل او يو له هغو خلکو څخه و، چې په کابل کې يې د پښتو د روزلو
تحريك چلاوه. غلام محی الدين په (۱۳۳۹ هـ ق) وفات سوی دئ، چې د ده ملګرو يوه پښتو شناخته د ده پر مزار درولې ده، قبر يې په شهدای
صالحين کې دئ او دا لومړۍ پښتو شناخته ده، چې د مړي پر سر باندي ليکل سوېده.
غلام محی الدين افغان د وطن د آزادۍ په تحريك کې لويه برخه لرله. د ده پښتو اشعار انتقادي او اصلاحي خواوي لري، د وطن د ميني جذبات پکښې ښکاره دي، په (۱۳۳۲ هـ ق) کال ده يو شعر ويلی دئ چې د آزادۍ او مليت خصوصي جذبه لري. دی له هندوستانه چې د انګرېزانو تر اسارت لاندي و خپل وطن ته راستون سو، دلته که څه هم خارجي استقلال موجود نه و، مګر د افغانستان خلکو د وطن داخلي چاري په خپل اختيار کې لرلې، ده دغه حال غنيمت وباله او شکر يې پر کاوه. مګر د افغانستان د کامل استقلال له پاره يې هم د دې ځای له نورو منورو خلکو سره يو ځای کوښښ شروع کړ او د خپلې سعي نتيجه يې هم د افغانستان د استقلال په اخستلو کې وليدله، او له دنيا څخه ولاړی، په دې يوه غزله کې دغه حال داسي بيانوي :

شکر شکر باغ مو خپل باغبان مو خپل دئ
گل مو خپل بهار مو خپل بوستان مو خپل دئ
سروه خپله بلبل خپل چمن مو خپل دئ
لاله خپل ارغوان خپل دامان مو خپل دئ
نشه خپله خمار خپل پیاله مو خپله
بزم خپل ساقي مو خپل دوران مو خپل دئ
کلی خپل بازار مو خپل وطن مو خپل دئ
ځمکه خپله رود مو خپل دهقان مو خپل دئ
شاه مو خپل گدا مو خپل قاضي مو خپل دئ
سپاه خپل رعیت خپل دیوان مو خپل دئ
غل مو خپل قاتل مو خپل مقتول مو خپل دئ
عسکر خپل مفتي مو خپل زندان مو خپل دئ
شکر شکر بېگانه په میان کي نسته
مدیر خپل اخبار مو خپل دوران مو خپل دئ
عجب عصر دئ افغانه نظر وکړه
ژبه خپله قلم خپل بیان مو خپل دئ

"سراج الاخبار، څلورم کال، دریمه گڼه"

# عبدالعلي مستغني

په (۱۹) قرن کي چي په افغانستان کي د دري ژبي یو ډېر نامتو او مقتدر شاعر تېر سوی دئ هغه یو پښتون او په پښتنو کي روزل سوی سړی دئ، چي ده پښتو شعر لږ ویلی دئ، مگر د دري غزلیات او قصیدي او رباعیات یې په زرو دي او که دغه سړي خپل هنري استعداد پښتو ته
وقف کړی وای نو به یقیناً په پښتو کي د ده آثار نه هېرېدونکي او نه ورکېدونکي وه.
د دې سړي نوم عبدالعلي په قوم هوتك او د ملا رمضان زوی و، چي تخلص ئې "مستغني" و. دی په (۱۲۹۳ هـ) کال د کابل په بالاحصار کي زیږېدلی او د (٦٠) کالو په عمر په (۱۳۱۲ ش) کال وفات سوی دئ، د مستغني پښتو اشعار په سراج الاخبار او د کابل په مجله کي نشر سویدي، د فارسي ژبي د کلاسیکي رویې په پیروي یې پښتو اشعار هم هغه ډول جوړ کړي دي او د دې عصر په پښتو شاعرانو کي هم ځای نیولای سي. د ده د کلام نمونه دا ده :

علم زده کړه ګوره جهل په کار نه دئ
که دي پلار دئ چي جاهل دئ په لار نه دئ
که بې علمه خبردار دئ بې خبر دئ
که هوښیار د زمانې دئ هوښیار نه دئ
که څوك سود غواړي د علم سودا ښه ده
په ګرمي د دې بازار بل بازار نه دئ
که سودا کړي دوکاندار د علم ګوره
با انصافه تر ده بل دوکاندار نه دئ
خوار هغه سي چي د علم نه غافل سي
چي د علم دولت مومي بیا خوار نه دئ
کافران ګوره په علم جهانګیر سول
ما وتا لره دا ننګ او دا عار نه دئ
مړ ویده دواړه یو رنګ وي په غفلت کي
مړ یې بوله هر سړی چي بیدار نه دئ
تر غفلت پورته خونخواره بلا نسته
که زمری څوك خونخوار بولي خونخوار نه دئ
موافق د زمانې سره رفتار کړه
مخالف د زمانې ښه رفتار نه دئ
زمانه وي کله ګرمه کله سرده
تل تر تله په چمن کي بهار نه دئ
که فلك د غیر په کام سو غمګین مه سه
په دې ژرنده همېشه د چا وار نه دئ
مستغني زه دي مین په خپل ګفتار کړم
ستا په شان ګفتار د هیچا ګفتار نه دئ
مستغني یم زما نوم عبدالعلي دئ
زه پښتون یم په بل قوم مي څه کار نه دئ
فارسي شعر مي مشهور دئ په جهان کي
په پښتو ژبه مي شعر شعار نه دئ

سراج الاخبار، څلورم کال، شپږمه شماره
عقرب ۱۲۹۳ هـ ش

# مولوي صالح محمد کندهاری

د دې زمانې له لیکوالو څخه چي په پښتو نثر یې د مکتب حبیبیه له پاره درسي کتابونه لیکلي او هم د پښتو لومړنی معلم و، مولوي صالح محمد کندهاری دئ، چي د پښتو د تحریك د لومړیو خدمتگارانو څخه و او کله کله به یې شعر هم وایه، ده په پښتو مثنوي د مولوي بلخي له مشهوره دري مثنوي څخه په خورا خوږه پښتو ځیني داستانونه نظم کړي وه، چي په اوسني پښتو ادب کي ښه ارزښت لري.
مولوي صالح محمد کوښښ کړی دئ، چي د پښتو نثر خوږ او بې تکلفه ولیکي، نو دی لکه د پېښور مولوي احمدجان د افغانستان په لیکوالو کي د ساده نثر لیکلو پېشقدم سړی دئ، چي د مرگ تر وخته پوري د پښتو په خدمت مشغول و، دلته د ده د نثر یوه نمونه راوړو :

**همت**

هر څوك چي په صدق او رشتیا و یو شي ته متوجه سي تر پایه یې رسولای سي او عاقل سړی له هر څه پند اخلي. یو نوی ځوان و، نظر یې پر مېږي ولوېده چي د غنمو دانه یې په خوله کي اخیستې وه پر دېوال یې خېژوله ځني ولوېده، راکښته سو وایې خیسته پورته یې کړه، بیا ځني ولوېده بیا راکښته سو وایې خیسته. الحاصل چي پنځلس شپاړس واره ځني ولوېده او اخر یې په خپل همت د مطلب و ځای ته ورسوله، ځوان په تعجب ورته کتل فکر واخیست چي مېږی هم په خپل عزم او همت و مطلب ته ورسېد، نو انسان چي بهتر د مخلوقاتو دئ او هر څه کولای سي که په صدق و یو کار ته متوجه سي ایا و کمال ته به یې ونه رسوي، ټینگ عزم یې وکی د علم و تحصیل ته متوجه سو، په لږه موده یې ډېر علم حاصل کی، بلې ! که څوك په صدق متوجه سي هر څه کولای سي.

د مـــــــېږي همت ته گـــــوره
عزم ټینگ کړه زما وروره !

بله نمونه :

"چي کري هغه به اخلي"

هلك په غره کي ناره وکړه هغسي آزانگه سوه، خیال یې سو، چي بل هلك دئ، بیا یې ناره کړه ته څوك یې دغسي آواز یې تر غوږ سو، یقین یې سو، چي بل هلك دئ. ښکنځل یې وکړه هغه خپل ښکنځل یې واورېده، وبېرېدی او په ځغاسته پلار ته راغی ویل یې :
بابا په غره کي یو هلك ما ته ښکنځل وکړه، پلار کیفیت وپوښته، پوه سو ویل یې اې زویه ! که تا څه ویلي وای هغه به دي اورېدلي وای، ولي دي ښه ونه ویل.

نظم
که دي بد ویل و چـــا ته
خـــود به بد وایي و تا ته
که ښه وایې ښه به اورې
او که بد هـــــغه به اورې

# خان عبدالغفار خان
## او د پښتون مجله

کله چي په دنيا کي لومړنی جنګ په (۱۹۱٤) کي شروع سو نو په هندوستان کي د آزادۍ له پاره ډېر مؤثر حرکتونه ورسره پيدا سول. د هندوستان آزادي غوښتونکو خلکو د کانګرس او خلافت او مسلم ليګ په نومو سياسي ډلي جوړي کړي وې او په ټول هند کي مسلمانانو او هندوانو په ګډه د خپل استقلال له پاره سياسي شديده مبارزه په ډول ډول روانه کړې وه، په دغه سياسي حرکت کي د سرحد پښتنو هم پوره برخه لرله.
او لومړی پلا خان عبدالغفار خان او د ده ملګرو په پښتنو کي د اجتماعي اصلاح له پاره يوه ډله د "مجلس اصلاح الافاغنه" په نامه جوړه کړه، چي په پښتنو کې د اصلاح او اجتماعي سمون له پاره يې کوښښ کاوه او وروسته دغه ډله د يو سياسي ګوند په ډول تبديله سوه، چي نوم يې د خدايي خدمتګارانو ګوند و. دې سياسي ګوند د هندوستان د نورو سياسي ډلو په همکاري د آزادۍ په تحريك کي قوي لاس لاره او د سياسي فعاليتونو سره سره يې د پښتو ژبي خپرولو ته هم توجه وکړه. د خدايي خدمتګارانو رسمي ترجمان يوه پښتو مجله وه، چي د اتمانزو څخه په پښتو خپرېده. دې مجلې پښتو ادب ته ډېر ښه خدمتونه وکړل، په پښتو کي د ساده نثر ليکلو او د اصلاحي او سياسي شعر ليکلو ور يې پرانيست او ځيني اصلاحي ډرامې يې هم په پښتو ادب کي زياتي کړې. د دې مجلې په ليکلو کي په خپله خان عبدالغفارخان يو بهترين ساده ليکونکی او سياسي او اصلاحي ليکوال ګڼل کيږي، چي علاوه پر سياسي تاريخ د پښتو په ادبي تاريخ کي هم مهم ځای لري.
عبدالغفار خان د خپل نثر ليکلو اساس پر هغه معيار ايښی دئ په کوم چي پښتانه په خپلو دېرو او حجرو کي خبري کوي. د عبدالغفار خان په نظر کي ليکنه او ادب فقط د خپل اصلي مقصد له پاره چي هغه د خلکو پوهول دي استعمالېږي او د ده د ليك مقصد صرف دا دئ، چي په خپل اصلاحي او سياسي فکر عالم خلك وپوهوي. نو ځکه دی تل په داسي ژبه ليکنه کوي چي په کومه ژبه دی په حجره کي د پښتنو سره ږغيږي، د ده نثر داسي ساده او روان او بې تکلفه دئ، چي هر پښتون ښه په پوهېدلای سي او هم د دغه سبك په تعقيب ډېر نور ليکوال راوتلي دي، چي نور پښتو اخبارونه او مجلې يې نشر کړي دي، لکه (ازاد پښتون) چي ميراحمدشاه نشراوه، يا د خيبر مجله چي د اسلاميه کالج څخه خپرېده، يا (سترې مه شې) مجله چي سيد راحت زاخيلي خپروله.
په پښتونستان کي چي تر اوسه پوري د نثر ليکلو طرز او ډول روان دئ هغه د عبدالغفار خان او د ده د ملګرو لکه ماسټر عبدالکريم مرحوم او قاضي عطاء الله خان مرحوم کړې لار طی کوي.
د عبدالغفار خان مسلسل مضمونونه چي د "زه په جيلخانه کي" تر عنوان لاندي خپرېدل ډېر خواږه او د واقعيت نګارۍ ښه مثالونه دي، دی شاعر او خيالپرست ليکوال نه دئ، مګر د اجتماع د ژوندانه واقعيتونه د يوه ريالیسټ په ډول په ساده ژبه ښه ليکلای سي او هر وخت ادب د ژوند له پاره استعمالوي.
د ده د نثر يوه نمونه دا ده :
اکثره خلك پوه دي مګر د حکومت داسي مدحه خوانان اوس هم شته چي انګرېزانو ته عادلان او رحم دلان وايي، زه د داسي ورونو د سترګو پرانستلو دپاره يوه تازه واقعه ليکم :
تقريباً دوې مياشتي به کيږي چي يوې سرکاري لارۍ چي په هغې کي د پوليسو کپتان د سپايانو او يوه تحصيلدار سره سپور و. دې لارۍ بالامانۍ سره زموږ يوه پښتنه خور په ګاډۍ ووهله او في الحاله مړه شوه وائي چي د دغي لارۍ د ډرايور نه ډېرو خلکو اوربېدلي دي، چي ويل ئې : ما خو لارۍ تېزه نه وهله مګر د پوليسو کپتان او تحصيلدار زه مجبور کړم او ده ويل چي تېز يې بيايه پروا مکوه که څوك ترې لاندي شي. په دغه وخت کي چي لارۍ زموږ دغه مظلومه خور ووهله نو يو څو خدايي خدمتګاران راغلل او لارۍ يې ودروله او وې ويل صبر وکړئ چي د دې واقعې د تحقيق دپاره څو سرکاري افسران راشي

هسي نه چي دوی لاړ شي او سبا دغه ملزمان د دې نه انکار وکړي او بل چا ته بې ګناه ضرر ورسيږي. نو دا صفا ظاهره خبره وه، چي د خدايي خدمتګارانو دا څه جرم نه و، داسي خو همېشه موږ وينو چي چيرته لاړې څوك ووهي نو لاړې او د هغې سورلي تر هغه نشي تلای چي سرکاري افسر نه وي راغلی، مګر دلته د خدايي خدمتګارو او دوی ته د خدايي خدمتګارۍ نوم لويه ګناه وه. پدې وخت کي کميشنر ته تليفون وشو هغه راغلی او د راتلو سره يې بې د پوښتني چي اصله واقعه څه ده څه مصيبت پيښ شوی دئ په خدايي خدمتګارانو سترګکي راښکلې چي تاسي زما لاړې ولي درولې ده، هغوی ورته په جواب کي وايي چي ته خو د لاړې غم اخيستی يې مګر دلته زموږ يوه بې قصوره خور د اجل ښکار شوه لاکن ډپټي کميشنر ته زموږ د خور مرګ څه ښکاريده دا خو څه فرنګۍ نه وه، چي د هغه زړه ته پرې څه صدمه رسېدلې وای دا خو يوه غريبه پښتنه وه نو که مړه شوه څه خبره ده.
مختصر دا چي د دغي مظلومي د مرګ الزام خو په هيچا رانه غی البته دا قدر انصاف وشو، چي خدايي خدمتګار ته د قيد سزا ورکړه شوه.
ما ته ښه په ياد دي چي يو ځل په مردان کي د يو خان د موټر لاندي يوه بوډۍ اوکڼه فرنګۍ راغله او مړه شوه نو هغه مقدمه لوی جج (قاضي) ته وړاندي شوه او تر هغه ځايه ورسېده او په اخر کي د ډېر تکليف او د زرګونو روپو د خرڅېدو نه علاوه د هغه خان څخه په زرګونو روپۍ د هغې فرنګۍ د مرګ معاوضه واخيستله شوه. نو هغه وخت خان خلاص شو، حال دا چي هغه فرنګۍ د کڼوالي په سبب مړه شوې وه او دلته خو د يوې پښتنې ويني بربادي توی شوې او د هغې چي چا همدردي کوله نو هغوی ته بې قصور و تشريفاتو د قيد سزا ورکول شوه دا دئ د غلامۍ او آزادۍ فرق.
فخر افغان د پښتون مجلې څخه

# قاضي عطاء الله خان

د عبدالغفار خان د سياسي حرکت يو تکړه ملګری قاضي عطاء الله خان و، دی د مردان د يوې درنې کورنۍ څخه د سياست ميدان ته راوتلی او د پښتنو په علمي حرکت کي هم د ډېري برخي خاوند و، قاضي عطاء الله خان د (١٩٠٠ م) کال په شاوخوا کي د قانون درس تمام کړ او د وکالت پيشه ئې لرله، مګر د فخر افغان په سياسي ډله کي هم د يو غښتلي کارکن په حيث شامل و او کله چي لومړی پلا په سرحد کي سرخ پوشانو انتخابات وګټل نو ډاکټر خان لومړۍ کابينه جوړه کړه، په دې کابينه کي عطاء الله وزير معارف و، ده د خپل وزارت په دوره کي دوه مهم کارونه وکړل :
اول دا چي په ټول سرحد کي يې ابتدايي مکتبونه پرانيستل.
دوهم دا وه چي د پښتو ژبه يې په ابتدايي تعليم کي داخله کړه او درسي کتابونه يې ورته جوړ کړل.
د قاضي عطاء الله خان د عمر ډېره برخه په سياسي جد و جهد کي تېره سوې او د انګرېزانو حکومت په وارو وارو دی محبوس کړی و، مګر د ده د حبس دوره تر سياسي جد و جهد لا ډېره مهمه وه، ځيني بنديان وي چي په بنديخانو کي لمونځونه کوي او يا قرآن يادوي دا خو به د هغه بندي شخص له پاره ښه وي، مګر قاضي عطاء الله خان په بنديخانه کي هم يو لوی اجتماعي خدمت کړی دئ، ده له انګرېزي مهمو کتابو څخه يو د پښتنو تاريخ په څلور جلده کي ليکلی دئ، چي په پښتو تأليفاتو کي لومړۍ درجه لري، دا کتاب دوې لويي ښېګڼې لري : اول دا چي ژبه يې روانه او خوږه او عام فهمه مګر د ادب پر اصولو برابره پښتو ده. دوهم دا چي د کتاب موضوع هم د تاريخ ليکلو پر عصري معيار برابره ده، يعني دی له ځانه تاريخ نه جوړوي، بلکي د مستندو کتابو په حواله خبري کوي، د پښتنو مفاخر او د پښتونوالي ښېګڼې په ښه ډول په دې تاريخ

کي ساتي، نو دی که له یوې خوا د عصري علومو سره اشنا محقق او مؤرخ دئ له بلي خوا پښتون هم دئ نو ځکه د ده تاریخ د پښتنو په دنیا کي ډېر ارزښت لري، ژبه یې داسي روانه او خوږه ده چي فارسي ژبانان هم له هغې څخه ښه استفاده کولای سي او دا یګانه کتاب دئ، چي د فارسي وانانو په کورنیو کي لوستل کېږي اوس به د دې کتاب څخه یو څو کرښې د نمونې په ډول رانقل کړو:

"د دوست محمد خان د قید په ایامو کي انګرېزي حکومت په هغه باندي د خپل فوځي او مالي طاقت او د انتظامي جاه و جلال د رعب اچولو په غرض هغه ته په کلکته کي خپلي ټولي جنګي او صنعتي کارخانې، جنګي ننداري، جهازونه، اسلحه خانې، فوځي پرېډونه، توپخانې وښودل هر کله چي هغه د هندوستان انګرېزي عدالتونه، محکمه، بلدیات او دفترونه، د پولیسو انتظام او د امن و امان واقعات او حالات ولیدل نو د هغه په زړه کي ربښتیا د فرنګیانو د قوم یو لوی رعب او هیبت او خوف کیناستو او د خپل قوم د خلکو نه یې یوګونه په زړه کي حقارت پیدا شو، تر اوسه پوري د پرنګیانو پولیټکل ایجنټان (سیاسي نماینده) په دې پالیسي باندي پابند دي او خودمختاره علاقو نه چي کومي د هغوی د لاندي دي د هغه ځای لوی لوی والیان، ریاست، ملکان او خانان ښکته ملکونو ته بیایي چي پر هغوی باندي د خپل حکومت د زور او طاقت او د څه انتظام رعب او دبدبه کینوي، هغوی د خپل فوځونو پرېډونو تماشې ته د توپ او ټوپکونو او د کارتوسو جوړولو کارخانې ته بیایي او د دې غرض دا وي چي د هغوی په زړونو کي د فرنګیانو دومره وېره کیني، چي بیا هغوی د مقابلې او د مخالفت خیال هم په زړه کي رانه ولي.

څه وخت چي دوست محمد خان کابل ته واپس راغلو، نو هغه به د خپل قوم د مشرانو په مخکي هم کله دا شان خبري وکړې چي د هغه نه به دا معلومېده چي هغه ته د خپل قوم تهذیب، استوګنه او اخلاق د پرنګیانو په مقابله کي ډېر لاندي ښکاري. هغه به په دې سلسله کي د پرنګیانو د طریقه زندګي ښه او د خپل قوم د ټولو عادتونو بد ویل، ورو ورو د افغانستان په ټولو خودمختاره قبایلو کي دا خیال پیدا شو، چي د دوست محمد خان په زړه کي د هغه د قید په سبب د پرنګیانو رعب ناست دئ او ځکه هغه په هره موقع کي د هغوی مدحه وایي، مګر د دې په مقابلې کي چونکه دې قبایلو انګرېزي فوځونو سره ډېري مقابلې کړي وې او په جنګونو کي یې هغو له شکستونه ورکړي وو نو د هغوی په زړونو کي د پرنګیانو خلاف نفرت او حقارت پروت و، له دې کبله د دوست محمد خان دا قسم خبري به په هغوی باندي بالکل ښې نه لګېدې او هغوی ورو ورو په دې سبب هغه ته سپك کتل شروع کړل، اکبر خان هم د نورو عامو پښتنو په شان د انګرېزانو نه متنفر و او په دې خبره کي د هغه او د هغه د پلار په رایه کي ډېر اختلاف و، هغه به دا ویل چي اګر که پرنګیان د جنګ او د حکومت په انتظامي امورو کي ډېر ښه ماهران دي مګر هغوی د نورو ملکونو آزادي په زور باندي سلب کوي او د هر چا په زړه کي د خپل رعب او خوف کینولو کوښښ کوي، په دواړو کي د دې اختلاف رای نتیجه دا شوه، چي هر کله دوست محمد پرنګیانو سره په هر حالت د دوستۍ او د مصالحت تعلقات اوسېدل غوښتل نو د اکبر خان دا منشا وه، چي هغوی سره په هر حالت دوستي ساتل او په هغوی باندي په قومي معاملاتو کي پوره اعتماد کول د پښتون قوم تباه کول دي. په دې رای کي محمداکبر خان په حقیقت کي د ټول قوم د رای ترجماني کوله او هم دغه وجه وه، چي د خپل پلار په مقابله کي هم هغه ته د اولس په خلکو کي زیاته هر دل عزیزي حاصله وه او د هغه په خبره باندي به خلکو په نسبت د دوست محمد خان زیات غوږ ایښوده. د محمداکبر خان په زړه کي دا شك پای ته رسېدلی و، چي پرنګیان به یو ځل بیا په افغانستان کي د خپل اقتدار د قایمولو کوشش کوي ځکه چي د هندوستان انګرېزي مقبوضاتو ته د روس د سرحد رانزدې کېدل هغوی په هیڅ شان نه شو برداشت کولای او په دې کوشش کي همېشه شپه او روځ مصروف وو، چي د روس ټول ګاونډي حکومتونه دې زیر اثر وي. پس اکبرخان هغه وخت په دې کوشش لګیا شو، چي هم د قوم او هم د فوځ په سپایانو کي دا خیال پیدا کړم چي د پښتنو د آزادۍ د برقرار ساتلو دپاره دا ضروري ده، چي په یوه مناسبه موقع کي د انګرېزانو دا شان زور مات کړی شي، چي هغوی بیا په افغانستان باندي د فوځي پېش قدمۍ خیال پرېږدي".

# ماسټر عبدالکریم

د پښتنو د سیمي په سیاسي بیداري کي د خدایي خدمتګارانو له ډلي څخه د ماسټر عبدالکریم سیاسي او ادبي شخصیت هم د هېرولو نه دئ.
نوموړی د چارسدې په اتمانزو کي په (۱۹۰۸ م) کال زېږېدلی او د پلار نوم یې منتظرخان و، په (۱۹۳۰ م) د ډهلي په جامعه میله کې خپل تحصیل پای ته ورساوه او په اتمانزو کي د آزاد سکول سرمعلم سو، د ده ژوند د یوه معلم په ډول شروع سو خو دی یوازي معلم نه و، بلکي یو سرګرم سیاسي سړی هم و.
د آزادۍ په جنګ کي لومړی سپاهی او د سیاسي لیکوالو په ډله کي هم پیشقدم و، او په وارو وارو په خپلو سیاسي فعالیتونو کي محبس ته تللی او عمرونه یې په قید کي تېر کړي وه، څو چي په پای کي په همدغو بندیخانو کي مریض سو او له دغو ناجوړیو څخه د ځوانۍ په عمر تر دنیا تېر سو.
ماسټر کریم د پښتون مجلې د ننني دنیا تر عنوان لاندي ډېري سیاسي مقالې لیکلي دي، دی یو سیاسي او اجتماعي لیکوال په دې معنی ګڼل سوی چي په خپله هم تر مرګه پوري یو رښتینی د اجتماع خدمتګار او سیاسي سړی و. د ماسټر د نثرونو یوه مجموعه چي "ځولۍ ګلونه" نومېږي په (۱۹۵۷ م) کي له پېښوره نشر سوې او د ده د نثر ښېګڼي دا دي :

دا چي سادګي لري، یعني په داسي ډول خپل مطلب لیکي، چي عام خلك په وپوهېږي او په نثر کي یې ډېر لږ د نورو تاثیر ښکاري او سړی داسي ګومان کوي، چي د چارسدې په بازار کي دوه پښتانه خبري کوي.
د ماسټر نثر د پردیو ژبو نامانوس لغات نه لري او د عربي یا فارسي یا اردو هغه لغتونه استعمالوي، چي په پښتو کي رواج لري.

د ماسټر کریم د نثر نمونې :

**بې ګناه**

داسي خو چي به څوك د جېل په تورو تنبو را دننه شو ما به ترېنه تپوس اوکړو، چي دا په څه، نو ویل به یې خدای شته اول به وې چي نه خبر نه اتر خالص په دښمني راسره شوي دي، ولي په نوروز غریب خو ډېر زیاتی شوی و، تش په دریو مړو کي پوره لس کاله راغلی و او مړي یې هم خپل مړي وو، یو مړی یې سکه د تره ځوی و او خور چي غله کاسره نه وي نو هم څوك وژني او ماشوم خوریې له به څنګه د چا لاس ورشي، پښتانه هسي بخت بد نام خلق دي، بادام کاکا څه د واره د لاسه مړ شو، چي بس اوس به خلق نور څه نه کوي. خو تره، تربور به وژني، تربور خو سړیه د سړي متې دي په غم ښادي کي ورته همه جا ولاړ وي.
نوروز ګوره ډېر قابل سړی و، د مزکي نه یې ځان خلاص کړی وګني په زمینداري د نوروز نه څوك ښه نه پوهېدل او ولي جایداد څه د خپلي حیا نه ګران دئ څه؟ چي خلقو به په جواري کي شرمولو نو خود به یې مزکه خرڅوله او چرس؟ دا خو د سړي غم غلطوي او چي سړی خدای په چرسو راواړوي شپږ اته چیلمه د ورځي وهي او کار کسب نه کوي. نو اخر دا پیسې به د کومه راځي، د چا کور کي څه د روپو مشین خو نه وي لګېدلی، چي بس روپۍ دي چي جوړېږي به، او چي خدای د سړي په کمي شي نو خود به ځان د ګور کفن نه خلاصوي د پلار نیکه هډوکي به خرڅوي او پوکلی برغی به ګرزي.
د نوروز د تره ځوی ښه په معاش مزو کي ګرزېدو شپېته منه جوار، څلوېښت منه غنم، شل څټي ګوړه به یې اوچته کېده، ښځه یې هم د خپل کاکا لور د نوروز خور وه، نه پخپله چنبړخوره وه او نه یې خاوند بې ځایه خرڅ ته پرېښودو، دوه درې لنګي به یې هر وخت په اخور ولاړې وې، که ډېر غوړي، ډېر بسیار پیو مستو کي به یې غړغړې کولې، ژرنده، جوړه، روپۍ، کالي هر څه سل سل وو، نوروز چي خدای څه وخت په لعنت کړو نو ده به پکښې هم کله ناکله د وسه وهله خو چي یوه ورځ یې د ماشوم خوریې د غاړي اوړې کوزه کړه او په جواري کي یې پرېښوده نو د تره ځوی ي بهر په هوجره کي راګیر کړو، حیا یې

ترینه ټوله کړه، کرېوان یې ترینه کوز واچولو او ورته یې ووې، چي په کوڅه مي رانه شې.
وايي د جواري ډېر بد تا و وي او لا چي سړی په هوجره جماعت کي د خلقو مخکښي ملامته شي او بیا د خپل تره، تربور د لاسه نو راشه که یې ګوري. شپه له د چم ګاونډ د خلقو ډزي د غوږه شوې او چي صبا شو نو نوروز ږیره په موټو ویستله وئیلې چي ورور، خور او ماشوم خوریی مي بېګاه چا ظالمانو اوویشتل د نوروز د تره ځوی یو بې ازاره غوندي بنیادم و د چا ملاسته غوا یې پاسولې نه وه. د کلي په پروجنبو خو هډو د سره پوهېدو نا، بس د مزکي یو غویی و او لکه د جهانګیر شادولا کاکا دی یې یو خپل کور پېژندو او بل خپل پټی، نو د مرګ ورسره د چا څه و، جنازې اوچتي شوې، مړي سنبال شوو، نوروز په زړه کي پټ پټ خاندل وئیلې ماموته ! بیا دي موته څه لوی فضل درباندي خدای اوکړو ښایسته ډك په ډك کور درته سره د شپېته جریبه مزکي پاتي شو، بې د خدایه او بې د نوروز نه نور د مړو غریبانانو څوك وو؟ ته راځه راځه نوروز ته لاس نیوه کوه، نوروز خان د مشرئ په ځای ناست هر چا سره به یې د خبري دنبال رانیوو، چي خدای دې اوبښي او ښښلي به یې وي په غریبانو ډېر لوی ظلم شوی دئ سخات اووته، خیرات ورکړی شو فقیر فقرا خپله برخه هم یوړه، شپې له نوروز د ماښام پولاو ورکړ غوړي یې لکه د اوبو اوبهول پر دې غوړ هسي هم لکه د ټکوري شلیږي او چي داسي بې کراوه چا ته پاتي شي نو هغه یې په قدر څه پوهیږي، زر خو په هغو خلقو ګران وي چي ګټلي یې پخپل ځان وي او چي د ملا صاحب د څنګلونو نه غوړي اوبهېدل نو د بیلمازه غلچکي او جوارګر نوروز نه ښه سړی په کلي کي بل چرته و؟
څوکیدار لاړ تاڼه کي رپوټ اوشو څه د دېواله د سر څپیاکه خو نه وه د رب العلمین روغ درې تنه اشرف المخلوقات مړه شوي وو غونډ ربوبیت خدای خبر چي څومره موده لګیا وو دې خړي مزکي او دې شین اسمان نه،پوهیږم چي څومره سنبالي کړي وو، نوروز څه خبر وو چي د یو پلیت مطلب دپاره ده څومره لویه ګناه کړې وه، خو رښتیا چي پټ غل باچا وي د شپې مرګ و د موقعې ګواه شاهد هم نه و، بل نوروز له څه لږ مال خو په ګوتو نه وو ورغلی. شپه په شپه په تاڼه تحصیل د "سپین ږیرو" جرګې اوګرزېدلې، مقدمه خو افسرانو ډېره اوزنګوله خو اوښ چا چرته په بډه وهلی شو، نوروز جرګه شو، په دویم ګذار بیا په جرګتیانو د "سپین ږیرو" جرګې اوشوې او نوروز په دریو مړوکي ایله لس کاله قید شو، دی لا په دې هم خفه و، وئیلې خپل مړي مي وو، د بل چا راسره څه کار وو، ګوتي یې مروړلې، وئیلې که زه خبر وی چي د مسلم لیګ باچایي را روانه ده نو لږ وار به مي کړی و، د تره ځوی به مي نور حساب هم جمع کړی وو، څوک شمس الحق به مي چا قیوم له کټلي وو، نو سپین باز به ګرزېدم. د مسلم لیګ په حکومت کښي به مي په مقدمو دومره ډېر څه لګېدلي هم نه وو، تاڼو بېل سپین کړم، قچړوکي خو خلق په لږ څه نه رضا کیږي او جرګتیان خو د سړي نه سمه څرمن وباسي، اوس خو د خدای ؏ فضل دئ، د مسلم لیګ حکومت خو څمونږ خپل حکومت دئ، غونډ د محمد ۲ کلیمه ګو یو، غټ افسر وي او په لږ څه رضا شي، دا یو نیم بدنیته هسي د مسلم لیګ بد غواړي.
نوروزکال نیم په جېل کي ډېغري اوخوړې خو ډېر ژر پرې د جېل افسران مهربانه کړل، ټیمکی غوړي، بورئ نیمه اوړه، شپږ اته چرګان به په بهر دنیا د چا د نظره څه راځي، ناولي په جېل دننه ډېر لوی برکت دئ. ورانه په هغه چا شي چي په جېل دننه شي او د ملاقات درك یې نه لګي د جېل په ژبه کي د قیدي لیدو ته ملاقات نه وايي، ملاقات هغه وي چي د قیدي خپلوان د جېل د چاوړوکي لوی افسر سره د هغه په کور کي درنه ځولۍ او ډکه منګل ووینی. کال چي تېرېده نو نوروز د جېل وړوکی، لوی افسر هر یوه ته ځان ښودلی وو، نوروز د اسپتال په لنګرکي د لنګریانو مشر (چارجي) لګېدلی وو، او ښه دروند پر یې هم چلېدو، په جېل دننه د اوښیار سړي خود ډېر ژر سر له راشي، او پنځه واړه بیا پخپله خوله نه ورمنډي، دی پوه شي چي د جېل دا تنګه تُرشه دنیا یواځي د ده نه ده، دې کښي ورسره د شین پوښ نه واخله تر صاحب بهادره پوري ټول شریک وي، نوروز به ټولو افسرانو ته خپله خپله نصیبه ور رسوله، په جېل دننه سړی ځان له هم ښه ګلدار شي، د جېل نه بهر چي کوم څېزونه ستا دپاره روا وي، هغه په جېل دننه ناروا شي، دلته خو هر څه بُرو خو عادت نه برو، نوکه بهر چا په خطا هم غلا نه وي کړې په جېل دننه به یې بې د غلا نه ګذاره چرته کیږي ځکه چي د کلونو عادتونه خو به ارو مرو پوره کول غواړي، نو خود به یې په غلا پوره کوي، بس په لږه موده کي د سړي نه پوخ غل جوړ شي نن سبا ځیني ډېر سم خلق څه د کلي د پروجنبو او څه د حاکمانو د ښه انتظام د لاسه په ناچاري جېل ته لاړ شي ولي ځار شم په جېل دننه د افسرانو د ډېر ښکلي بندوبست نه چي د سم دم سړي نه مکمل بدمعاش جوړکړي او چي بهر راځي نو په ځای د دې چي څه سړیتوب یې زده

کړی وي په کلي اولس کي د خدای د مخلوق دپاره یو لوی افت جوړ شوی وي او چي د نوروز غوندي حلالي جېل ته لاړ شي نو د هغه نه خو څه سم شی جوړ شي، ځکه خو د نوروز د پړ سره سره د چرسو او اپیمو ښه غرق دوکان هم چلېدو.
خبره دا ده چي دنیا کور په بهر د شته مندو ده، نوروز له خدای په بدو کي ښخ کړي وه هر ځای به ئې بې کړاوه د سوك د سره مونده خو دا وه چي هر چا ته به یې لاس سوري ساتلو، کال نیم د جېل معافي کال دوه د پاکستان معافي او ډېره د جېل د افسرانو مهرباني، نوروز چي په جېل زړه کېښوده نو قید یې خلاص و، د مړو لا د چا په شان د تختې اوبه هم نه وې اوچي شوي چي "بې ګناه" نوروز د خپل ښه ځلمیتوب په برکت پوره په دریو مړیو کي ایله پنځه کاله پس کور ته راغی.

## په افغانستان کي
# د سياسي شعر نمونه

دمخه مو وويل چي د لومړي جنګ په وخت کي د سراج الاخبار او د اخوان افغان د ډلي په واسطه د افغانستان د کامل استقلال تحريك په پښتو ادب کي هم ښکاره سو او له همدغه وخته څخه په پښتو شاعري کي اصلاحي او سياسي افکار داخل سوه. له هغو اشعارو څخه د مرحوم مولوي صالح محمد قندهاري يو شعر دئ، چي د بلبل ژړا نوميږي.
دا سړی چي دمخه يې د پښتو په نثر کي د خدمتونو بيان وسو د فيض محمد زوی په قوم هوتك او په (۱۳۰۷ هـ ق) د کندهار په ښار کي زيږېدلی او په (۱۳۳۹ هـ ش) کال په کابل کي وفات سوی دئ. دې سړي لکه د پښتو د نثر درسي کتابونه چي تأليف کړي وو ښه او روان شعرونه يې هم ويلي دي.
دی په (۱۲۹۹ هـ ش) کال د طلوع افغان د جريدې مؤسس او په کابل او کندهار کي د ابتدايي مکتبونو لومړنی مدير و، کله چي په کابل کي په افغاني ځوانانو کي د استقلال د ګټلو فکر خپور سو نو د هغه وخت حکومت د خپلو منافعو له پاره دا نه غوښته، چي د انګرېزانو له سياسي تسلط څخه ځان وژغوري، مګر په خلکو کي د خپلي آزادۍ له پاره تاوده جذبات موجود وو، په هغه وخت کي افغانستان فقط يو اخبار درلود او هغه هم د حکومت تر سخت سانسور لاندي و، نو هيچا داسي نه سوای کولای چي په ښکاره د استقلال غوښتنه وکړي.
مولوي صالح محمد د ملت دغه د زړه خواهش او آرزو په يوه منظومه کي په سمبوليك ډول نظم کړه، چي د يو ګرفتار بلبل له خولې يې د آزادۍ له پاره د ده د زړه هيلي تصوير کړلې او هم دغه موضوع په فارسي کي ښاغلي داوي هم نظم کړې او نشر کړې وه.
دغه دوې منظومې په پښتو او فارسي په سراج الاخبار کي خپرې سوې او په هغه وخت کي يې اثر دوني و، چي په کندهار کي به ښځو هم لوستلې او د انګرېزي استعمار پرکار يې هم دوني اثر کړی و، چي د هغه وخت حکومت يې له دغسي نشرياتو څخه منع کی او کله چي په سراج الاخبار کي يوه سرمقاله د حی علی الفلاح تر عنوان لاندي د افغانستان د کامل استقلال په غوښتنه کي نشرېده نو امير حبيب الله خان هغه مقاله سانسور کړه او د سراج الاخبار مدير يې تهديد کی، د مولوي صالح محمد دغه تاريخي منظومه په دې ډول ده :

| يو سحر زما تر غوږ سوله بلبله<br>چي بندي سوم د صياد له سخته دله | | چي قفس کي يې ژړل دا يې ويله<br>ولي نه پوښتي څوك حال زما يو له بله |
|---|---|---|

| ولي نسته بې فغانه کار و بار زما<br>ولي حبس ابدي راغی په وار زما |
|---|

| نه محرم چي د زړه حال ورته بيان کم<br>نه ملګری چي چمن ته يې روان کم | | نه مي وس چي خبرداره بلبلان کم<br>بيا بيان ورته د ګل و د ريحان کم |
|---|---|---|

خپل ډك زړه د ارمانو ورته خالي کم
ټول مرغان د چمنو په ځان حالي کم

چا ته وژاړم پر چا باندي فریاد کم
چا ته وګورم په څه شي زړګی ښاد کم

چا ته خاوري پر خپل سر باندي باد باد کم
د صیاد له لاسه چا ته عرض و داد کم

څه راوسوه چي د تور فقس بندي سوم
نه خلاصیږم په دا بندکي ابدي سوم

ولي زه له خپله سیله راجلا سوم
ولي زه په ویر اخته په واویلا سوم

ولي زه له خپل وطنه راجدا سوم
کور و کلی مي سو پاته خوار تنها سوم

کم ظالم کړمه بندي خدای دې بندي کي
خدای دې زما غوندي اخته په جدایي کي

اوس به زه لکه ها نور په هوا تلمه
پر غنچو به د ګلانو مسېدمه

په هوس د آزادۍ به بالېدمه
روځ په روځ به غوړېدمه لوېېدمه

چا بندي کړم خدایه تې په ځان اخته کې
په قفس کې د زندان جګرسوخته کې

| اوس به ګرزېدم آزاد په چمنو کي<br>ښه به ګرزېدم خوشحال په شګوفو کي | | الوتم به په صحرا او په باغو کي<br>ولي اوس يم په غمو په انديښنو کي |
|---|---|---|

چي بندي دي د قفس کړمه صياده
خدای دي ما غوندي بندي کړه اې آزاده

| الغرض چي ده وهلې دا نارې<br>چي ناګه د چمن باد راغی دکښې | | د قفس له لاسه و په غلبلې<br>چي پر ونښت دا يې وواته له خولې |
|---|---|---|

مګر دا باد د وطن د خوا راغلی
چي زما صبر و آرام يې راڅخه وړی

| يو ساعت متفکر و حيران پاته<br>چي بيا باد د چمن راغی د ده خوا ته | | نه يې شکر و شکايت کاوه و چا ته<br>اه يې وکيښې عرض يې وکی خپل مولا ته |
|---|---|---|

لکه زه هسي بندي سې اې صياده!
د وطن په جدايي سې اې صياده!

| زه چي فخر د چمن زېب د بوستان وم<br>د باغو د ښو باغچو روح روان وم | | نغمه خوان د خپلي ځالي او اشيان وم<br>د سروګلو پر ښاخو به نغمه خوان وم |
|---|---|---|

د پولادو په پنجه کي دي بندي کړم
د هر کس  و د ناکس دي ریشخندي کړم

زه به تل د باغ پر سر ښه په هوا وم
د ګلانو پر سرو به په خندا وم

ښاخ پر ښاخ به بیا په څه ناز و ادا وم
په ځالۍکي به وم ناست یا په صحرا وم

نه بندي وم د قفس نه مي هیڅ غم و
نه مي اوښکي بهېدې نه مي ماتم و

چي سحر به زه له ځالي په هوا سوم
چي له پورته به پر ګل باندي راتا سوم

په ګلشن کي به د عشق نغمه سرا سوم
و سمن و یاسمین ته به ګویا سوم

آیا څوك لري دا عیش و عشرت نن زما
چي ندیم مي ګل خانه ده په چمن زما

د نرګس او شګوفو ګرم بازار دئ
په چمن کي د بلبلو چورهار دئ

هغه ګل هغه پسرلی هغه بهار دئ
د طوطیانو په ګلشن کي چغهار دئ

پر ګلانو الوته کا په خندا
زه بندي یم د قفس او په ژړا

| زړه مي ډك دئ سره چوي له ارمانه<br>نور مي مه پرېږدې په دې ځاى كي سبحانه | | خدايه ژر مي خلاصوې له دې زندانه<br>بيا مي ورسوې ژر تر خپل بوستانه |
|---|---|---|

که دي زه يمه قفس ته پيدا کړى
بيا وزر دي ولي ما ته دئ راکړى

| څو تر څو به يم په اه و په الم كي<br>څو تر څو به يم دا رنګه په ماتم كي | | څو تر څو به يم په دې جوروستم كي<br>څو تر څو به په ژړا يم او په غم كي |
|---|---|---|

چي اميد مي د خلاصۍ نسته هيڅكله
نو بهتر دئ مرګ تر دې ژوند يو په سله

| زما خيال سو چي د غم متحمل سو<br>ويل اه چي د صياد لا تغافل سو | | بيا نو چپ سو يو ساعت په تامل سو<br>بيا يې ناري كړه همرازه د سورګل سو |
|---|---|---|

ځان که مړ چي له ذلته نجات مومې
په ګوښه کي د عدم به حيات مومې

| ولي ځوان يم او د ځوان وي د ارمان مرګ<br>په هزار ځله بهتر دئ تر زندان مرګ | | که څه نه دئ ښه و ماته په دا شان مرګ<br>خو د ژوند له پاره ښه دئ ناګهان مرګ |
|---|---|---|

| چي دا هر سهار خپل مرګ په قفس وینم<br>ولي نه مرم چي به بیا زه قفس وینم |
|---|

| په حسرت او په افسوس یې دا ویله<br>د قفس و دروازو ته یې ځغستله | | وګلشن ته یې کتل بیا یې ژړله<br>لار یې نه وه وزرونې سرپوله |
|---|---|---|

په هـــــــوا سو سر یې ونښت له قـــــــفسه
ویني توی سوې سوړ پوړ ولوېد له هوسه

| سر تر پایه په سرو وینوکي غرقاب و<br>یا بېهوښه یا پر هوښ په اضطراب و | | ځان بایللی زړه زخمي حال یې خراب و<br>چي پر هوښ به سوګویا په دا اسباب و |
|---|---|---|

| سر مي بایلو په هوا د آزادۍ<br>شکر شکر سوم فدا د آزادۍ |
|---|

یا
په هـــــــوا د آزادۍ مي وزر پرې ســـــــو
شکر شکر آزاد سـوم که مي سر پرې سو
یا
ښه چي زه د آزادۍ په هوا مړ سوم
نه چي پاته په ذلت د تهولو پړ ســوم

صالح محمد، اومه د دریمي خور، سنه ۱۳۳۵
صفحه ٦، شماره ۲۰، سال ٦، سراج الاخبار افغانیه،
۲ جوزا، ۱۲۹٦ ش، ۲۳ می ۱۹۱۷ م

# مخلص کندهاری

حاجي ولي محمد مخلص د (۱۲٦۰ ش) کال په حدودوکي دکندهار په ښارکي زیږېدلی او مروج علمونه یې همدلته لوستي او بیا په سیاحت د هندوستان او عربو په منطقوکي ګرزېدلی و. په (۱۳۲۰ ش) کال د (٦۰) کالو په عمر په کندهارکي وفات سوی دئ.

نوموړی علاوه پر پښتو او فارسي په عربي او اردو او انګرېزي ژبو هم پوهېدی، مخلص یو فکور او نقاد سړی و، د پښتو اشعارو دېوان یې تر (۳۰۰۰) بیتو رسیږي، غزل، رباعي، مخمس او د شعر نور اقسام لري، مخلص د پښتو په نوي ادبي حرکت کي لویه برخه لري، دی شاعر و په حقیقي ډول د زمانې ترجمان او عالم او لیکوال او نقاد و، ظریف سړی و او بالآخره مخلص و.

د مخلص نقاده او هم ظریفه طبعه مشهوره وه، په کندهارکي خپلو ښاریانو د یوه دوست او رهنما په ډول پېژانده.

د خلکو سره خواخوږی ملګری و، هر ځای او هري طبقې دی په درنه سترګه لیدی، په ادبي جرګوکي صدرنشین و، د عوامو په مېلو او دېروکي محبوب و، خوږې خبري او د ظرافت ویناوې هر چا خوښولې.

په اجتماعي او علمي خلکوکې خپل شخصیت ښووی، د موسیقۍ سره یې مینه درلوده اوکله کله به یې خپل خواږه شعرونه د موزیك په پردوکي ږغول، فصیحه او بلیغه وینا یې درلوده. د دین او اجتماع په اسرارو خبر و، د عصر او تمدن د ښېګڼو مبلغ و، د اسلافو زاړه مآریث یې د قدر په سترګه لیدل. مخلص (۳۰) کاله پخوا په پښتو ادب کي د انتقاد روح پیدا کړ، دی طبعاً د ظالم او اجتماعي ناوړو مخالف و، د خلکو خواخوږی و او پخپل ادب کي د اداري فساد او عنعنوي ناوړو پر خلاف یې تکړه جهاد شروع کړ.

د رشوت خور او ظالمانو دښمن و، د اجتماعي بې عدالتیو او پرسېدلي ثروت پرده څیرونکی و او د بدو عنعنو او رواجونو سخت مخالف و.

د مخلص شعر د دغو اجتماعي ناوړو په مخکي یو د اجتجاج آواز و او د خوږمن او خواخوږي زړه د یو شریف احساس ترجماني وه. خو دغه تند احتجاج د خلوص او ورورګلوۍ او همدردۍ سره ملګری و، دی وایي :

اې زما زړه ته راتېر وروره پښتونه!
ولې پروت یې په غفلت کي سرنګونه!
په کار نه دي دا اوږده درانه خوبونه
پاځه ویښ سه په همت وکړه کارونه!

کــــــــــړه ودانه د وطن خــــــــرابه خونه

ته پخپل وطن کي خپل یې پردی نه یې
د سر سترګي یې د پښو مو اغزی نه یې
په خدمت د قوم بادار یې مریی نه یې
اوکه نه موږ ږغ کوو چي سړی نه یې

راسه چــیري ځي خالي کوټ او پتلونه

که خاین او نفس پرسته رشوت خور یې
یا آزارکوې رضا په شر و شور یې
یوه ورځ به شرمنده ولاړ مخ تور یې
یا به پاته وي دنیا ته به په ګور یې

ډېروه یې خدای دي خسف که قارونه

د مخلص شعر د عصر هنداره ده، او په هغو واقعیتونو اړه لري، چې روزمره د خلکو په ژوندانه کې لیدل کیږي، د ده له نقاد نظره جزئیات هم نه پټیږي او د پښتنو هغه لوړي خبري چې بالآخره غرور ته رسیږي په سخته ژبه انتقادوي او دوی خپل اوسني کښته والي ته ملتفت کوي :

اې پښتونه پروت یې ناخبر پر څه
هسې ګرځې بې پروا اوتر پر څه
یوه ورځ تر بله سوې بدتر پر څه
لکه وچه ونه بې ثمر پر څه

بې حاصله وایې فــــــــــیل او غــــــر پر څه

په دغو اصلاحي انتقادوکي حتی هغو اوضاعو ته هم ګوته نیسي، چې خلك په بازاروکي د ترافیکي قوانیو مراعات نه کوي او د خطرناکو ګاډیو په مخ کي ځغلي راځغلي :

چي لس کاله یې دروښوده عاقله
چي پر لار سم ځه له دې مه سه غافله
هدایت د حکومت ولاړ بې حاصله
د پولیس نوکان دي وایسته جاهله

ته لا درومې پــــــر لار لــــر و بر پر څــــــــــه

مخلص په آزادو پیشو ژوند تېراوه، کله نجاري، کله سوداګري اوکله دوکاندار و، اوکله به په وړه سوداګري په کلوکي ګرزېدی هم به یې حلاله روزي ګټله او هم به یې کلیوالو ته د ژوندانه لاري چاري ښوولې او د حکومت مامورین اوکاردارا‌ن به یې د خلکو خدمت ته رابلل او د بدو اعمالو نتایجو ته به یې په دې ژبه ملتفت کول :

له حسده که ولاړ سې خوك زهیر کړې
غریب سړی په خاوروکي خمیر کړې
یا نسبت چا ته په لفظ د تصغیر کړې
موږ دي څه کوو لالا ځان به تحقیر کړې

خوار بنده يې ځان دي جوړ کړ اسمان ولي؟

د بد تخم ښه حاصل نه اخيستل کيږي
مکافات د عمل هر چا ته رسيږي
نن که ظلم پر مظلوم وکړې تېرېږي
نتيجه يې آخرت ته پاته کيږي

شرموې ځان د رشـــــــــتيا پر ميدان ولي؟

د عيال رازق دي خدای دئ بې همته!
راسه تېر سه د مردار منحوس رشوته!
ته بې واخلې بل يې وخوري بې محنته!
د قيامت جواب پر تا دئ بې غيرته !

خـــــرځـــــــــــوې د بل دپاره ايمان ولي؟

مخلص ډېر دغسي مخمسونه او مسدسونه لري، چې ټول اصلاحي او انتقادي دي، مګر د ده په شعر کي په سوو مردف څلوريځ شعرونه ډېر درانه او خواږه دي هره څلوريځه يې يوه بېله اجتماعي او اخلاقي موضوع ده، چې ټول په ژوندانه او اجتماعي حالاتو اړه لري، چې مثالونه يې دا دي :

د نفاق نتيجه :

هغه قـــــوم به تل اخــــــته وي په بد رنځ
چي نفاق توره بلا يې وي تر مــــــــــــنځ
سره غـــونډ د سر وبښـــــتان چي ښلوي
خدايه ! ماته لا ړومبی کړې هغه ږمونځ

د خودخواهۍ نتيجه :

ماته ســـــــــوه يوه هــــــنداره په حـــسرت
ټوک ټوک پروته وه په خاورو کي لـت پت
ځان لــــــــيدونکي تې په حـــــال سره ويل
راته وګـــــــــورئ په ســـــترګه د عـــبرت

تيك مغزی :

ولي لږ لوړتيا د وخت کړي هسي شوخ
چي په تيك مغزي دي زړه د هر چا پوخ
ليده سوي دا رنګ ډېر چي سي ښــکار
غـــلي غـلي ځي په لاره باندي چـــــوخ

لږ ظلم او ډېره وراني :

چيرته خدای که دي تر نورو کړي لږ غټ

نو په ظلم قـــــــــورمې مه غـــــواړه پر بټ
څو ســــــتا نس و ته درلـــــــويږي تر هغو
زرکـــورونه به خـــپاره سي لـــــــکه مټ

د پزي پرچ :

ته چي تل کړې پر غــــــريب د پزي پرچ
له تريخوالي ستونی سوځي لکه مرچ
يوه ورځ به په ســـــوکه د کــــــوم مېړه
په غوړ واورې د مـــغزي د هډو خـرچ

# د پښتونستان
# مشهور شاعران او ليکوال

دمخه مو وويل چي په پښتونستان کي سياسي شعور د لومړي جنګ په زمانه کي د هندوستان د آزادۍ د تحريك سره پيدا سو او پښتنو د هندوستان د آزادۍ په تحريك کي د خلافت او کانګرس او مسلم ليك د ډلو سره همکاري درلوده.
مګر کله چي هندوستان آزاد سو او د پاکستان په نامه يو بېل مملکت هم د پښتنو په ګاونډ کي جوړ کړ سو، نو دلته د پښتنو ليکوالو او پوهانو د خپل ژوند له پاره يوه جلا نظريه پېش کړه او هغه دا وه، چي بايد پښتانه د پښتونستان په نامه يو مملکت ولري، دغه حرکت پر پښتو ادب يو نوی اثر وکړ او ليکوالو د پښتو ادب مخه و دې خوا ته وګرځوله، چي په پښتنو کي د يوه آزاد او مستقل ژوند احساس پيدا کي، نو ځکه د پښتو ادب په دغه زمانه کي له درو خواوو څخه مطالعه کولای سو :
اول - شعر : چي اکثرو شاعرانو داسي اشعار ويلي دي، چي د پښتنو مظلوميت او د دوی د استقلال د حقوالي څرګندونه وکړي او خلك و دغو حقايقو ته متوجه کړي.
دوهم : اخباري نثر هم په مجلو او اخبارو کي د دغه مقصد له پاره استعمال سو او ليکوالو سياسي او اجتماعي مضمونونه وليکل، چي له دې پلوه هم د پښتو د نثر ليکلو لمن پلنه سوه.
دريم : د پښتنو ځيني ليکوال داستان ليکلو ته هم متوجه سول، ځيني ډرامې په سياسي او ملي رنګ وليکلې سوې او ليکوالو لنډ داستانونه هم وليکل چي په دغه فن کي د انګرېزي او اردو ادبه څخه د داستان ليکلو پر فني تکنيك برابره استفاده وسوه، او د لنډو داستانو ليکنه په پښتو ادب کي ښه رواج سوه، په دغه وخت کي موږ له دغو درو ډلو څخه مشهور ليکوال دغه کسان لرو :

سيد راحت زاخيلي، شاعر او سياسي ليکوال.
دوست محمد کامل، مؤرخ او ادبي نقاد.
سيد رسول رسا، پوخ شاعر.
حمزه شينواری، د پښتو غزل نامي شاعر.
سمندرخان سمندر، اجتماعي او مسلمان شاعر.
فضل حق شيدا، دردمند او نقاد شاعر.
اجمل خټك، هغه شاعر چي په شعر کي يې حرکت او نغمه او آرزو سره يو ځای سوي دي.
حبيب الرحمن قلندر، شاعر او داستان ليکونکی.
مير مهدي، پوخ داستان ليکونکی او شاعر.
ولي محمد طوفان، شاعر.
حسين بخش کوثر غورياخېل، د پښتو ژبو پوهاند.
ميان احمدشاه، سياسي ليکوال.
ماسټر عبدالکريم، د خدايي خدمتګارانو سياسي ليکوال.
عبدالخالق خليق، سياسي ليکوال.
روغ لېونی، سياسي ليکوال.
ډاکټر نورالحق، د پښتو د لغت محقق.
امير نواز جلياه، د سياسي انګار اخبار مدير او شاعر.
غني خان غني، نقاد وطني شاعر.
علاوه پر دغو مشهورو ليکوالو او شاعرانو ځيني پښتنې مېرمني هم په دغه ادبي حرکت کي برخه لري :

زيتون بانو، مبارك سلطان شميم، بشرابيگم، قانته بېگم او الف جانه خټکه.

# اجمل خټك

په اوسنۍ زمانه کي که سړی په پښتو شاعري کي يو حقيقي شاعر او هنرمند غواړي نو به هغه اجمل خټك وي. نوموړی د حکمت خان زوی او په (١٩٣٦ ميلادي) کي د خټکو په اکوړه کي زېږېدلی دئ.
دی پس د تحصيله په سياست کي ونښت او په وارو وارو انګرېزي او پاکستاني حکومتو ګرفتار کی. د اجمل ژوند له شور او ولولې څخه ډك دئ. د پښتونستان په ټولو سياسي او ادبي او فکري حرکاتو کي لويه برخه لري.
دی لیکوال دئ، شاعر دئ، خطيب دئ او هم سياسي فعال سړی او لېډر دئ. په کم مجلس کي چي اجمل خټك شامل سي خلك د ميني په سترګه ورته ګوري او د پښتو د اوسني فکري هيکل شمزۍ ګڼل کيږي.
د اجمل ادبي آثار څو جلده نشر سوي دي. د ده د منثورو آثارو مجموعه د کچکول په نامه په (١٩٦٠ م) په پېښور کي چاپ سوه او د شعر يو دېوان يې په (١٩٥٨ ميلادي) کي د پېښوره نشر سوی دئ، د اجمل د هنر د قدر ټاکلو له پاره به بهتره دا وي، چي د ده کتاب د غيرت چغه ولولو او په کومو الفاظو چي ده پخپله شعر معرفي کړی دئ، همغسې وپېژنو، دی د کتاب په مقدمه کي وايي :
"د ژوبل احساس يو څو څرېکي، د زخمي غيرت يو څو غروڅنګونه، د سړې ويني يو څو ترم څاڅکي، د اولسي جونګړيو څو شنه اسويلي، د غيرت يو څو ترخې تجربې، د سرمايې يو څو ناکړدي، او ورسره د پښتنولۍ احساس چي زما شاعر زړه يې د پښتني فن په سور رباب وترنګولو.
نو زه پوه نه شوم چي خوږې سندري ترې جوړې شوې او که سوي ساندي، ولي دومره پوه شوم چي د زوراورو د سپينو قبرونو، څربو مجاورانو واورېدل نو تندی يې تريو کړل او چي د غريب اولس او باشعوره طبقې تر غوږ شول نو په سوي زړه يې لکه د دسمالي ولګېدل".
په دي ډول د اجمل شاعري حقيقتاً شاعري ده، ځکه چي دی تل له خپل خوږمن احساسه څخه بړغيږي، د زړه درد او زخمي جذبات پخپلو اشعارو کي نغاړي او لکه چي د ده شعر سړی واوري نو په رښتيا متأثر کيږي او په هغه ډول چي يو فارسي شاعر ويلي و :

سخن کز دل بيرون آيد
نشيند لاجـــــرم بر دل

نو د اجمل شعرونه هم د زړونو سره کار لري. د غيرت چيغي لومړی شعر دا دئ :

د خوشحال د خاوري پورته يو نغمه شوم
بل مـــــــثال په اباســـــين او تاتره شوم
سرې پوه شوې د غيرت چغه سور اور وم
چي تا څومره رانغړدلـم سره لــــمبه شوم

اجمل طوفاني احساس لري او هر شعر يې د متروکې کار ورکوي، دا شعر يې هم د کتاب په سر کي ليکلی دئ :

ملـــــګرو تش په لوګـــــېدو ونه شوه
ځئ چي لمبه شو دا خپل ځان اوسوزو
د نـــــــوي ګل د خــــسمانې دپاره

دا زوړ خــــــوړلی ګلســـتان اوسوزو
د اجمل د شعر او هنر مخه تش د قوم د ښېګڼې خوا ته ده، دی داسي شعر نه وايي چي د خلکو په درد ونه خوري، د ده هنر خو دا دئ چي شعر يې د ژوند له پاره استعمال کړی دئ، مګر شاعرانه هنر او د الفاظو ښکلا هم لري. نو ځکه هنري اثرونه هم هنري ښېګڼې لري او هم اجتماعي او اولسي دي، پخپله وايي :
"د احساس د زخمونو نه مي لا ويني څاڅي، د غيرت پرهارونه مي لا تازه دي، اوس ژوند راته هغسي ازغی ازغی دی او د زړه د د رباب تارونه مي شکر دی لا سست شوي نه دي، اوس هم چيرته چي زه او زړه مي يوازي شو نو داسي محسوسوم لکه چي د سوي نغمو باران کي ناست يم.
نو که ژوند او حالاتو دومره مهلت راکړی و چي دغه نغمې مي د اشعارو جامه کي ايسارولای شوې نو که خير وي د پښتونخوا د غرونو او ميدانونو نه به د غيرت يوه بله چغه هم واورېدی شي، د زړه د دنيا خوږې ترخې تجربې، واردات او جذبات يا د احساس جمال رنګ چي د غزلو، نظمونو، سندرو، قطعو او رباعياتو شکل کي وخت بې وخته ظاهر شوي دي هغه زه نه د خپل ژونده نه بېلولای شم نه د شاعرۍ نه".
د اجمل د شعر يوه خاصه مميزه دا ده، چي دی د جامعې په لوړ قشر کي نه ګرځي، دی د يو همدرد انسان په ډول د محرومو طبقاتو په کوډغلو کي ورننوزي او د دوی ژوند ته ځير کېږي. د دوی بدبختۍ ويني، د دوی بدحال او فلاکتونه شمېري او د مقتدري بډايي طبقې پر خلاف پخپلو اشعارو کي سرې لمبې ځايوي :

غــټان غــــټان نېکان نېـــکان پيدا دي
دوی خــــو له ځايه جنـــــــتيان پيدا دي
ځئ ! هغي خـــــــوارو له جنت وګـــــټو
څوك چي له موره دوږخيان پيدا دي

په يوه منظومه کي دغه طوفاني احساس په داسي ډول څرګندوي :

چي د څربو څربو جوشو شراب شي
د داسي ويني په سرخي مي قسم
چي د غټانو د سيخو کباب شي
د داسي هډ په بې وسي مي قسم
د پخوانو څلو په شنو خزو کي
د اوسني رګونو مړوچو کي
چيرته توده وينه به نه وي چي و اوري
چرته کي سره وينه به نه وي چي و اوري
زه د وطن د شهيدانو وينه
يو ارماني غوندي فرياد کومه
دا چي زموږ د پلار نيکه په څلو
نن دنګوي د خپل هوس اسونه
دا د ذاتي اقتدار ووړي سترګي
چي لګوي مو په هر هډ چکونه
بس د دوی سترګي غړول غواړي
د کبر جام نسکورول غواړي

# په اوسني پښتو شعر کي د ژوند څپې

شعر او شاعر د قومي ژوند هینداره ده، او ادب د ژوندانه د څپو سره مل روان وي. کوم اجتماعي تحولات چي پر انساني ټولنو راځي دغه تحول د ادب مخه وراړوي. د کومو ژبو ادب چي د تحولاتو او اوښتنو سره ملګری سي هغه نو مترقي ادب ګڼل کېدای سي. اساساً ادب یوه اجتماعي پدیده ده، او د انساني ټولني د ژوند ډولونه او دودونه ښکاره کوي، او هر ادب چي د ژوندانه سره مل نه وي نو هغه ژوندی ادب نه سو ګڼلای. د پښتو ادب په خپلو منځنیو دورو کي د خوشحال خان له جنبش سره د پښتنو د سیاسي او اجتماعي ژوندانه سره ربط پیدا کړی و، خو دغه حرکت وروسته د نورو ادابو تر اثر لاندي ضعیف سو، او زموږ شعر د تصوف او ادبي هوسونو په کړو وړو کي هغه د ژوندانه د اصالت رنګ له څه بایلود.
رحمن بابا دغه حیاتي متاع د مادې له چارچوبه یوه آسماني او روحاني فضا ته ورسوله، شیدا او حمید د لفاظۍ او نازکخیالۍ او ادبي هوسناکۍ په چاپېر کي سره رادې خوا او هغي خوا ته کړه، او حتی ځیني خلکو خوارکی ادب د مضمضې او استنشاق او استنجا په احکامو کي راونغښت.
رحمان خو په خپله اقرار کوي، چي د بېخودۍ څپو لاهو کړی دئ او نه پوهېږي چي دغه جذبه او کشش له کومي خوا دئ، وايي :

زه دا هسي دېوانه او مجـــــنون چا کــــــــــــړم؟
له رواجه له رســـومه بېرون چا کــــــــــــــــړم ؟
نه پوهـــېږم چي دا چاري په ما څــــــــــوك کا؟
لـــېونی د خپل نګاه په افسون چا کــــــــــــړم؟
رحـمان هـــيڅ له خـــپله ځانه خــــــــــــــبر نه وم
چي دا هسي رنګ زبون او محزون چا کـــړم؟

د شیدا او حمید نازکخیالۍ او لفاظۍ خو د یوه صنعت کار په ډول بدي نه دي، مګر د دوی شعر د شعر له پاره و او کوم لوړ هدف او عالي موخه نه لري.
خوشحال خو هم دغسي بزمي اشعار لري، او کله د خالص فنان جوله مومي. مګر ژوند او اجتماع هم د ده په شعر کي خپله څېره ښکاره کوي، او د مقصدیت لوري ته متمایل کیږي.
رحمان بابا هم مقصد لري خو هغه به لږ څه لاهوتي او آسماني وي مګر د شیدا او حمید هنر د هنر له پاره دئ. دوی صنعتکاران دي.
دوی ښکلي او رنګین لوښي جوړوي، مګر داسي لوښي چي د ژوندانه په چارو کي نه په کارېږي او هغه چیني منقش لوښي دي، چي فقط د تزئین له پاره یې په صالون کي د هوس او آني خوند له پاره ایښولای سو، شیدا په شاعرانه تخیل کي د ځان له پاره د ماښام او هلال منظره داسي جوړوي :

تل په دا خمو ابرو په شهلا سترګـــو
د خپل یار شام و هلاله راشه کښېنه

مګر دی پخپله هم په دغه نازکخیالۍ قانع دئ او صنعت یې تش د صنعت له پاره دئ که د یار طبعی نازکي موزونه کاندي نو به ډېر خوښ وي :

نازکي د یار د طبعي کړه موزونه
اې شیدا نازکخیاله راشه کښېنه

حمید له لړمونه خپل زړه د ترکو په لاس داسي راکاږي :

دا يې ښاخ د ګل سره په تلوار پرې کړ

که له زړه سره مي ترکو لړمون وکېښ
وګورئ منظر څوني فجيع دئ  او که د شاعر خوارکي زړه په داسي قساوت له لړمونه راوکيښ سي دا نه خوند لري او نه حسن منظر او د اجتماعي او انساني احساس له رويه به هم داکار د غندني وړ وي. مګر د شاعرانه هوسبازۍ له پاره خو يوه ښکلې موضوع کېداې سي، او حميد هم فقط په دغه جذبه ځان په داسي بلا لړلی دئ.
دلته د حضرت جامي يوه مشهوره لطيفه را په ياديږي : بابر وايي چي د ده معاصر او شاعر شيخم سهيلي دا بيت ووايه او د جامي څخه يې وپوښتل چي څنګه دئ؟
شب غــــم ګرد باد آهم از جا برد ګــــــردون را
فرو برد اژدهای سيل اشکم ربع مسکون را
جامي چي واورېد، ورته وې ويل :
"وروره ! ته شعر وايي او که خلك ببروې؟"
د حضرت جامي دا انتقادي لطيف نظر د حميد پر دغه بيت هم وارد کېداې سي، سړی چي دا بيت لولي نو حتماً مور مړی عاشق په وينو لژند سړي ته تصوير کيږي، چي ظالم عاشق يې په سينه په قساوت ور څيري، او د ده لړمون او زړه راکاږي، نو دا به څوني نفرت راوړنکې او مستکره منظره وي، مګر حميد پخپله شاعرانه هوسکاري کي دغه تشبيه هم رواګڼلې ده. حال دا چي دغه شاعرانه قصابي په ژوندکي زموږ هيڅ په درد نه خوري.
د پښتو شعر د منځنۍ دورې اکثر آثار همدغه فن تازي او نازکخيالي ده، چي له فارسي شعره سره اوړه پر اوړه ځي او دا هم د اجتماعي احوال او د سياسي جوړښت يوه ښکاره نتيجه ده، چي د فکر سير د ژوندانه له مجرا څخه منحرف کړ سي، او خلك د زور او جبر په وسيله له ژوندانه څخه بېزاره سي، نو به ضرور افکار لاهوت او آسمان ته متوجه کيږي، يا به تش هنر د هنر له پاره وي. ځکه د انسان فکري فعاليت خو هر وخت ځانله اول په ماده او ژوندکي مجرا مومي، مګر کله چي دغه لاره تړلې ويني، نو ځانته حتماً نوري مجاري پيداکوي.
د پښتو شعر له منځنۍ دورې څخه په داسي اجتماعي جريان کي نوي عصر ته راووت، او په نولسم قرن کي بيرته له ژوندانه سره مخامخ سو.
پښتون قوم د ايشيا يو فعال او ښورېدونکی او نه مړکېدونکی قوم دئ، دوی هر وخت په تاريخ کي ځانته نوی مجاري موندلي دي او د ژوندانه له پاره پوره استعداد او تکړه توب لري. په نونسم قرن کي دوی د استعمار سره سختي ډغري و وهلې، او خپل حياتي او دفاعي استعداد يې ثابت کړ، دوی خپل ژوندانه ته متوجه سول، او د خپلي آزادۍ د ساتني يا بيرته ګټني په فکر کي ولوېدل.
د ژوندانه دغه جريان  د دوی په ادب کي هم اثر وکړ او د پخوانو د ادبي هوسونو پر ځای يې خپل ادب ژوندانه ته توجيه کړ، نو ځکه د پښتو نوی ادب د ژوندانه مل سو او د قديمو صنعتي فن تازيو پر ځای د قومی ژوندون او آزادي خواهۍ او اجتماعي اصلاح او سمون زيات افکار د ادب په هنداره کي ښکاره سول.
په نونسم قرن کي د طباعت او صحافت فن هم په پښتونخوا کي رواج وموند. نثر او نظم دواړه خپاره سول، او پښتو د پښتنو له نهضته سره يو ځای د نوي ادب او نوي فکر او نوي ژوند په ډګر کي په وده او پرورښت کښېوته. دلته هوس او خيالبافۍ خپل ځای واقعيت    او فکر ته ورکړ. ليکوال او شاعر دواړه د ژوندانه واقعي مسايلو ته متوجه سول. د لاهوت او آسماني فکر پر ځای د اباسين او خيبر او ارغنداو مناظر ودرېدل، د بڼ او زلف وکاکل پر ځای د قومي ژوندانه خبري د غور وړ سوې. دا تحول په پښتو ادب کي عصر او زمان او د تاريخ جبر قهراً راووست. د پيرمحمد او شمس الدين پر ځای يې مخلص او الفت ودرول، د رحمان بابا او حميد پر غولي يې اجمل او طوفان ميشته کړل.
دا تحول فکري او عقلي تحول و او موږ ويلای سوای، که دا اوښتنه نه وای راغلې، نو به قوم له ژونده مرګ ته تلای، او کوم حرکت چي اوس په پښتنو کي د ژوندانه له پاره ليدل کيږي، د مړه ادب په مردګانيو اسويليو به بدل سوی وای.
ما دمخه و ويل چي زمانې په ادبي تحول کي خپل کار پوره وکړ، او اوسنی شاعر او ليکوال يې د ژوندانه نوو زواياوو ته ملتفت کړ. د مثال په توګه وايم : د چرګ بڼغ د پښتنو په کليو او کوروکي اورېدل کيږي، او دغه موضوع له قديمه په شرقي

شعر کي داخله سوې ده.
سعدي هم ويلي دي :

ای مرغ سحر ! عشق ز پروانه بياموز
کان سوخته را جان شـــد و اواز نيامد

تر سعدي دمخه لا دا رباعي عمر خيام ته منسوبه وه :

دانی که سفيده دم خروس ســــحری
هر لحظه چرا همی کند نوحه گــری؟
يعنی که نمـــودند در آئينه صـــــبح
کز عمر شبی گذشت و تو بی خبری؟

د سهار له چرګه سره د قديمو شاعرانو مخاطبې په عشقي ماحول يا د تنبيه او وعظ په چاپېر کي محصوري وې، خو په شلم قرن کي د ژوندانه له تحوله سره دغه مضمون آفريني هم واوښته، او يوه عصري شاعر داسي و ويل :

ای مــــرغ سحر ! بنــــــالهٔ دورا دور
بيهوده مـــکن تو خويشتن رنـــجور
زينسان که گرفته خواب غفلت ما را
بيدار نمی شـــــويم، تا نفــــخهٔ صور

پښتنو شاعرانو هم پخوا پر دغه موضوع باندي مختلف تعابير پيدا کړي او هر چا د خپل تخيل په چاپېر کي د سهار چرګ ته خطاب کړی دئ .
پر يوه چا چي شپه يې په خوښي کي سبا کړې وه، د چرګ بڼغ د ماتم اواز سو، ځکه چي د وصل شپه يې لنډه کړه، نو ده په ډېره غصه داسي و ويل:

د سحر چرګه کومي دي غوځ سه
په ما دي لنډه د وصل شــــپه کړه
ښايسته ملاله، په ميو مسته وه
چي تا را بڼغ کړ، دا دي خـــپه کړه

دا څلوريځه د خدايرحم اکاخېل کندهاري ده، چي اويا کاله دمخه د کلات په سيوري کي اوسېدی، خو د دغه عصر يو بل شاعر عيسی آخوندزاده د مرغ سحري له اوازه څخه داسي الهام اخيستی و، چي :

سحري مرغه په خـپل آذان کي وايي
ولاړېږه ! هـځه کړه چي شپه سوه تېره
سپېدې وچاودې انوار يې راخپرېږي
رڼايي د ورځي ســوله را برســــېره

د شلم قرن پښتون شاعر اجمل خټك چي د خوشحال د دېرې روڼ څراغ دئ په خپل يوه شعر کي د ميرې چرګ ته خطاب کوي، مګر دا شعر د عصر هينداره ده، او شاعر د شلم قرن په ژبه چرګ ته ګډ دئ، اجمل په دې سندره کي د خپل قوم د محروميت نقشه راکاږي، او د خيال پرستۍ پر ځای واقعيت ته درومي، او خپل اولس ته د واقعبينۍ درس ورکوي. دوی خپل اصلي حال ته ملتفت کوي، او له غروره او تيرو تلو يې د ژوندانه واقعي حالت ته راکاږي. دی چرګ ته خطاب کوي، خو په دې خطاب کي د ژوندانه ډېر پټ، مګر واقعي څنګونه روښانه کيږي، او ادب له ژوند سره نښلوي، اجمل خټك د ميرې چرګ ته وايي :

تاته به سحر ښکاري خو پام ګورئ ماښام نه شي
ته به يې آغاز ګڼې خو پام ګورئ انجام نه شي
ته به څه مستۍ ګوره بې وخته را څوان کړی يې !
ته به چا په بادو پړسولی روان کړې يې !

نو اې د مـــــيرې چـــــرګه !
په ماښام بانکونه مه وايه !

دا منم چې تا سره، څانګونه ښه درانه شته دي
دا منم چې ستا دوه خاروګان پاخه زاړه شته دي
دا منم چې ستا آواز تر ليري رسيدی شي نن
دا منم چې ستا په کرکره به څوك غولېدی نه شي

يادکړه ! دا څانګونه ګوري ستا د الوتو نه دي
يادکړه ! ګوري ستا دا خاروګان د جنګېدو نه دي
ستا دا لوی اواز به ګورې تاته مصيبت وي بيا
ستا داکرکری به دي هم تاته لوی آفت وي بيان

نو اې د مـــــيرې چرګـــــــه !
په ماښام بانګونه مه وايه !

دا شعر خو لس کاله پخوا ويل سوی او د اجمل د غيرت په چيغه کي نشر سوی دئ او زموږ په پښتو اوسني ادب کي هم اکثره برخه دغسي د ژوند خبري او د عصري ژوند نقاشي او نقادي ده، او دا حرکت په ټولو پښتنو کي مشترك دئ.
په افغانستان کي هم پښتو ادب له پنځوسو کالو څخه پر دغه خوا روان سوی دئ، ملا عبدالباقي افغان کندهاری کاکړ خپل کتاب تبيين الواجبات په همدغه رنګ د امير عبدالرحمان په عصر کي شروع کی، او د سراج الملة والدين امير حبيب الله په نام يې ختم کړ، دی وايي:

د ضياء په نور روښان وم، مقتبس سوم له سراجه
را اخيستی مي قلم دئ، بېلوم دين لـــــــه رواجه

په سراجي دوره کي څلويښت کاله دمخه، دغه د فکر مکتب سراج الاخبار وروزه، د مولوی غلام محی الدين افغان او مولوی صالح محمد او مستغني او سيد محسن کندهاري او عبدالهاد پريښان، ډېر اشعار او آثار د عصر او زمان په رنګ رنګېدلي او پسوللي سوي دي، چي وروسته حاجي ولي محمد مخلص او بېنوا او خادم او الفت او رښتين او زمريالي او جلالي او سليمي او مجروح او نورو هم خپل ادب او هنر له ژونده سره ونښلاوه، او اوس موږ ډېر څه داسي پښتو اثار لرو، چي د اوسني ژوندانه تجليات په ښکاره ډول پکښې بريښي.
فضل حق شيدا د دې مکتب يو تکړه استاد دئ، ده دېرش کاله پخوا د دغه ادبي تحول او د ژوندانه د ترجمانۍ افکار داسي پېودلي او د زمانې نوي شيان يې په دې ډول ښوولي وو :

زلمیه په وطن قربانېدل زده کړه بل شان
د مرګ چل دي خطا دئ مړه کېدل زده کړه بل شان
چي مړ شې نو ډېوې ته فایده ورسېده څه؟
پتنګه ته په شمع سوزېدل زده کړه بل شان
هر څېز چي زوړ شي خوند نه کړي، زړه خندا دي پرېږدي
بلبل له اې ګلابه ! خندېدل زده کړه بل شان
موږ نشې تېولی جوړ اثر درکي نشته دئ
اې تاره ! د رباب ته تېېدل زده کړه بل شان
که نه ویني لیلا د آزادۍ نو ستا قصور دئ
ولاړه ده هغه خو ته لیدل زده کړه بل شان
تا داغ ونه وینځلی شو، لمن نه د غوټیه
شبنمه ! په ګلونو ورېدل زده کړه بل شان
تا زخم د لاله د زړه جوړ نکړای شو تر اوسه
ملهمه د شبنم ! ته لګېدل زده کړه بـــل شان
دا ولي د ښکاري زړه په تا نه سوزي بلبلي؟
پخپله پنجره کي ژړېدل زده کـــــړه بل شان
دښمن تا هغه شاني خس ګڼي ګورې ازغیه !
په سترګو د دښمن کي غړېدل زده کړه بل شان
ستا اور څوك سوزلی نه شي اې اور اورکیه !
که خس خاشاك سیزې نو ځلېدل زده کړه بل شان
جرس نه دئ شیدا، چي قافله دي نه کړي ویښه
که ځان جرس کوې، نو غږېدل زده کړه بل شان

په دې ډول په پښتو ادب کي د نوي ژوندانه څپې له پنځوسو کالو را په دې خوا په ښکاره لیدل کېږي، او پښتو ادب له حیاتي تحولاتو سره اوږه پر اوږه روان دئ.
مګر دا حرکت په نوي ډول روزنه او تودونه غواړي، او دا کار د قوم د پوهانو او ادبي ټولنو او ژبنیو مؤسسو دئ، چي څنګه نوی ادب په نوي فکر مجهز، د نوي ودي او پرورښت پر خوا روانوي.

د جرس غوندي فقط خوزول غواړي
یقین وکړه ! هره خوله کي تــرانه ده !

**په اوسني پښتو شعر کي نوی څرك :**

ادب د انساني ژوند یوه ښکلې پدیده ده. نو په هره اندازه چي ژوند سره اوړي، او له یوه حاله بل حال ته تحول مومي، ادب هم هغسي د اوښتلو تر قانون لاندي په هره زمانه کي نوی رنګ، نوی خوند، نوی طرز او نوې ښکلا پیدا کوي. او دا چي د هري ژبي په ادب کي خاص خاص سبکونه او دورې موجودي وي، او هره دوره ځانته ځیني خصایص او ټاکلي ټکي لري هم یوه طبیعي خبره ده.ځکه چي هره زمانه د ځانه سره نوي نوي تعابیر، او نوي فکرونه، او نوي اندېښني راوړي او هرو مرو د ادیب او شاعر فکر پخپل چوکاټ کي اچوي.

د هري ژبې ادب دغه مختلفي دورې لري، او هره دوره يې ځانته په ځينو خاصو خاصو ټکو له نورو دورو څخه ممتازه وي، او دا د ادب ډېر غښتلی جبر دئ، چې اديب بايد پر يوه زاړه عنعنوي ډول پاته نه سي بلکي د زمانې له سيره سره پر مخ ولاړ سي.
شعر او شاعري هم د انسان د ژوندانه له تحوله سره هرو مرو اوښتونکې او ګرزېدونکې او نوي ډول قبلوونکې ده. د مثال په توګه به د فارسي ادب تحول ته وګورو، چې لومړۍ مرحله او د سامانيانو په دوره کي څنګه و؟ او بيا د غزنويانو په دوره کي څنګه سو.
د رودکي الفاظ، اداء، دکلماتو تلقين، معاني او فکري اړخ بالکل د سنايي يا مولوي څخه بېل دئ. حال دا چي د دوی تر منځ دوه درې قرنه فاصله ده، اما هر قرن پر ژبه او ادب او فکر باندي دوني اثر کړی دئ چي فرق يې براﻻ ښکاري او هيڅوك له دې حقيقته سترګي نه سي پټولای. د پښتو شعر هم د اسلامي دورې له ابتداء څخه مختلفي مرحلې تيري کړې دي، خو دا څلور قرنه د (۹۰۰) هـ را په دې خوا ادبي تسلسل لري او د پير روښان تر ادبي اجتهاد وروسته د خوشحال خان او خټکو ادبي نهضت شروع سوی و، چي دا دئ لمن يې اوس موږ ته رارسيږي. د پښتو نوې دوره او د ژوندانه په حرکت شروع زه د شلمې پېړۍ له ابتداء څخه ګڼم.
تر دې دورې دمخه پښتو ادب پر هغه ﻻره تګ کاوه، چې قدماوو ټاکلې وه، د شعر قالب هغه ګڼل کېدی، چي په مدون ادب کي تر خوشحال خان وروسته شاعرانو جوړ کړی و. په فکري لحاظ هم شاعرانو هغه ﻻر غوره کړې وه، او د پښتو ادب د عشقي او اخلاقي او ديني اشعارو په غولي کي محصور و.

## نوی یعنی څه ؟

کله چي د نوي صفت پر شعر باندي تطبيق کيږي نو زما په خيال تر دوو مقولو ﻻندي راتلای سي :
اول : د شعر معنوي اړخ او د تخيل چاپېر او هغه څه چي شاعر يې د خپل چاپېر شمزۍ ګڼي او د ده د هنر اصل او موضوع وي چي په فرانسوي يې فوند (Fond) بولي.
دوهم : د شعر لفظي اړخ او ظاهري چوکاټ چي قدماوو به د بلاغت اصول ګڼل، او په بديع، عروض او قافيه کي به يې بيانول، او دغه برخه يې په نوې اصطلاح فورم (Form) بولي. د پښتو شعر د شلمې پېړۍ دوره چي شروع کېده د محتوی او موضوع له پلوه يې ډېر نوي عناصر او د عصر او زمان سره برابر معاني او مطالب په ځان کي ومنله او د پښتو شاعرانو په ډله کي موږ تر نيمي زياته برخه داسي شاعران لرو، چي د دوی د فکر مدار نوی و، دوی دکلاسيکو شاعرانو په ډول ځانونه د زلفو په کمند کي پېچلي، او دتورو څڼو په پېچ و خم کي نښتي، او د ګل او بلبل سره همنوا او د ميو او د جام په دور او تسلسل کي ګرفتار نه کړل، بلکي د دغو مکررو او ډېرو استعمال سوو او پوده سوو مضامينو پر ځای يې ملي دردونه، اجتماعي او سياسي خبري بيان کړې. خو د دوی د شعر او وينا قالب هغه و، چي قدماوو ټاکلی و. يعنی دوی د عصر او زمانې نوي ترنګونه او زمزمې په هغه قديم رباب کي ورغولې، هغه غزل، او مثنوي او رباعي او نور پخواني قالبونه يې په نوو موادو او افکارو ډك کړل. که د دوی فوند نوی و، فورم خو يې زوړ و، نو ځکه د دې ډلې په هنر کي کوم ابداعی او تخليقي رنګ نه ښکاري. دوی د تبليغ او تلقين له پاره کومه نوې ﻻره نه کړه جوړه خو بيا هم د زمانې جبر د دوی په فکر او د شعر په محتوی کي ضرور دخل وکړ، او دا هغه زمانه وه چي پښتنو د استعمار ناوړي او کروړي ليدلي وې او په مشرق کي د آزادۍ وړمه چلېدله. لومړی بين المللي جنګ خلاص سوی و او په ټولو شرقي ملتو کي د آزادۍ جنګونه له استعمار چيانو سره په مختلفو شکلو شروع سوي وو او په افغانستان کي د استقلال د بيا موندلو مبارزه په کاميابي سره ختمېده.
د دغو شاعرانو څخه چي زموږ په ادبي حرکت کي پيش قدمان دي د مثال په توګه : غلام محی الدين افغان، عبدالهادي پرېشان او سيد محسن کندهاری، سيد حسن او مخلص کندهاری، غلام محمد پوپلزی، سيد راحت او ميان احمدشاه، فضل محمد مخفي، او امير نواز جليا، او فضل احمد غر، او هلالي نومونه راوړلای سوای. دې ډلې خو په ادبي حرکت کي غټه برخه اخيستې ده. اما له قديمو زولنو او رواياتو څخه يې ځان نه دئ ژغورلی. ډايرکټ او نېغ خپل مقصد ته ورغلي دي او په هنر نمايي او ابداعي مرحله کې پل نه دئ ايښی.

زه دغه ډله نه غندم، او د دوی فکري خدمتونه پر سر او سترګو منم، مګرکله چې د تاریخ ادب په تحلیلي او انتقادي مرحلو کې هنري آثار پلټل کېږي او پر فني معایرو باندي د هر هنري اثر قیمت ټاکل کېږي نو دغسې اشعار له نوي هنري ښکلا څخه تش ګڼل کېږي، او د زاړه سبك په ډله کې شمېرل کېږي. د مثال په توګه زه د هلالي یو شعر وړاندې کوم، چې د مضمون له پلوه نوی او خوږ او مفید او د نوی نسل یو ښکلی ارمان دئ خو د اداء او څرګندوني قالب او طرز یې هغسې کلاسیك او زوړ او مستقیم دئ :

## ارمان یو

اې پښتنو پوه شئ دئ ستاسو نوم نښان یو
ځانګې ببلې ببلې دي، دئ ستاسو د ذات شان یو
دا یوسف زیي، خټك، بارك احمدزیي ، مهمند
دا غلجي، شینواري، افریدي دئ خاندان یو
سیل نه جدا شوي مرغۍ لاړه شي د مرګ په خوله
راشئ د مقصود منزل لپاره کړئ کاروان یو
لاس یا پښې او سر بللي چا په بنیادم نه دي
ببل ببل اندامونه غونډ شي جوړ شي ترې انسان یو
اې پښتونه خدای لپاره، ولې ته یو نه شولې؟
خدای دئ یو، کعبه یوه ده، او ښکلی قرآن یو
ته که عزت غواړې په دنیا د نور اقوام په شان
ستا دي په دنیا د سیاست کې وي میدان یو
اې پښتونه ! پوهه که خپله ځان د وروړلۍ په راز
ستا ګټه یوه ده په دنیا کې او تاوان یو
کاشکې چې زما په ژوند پښتون یوه منګول شولې
زه هلالي بس په زړه لرمه دا ارمان یو

وګورئ دا د نوي شعر یو اعجاز دئ، دا بیتونه دېرش کاله پخوا ویل سوي وه، مګر اوس دغه ښکلی ارمان د پښتونستان په نامه عملي مبارزې ته راوتلی دئ، نو تاسې له شاعره بله څه معجزه غواړئ؟
مګر ښاغلو لوستونکو !
دلته زما مقصد د نوي شعر اجتماعي او سیاسي موقف نه دئ، بلکې یوازې د هنر ارزښت څېړنه او پلټنه ده، چې دا مقصد به په آینده کې پسې وڅېړم.

### په پښتوکې نوی هنري حرکت څنګه شروع سو؟

د افغانستان د استقلال جنګ د ایشیا په دې برخه کې یوه ویښوونکې او خوځوونکې پېښه وه، لکه په ډېرو اجتماعي او سیاسي او مدني چاروکې چې تحول راغی، دغسې هم د فکري او ادبي اړخه یوه مثمره او اغیزه ناکه حادثه وه.
د پښتونخوا په ختیزو برخوکې چیري چې د خوشحال او رحمان او شیدا غوندې بلبلانو خواږه ږغونه اروېدل سوي وو، اوس هم د پښتو شعر نشوونما بیا مونده، او د ادبي تجدد مکتب لومړی پلا هلته وپرانیست سو، او دا د پښتونخوا هغه ښکلې سیمه ده، چې شیدا په زاړه نامه "بګرام" داسې ستایله :

د بګرام خـــطه دلـــکشه
د بهار د خاطـــر خـــوښه
سرترپایه رنګ امیز دئ
رنګینه خیال انګـېز دئ
په بهارکي يې د ګـــــــلو
ناري اورم د بلبـــــــــلو

د دې ښکلي ادب خيزي سيمي زلمو د اروپايي مترقي ادبه سره اشنايي وموندله، او په پښتو شاعري کي يې نوي افکار، نوي الهامات، او نوي اساليب رواج کړل، د دې ډلي پېشوايان : سيد رسول رسا، فضل حق شيدا، برق کاکاخېل، سمندر، غني، بيزاري، طوفان، اجمل او سليم غوندي شعراء دي، او دلته موږ اوس د دې ښکلي بوستان رنګين ګلونه لکه : الفت، بېنوا، لايق، شپون، رشاد، ريدی، محمود، پسرلی لرو.

نوو شاعرانو د خپل هنر فورم او فوند دواړه نوي کړل، او که يې هم کله د پخوانو قوالب او هنري اساليب وساتل په هغو کي يې لاس وواهه، او په نوې ګېڼه او نوي پسول يې وښکلل، او په دې ډله کي د الفت ابتکار دا و، چي نثر ته يې کټ مټ د منظوم او پيودلي شعر رنګيني ورکړه، او زه چي د ده منثوري وړې ټوټې لولم ګمان کوم چي نثر نه دئ، بلکي د يوه خواږه او پيودلي کلام په څېر خوند کوي.

د (رسا) د بېلتانه سندره دېرش کاله پخوا ويل سوې ده، خو هم يې موضوع نوې شانتي ده، او هم يې اداء نوې ده :

د اوښکو سترګي خون فواري وې
ګرد و غبار وې، توري ايرې وې
په تندر سوي، سرې ايرې وې

رېزې رېزې وی، او تر او تر وی
يو چي په غېږ مي ښکلی دلبر وی

بيدياوي ، تړي هولناکي غرونه
تاوده بادونه سوي رېګونه
ناست په غرموکي، سره وي ډاګونه

شونډې مي وچي، سوی ځيګر وی
يو چي په غېږ مي ښکلی دلبر وی

په پای کي دا شاعرانه آرزو د ژوندانه او د ميني په خطرناکو مناظروکي داسي پای ته رسوي :

د مرګ سلګۍ مي ورو ورو راماتي
خولې راماتي، ساه رانه پاتي
رانه وې پاتي دنيا ميراتي
ژبه مي بنده لاړ مي نظر وی
يو چي په غېږ مي ښکلی دلبر وی

لحدکي پروت وی، زېږ مخ کفن کي
د ژوندون ساه مي، نه وی بدن کي
دردمنده زړه مي خاموشه تن کي
مرګ مي په ژوند وی، کاش چي خبر وی
سرته ولاړ مي، ښکلی دلبر وی

په دې ادبي تحول او تجددکي د سيد رسول رسا د خيبر له خوا ماښام، د شيدا د ماښام سپوږمۍ، د برق د زړه ټوکرۍ، د سمندر ارمان دئ زلميتوبه، او د الم پر څوکه ناست يم، د بيزاري سترې له دنيا نه يم، د يادولو وړ دي.
د برق کاکاخېل د زړه ټوکرۍ، داسي يوه ټوټه ده، د قالب او فورم له مخي آهنګي او مستي او طنان وزن هم لري او محتوی يې هم د احساساتو په تصويرکي بده نه ده او يو څو ټوکرۍ يې دا دي :

غر په لوري په ګلزار
بهار راغی په يو وار
ټول وطن سو لاله زار
بلبلان په چغار سر
بوراګان اوتر اوتر
نوی شان دئ په دنيا
غر په سمه په بېديا
نن چي ټول عالم مسرور
ځيني سم، ځيني مخمور
دا يو زه يمه مجبور
په زړګي مي دم په دم
غلبه ده د تورتم
آشنايان رانه ټول ځي
نوی غم راته رائحي

دلته شاعر تول او وزن او آهنګ هم ساتلی، او نوی قالب يې هم اختراع کړی دئ. د سمندر ارمان دئ زلميتوبه ! هم دغسي موزونه او پېودلې ټوټه ده . دی وايي :

آرمان دئ زلمیتوبه !
په تېرېدو وې چې راپاڅېدم له خوبه
آرمان دئ زلمیتوبه!

چې را په خود سوم مازدیګر و
په پرېوتو کې زېړی نمر و
دغه د توري شپې خبر و
بېغمه خوب د غم بستر و
چې مې تر غوږ شولو آواز د نی له چوبه
آرمان دئ زلمیتوبه!

وروستې شې پاته چې ویده شې
په حرکت باندې کړه وړه شې
دیدن په پټو سترګو نه شې
پرونۍ ورځ به بیا رانه شې

که مې سیلاب جوړ شې د اوښکو له څڅوبه
آرمان دئ زلمیتوبه!

د سمندر بله ټوټه شعر د الم په څوکه دوه دېرش کاله پخوا جوړه سوې ده، چې د شاعر د نوي قالب جوړولو او موزوني او مضمون آفرینۍ ښکاره دلیل دئ، د منظر نګارۍ کمال دئ، د لوړ تخیل معراج دئ او نتیجه یې یوه محکوم قوم ته ډېره مفیده او مثبته ده او تر اوسه لا هم د محکومو او مظلومو پښتونستانیانو پر حال صدق مومي، د دې نوي شعري ټوټې آغاز داسي دئ :

| آسمانونو ته کوتره! | | لکه والوزي له شوقه |
|---|---|---|
| کوزه ګوري ګرزي بره | | چورلنېږي خوري په فضا کې |
| سیل کوي د غره له سره | | مرغ دل مې دئ خوشحاله |
| دا ساعت دئ ناخبره | | د دنیا له درد و غمه |
| زه له ټول جهانه پورته | | د الم په څوکه ناست یم |

په دې آسماني سیر او جګوالي کې چې د شاعر تخیل ډېر لوړ الوتنګ کوي او خپل ټول مناظر په اوږده بیان او مهارت تصویر کوي او د منظر نګارۍ اوج ته رسیږي، نابېره ځانته ملتفت کیږي چې زه خو مریی یم، او پردو ته په سلام ولاړ یم، نو دا ټوله خیالي اعتلا او لوړېدنه د ځان غولونه ده، وایي :

| | | |
|---|---|---|
| د الم په څوکه پورته | | هوش مي راغی چي غلام يم |
| په تندي مي لاس ترلی | | شپه او ورځي په سلام يم |
| دا ټوپونه په درياب کي | | که وهم ماهی د دام يم |
| په دنيا کي پست ترينه | | لکه خس د راه عام يم |
| د الم په څوکه ناست يم | | زه له ټول جهان نه پورته |

د پښتونستان په متجددو شاعرانو کي چي د خپل زړه درد او
سوځنده احساس په ډېر ادبي قدرت ښکاره کولای سي، او د خونين زړه ټوټې د شعر په پاڼکيو کي نغښتلای سي، بېزاري دئ. نه پوهېږم چي دا تکړه او خوږمن شاعر څوك و؟ دی لږ پېژندل سوی دئ، خو دېرش کاله پخوا د پېښور د خيبر په مجله کي د دې مقتدر او متجدد ويونکي ويناوي خپرېدې، چي ما يې هغه وخت د پښتو شعر په تاريخچه کي نوم او آثار ليکلي وه.

دا شاعر کاملاً پسيمستې او بدبين ښکاري خو په وينا کې قدرت او مهارت او طراوت او جدت سته او لکه د فارسي کرماني د آرمانجن زړه د اورنيو احساساتو ترجماني ښه کولای سي. (ستړی له دنيا نه يم) د ده يوه ډېره د آرمانه او احساسه ډکه ټوټه داسي ده :

| | | |
|---|---|---|
| مه راوړه ساړه لاسونه ستړی له هر چا نه يم | | ستړی له دنيا نه يم |
| اې د صبحدم نسيمه ! ما سره نخرې مه کوه | | ټوکي مسخرې مه کوه! |
| خوښ يوازي ځانته د سروګلو د بستانه يم | | ستړی له دنيا نه يم |
| څو به غږوې مطربه ! خوږ سرود په زير و بم | | لا مي زياتوې ته غم |
| ستړی د فراق د سرودونو نه بې شانه يم | | ستړی له دنيا نه يم |
| اې د آسمان ستورو ! ولي بد بد راله ګورئ نن | | ډېر له قهره ښورئ نن |
| ځای په زمکه نشته ځما، ليري له آسمانه يم | | ستړی له دنيا نه يم |
| اې ښايسته سپوږمۍ ! په سر مي ولي غمازي کوې | | لا مي دلسوزي کوې |
| زه دغم لمبو وژلی ټول ستی سوزانه يم | | ستړی له دنيا نه يم |
| اې د يار د مخ جلوې ! چي بيا جلوه نما نه شې ! | | بيا عکس نما نه شې |
| پرېږده چي جل بل ستی لمبو کي د هجرانه يم | | ستړی له دنيا نه يم |
| نور دي زه پاللی نشم، چوه زړګيه چوې که ته | | مره زړګيه مرې که ته ! |
| بس کړه ځان کړه صبر زه موړ شوی له جانانه يم | | ستړی له دنيا نه يم |
| اې د يار بې مثلو، دل آزارو، دلربا سترګو ! | | نورو د آشنا سترګو ! |
| روی د رب دئ ، نور په قهر مه ګورئ پښېمانه يم! | | ستړی له دنيا نه يم |
| روی د رب دئ، اې رقيبه ! ما پوري خندا مه کوه! | | لافي د آشنا مه کوه ! |
| يار دي ستا نصيب شي زه بېل شوی له جانانه يم | | ستړی له دنيا نه يم |

تر دې ځايه ما د لري پښتونخوا د نورو شاعرانو د هنري تخليقاتو څو نمونې در وړاندي کړې، او تاسي ګورئ چي دا شاعران د شعر په نوو قالبونو کي خپل افکار او د زړه دردونه تويوي، د دوی د فورماليزم تخليقي احساس هغوني نوی دئ، لکه د

فکري الهام اخيستلو او محتوى مواد چي يې په نوي ډول او سينګار سره اوډلي دي. اما دا ډله په دواړو خواوو کي بيا هم معتدله ښکاري، په دوى کي د تحول افراطي ميل نسته، د شعر د ټوټو يو له بله تناسب او توازن ساتي، او بيخي ځانونه له قالبه نه باسي او ښايي چي د نوى شعر ځيني افراطي لېوالان دغسي اشعار اصلاً نوي هم ونه ګڼي، مګر زه يې د نوي شعر طليعه بولم. ځکه چي نوى شاعر د فورم په ټاکلو او جوړولو کي آزادي او په ژبه کي نوي تعابير او تراکيب هم پيدا کولاى سي.

**اجمل خټك :**

د لري پښتونخوا په نوي ډله کي يو ډېر ځلاند ستورى او د لوړي قريحي خاوند اجمل خټك دئ. د ده د فکر برېښناوي د پښتنو کوډغلي روښانه کوي، د خټکو د عالي استعداد او راڼه محيطه او د اکوړې د تاريخي پلوشو رڼاوي او ځلاوي اوسني عصر ته رارسوي. زه چي به کله د لنډي سين پر غاړه د کابل د رود څپاندو نڅاوو ته په پسرلي ناست وم او د اکوړې منظر به ښکاره کېدى، نو ماته به د خوشحال خان نغمې د شيدا او هجري سوځوونکي کريږي، او د اجمل د دردناکو ږغونو انګازې نسيم راوړې او ما به په اکوړه کي د خوشحال له څنګه سره اجمل ليدى، چي په شلم قرن کي په عصري رنګ او نوې ځلا د اکوړې پر کنډوالو برېښېدى.

دى خپل اشعار" د ژوبل احساس يو څو څړيکي، د زخمي غيرت يو څو غورځنګونه د سرې ويني يو څو ترم څاڅکي، د اولسي جونګړيو څو شنه اسويلي، د غاوره اقتدار يو څو ړندې لتي" بولي.

خو زه اجمل د پښتنو د زړو ارمانو ممثل، د دوى د مړو او ځپلو غورځنګونو ژوندى کوونکى، او د پښتني ټولني د اجتماعي روح او احساس پېژندوى ګڼم، دى په نوې ژبه او نوي ډول د قوم مړ احساس راخوځوي. د خوشحال خان د کهاله د ادبي رواياتو حامل دئ. د خوشحال خان جاويدانه نغمه اوس د پښتونخوا په فضا کي د اجمل په رباب انګازې اچوي، دى وايي:

د خوشحال له خاوري پورته يوه نغـــــــمه يم
بل مشال په اباســـــــين او تاتـــــــــــــــره يم
سرې ! يوه شوې د غيرت چيغه سور اور وم
چي تا خومره رانغړدلم سره لمبه ســـــــــــوم

د غيرت چيغه، د اجمل د ابتکاري ادب او ابداع ډېره ښه پلوشه ده. دى څپانده روح لري او د هر استعماري ټونګ مخالف دئ. که موږ د پښتونستان په پښتنو کي د دوى د اروا د زواياوو ترجمان وغواړو، بايد اجمل يې بهترين پوهاند و څرګندوي وبولو. اجمل وايي، او څنګه ښه وايي :

ملـــــــګرو ! تش په لوګــــــيدو ونه شوه
ځئ چي لمبه شو، دا خپل ځان وسوځو
د نوي ګل د خســــــــماني له پاره
دا زوړ خوړلى ګلستان وسوځو

په سياست کي خو اجمل د پاکستاني استعماره سره جنګېږي، او دا وروست نظام ورانوي، مګر د هنر د نوي ګل د خسمانې او پرورښت له پاره هم ښايي چي زاړه او وراسته اساليب وغورځوي. د اجمل په چيغه کي ځيني د نوي ادب شهکارونه هم سته، چي د اوسني ادب د وياړ شمله ده. د شهيدانو د ويني فرياد، د زلمي سندره، احتجاج، چرګ ته، بين مار ته، ګوجر، جنت، زلمي شاعر ته، د زمانې باد ته، پېغله داسي هنري شهکارونه دي، چي د شاعر د غورځنده زړه څخه راوتلي اوازونه دي.

د هنر، د جمال، د وينا، د ښکلا، د احساس، د تلاطم او د يوه مواج روح مظاهر دي او هر کله چي د پښتو د اوسني شعر او هنر خبري کېږي، نو د اجمل دا آثار يې په سر کي درېږي.

په يوه مسته نغمه کي د خيبر د شپېلۍ ږغوونکي سره داسي خبري اتري کوي، د زړه اور او طوفاني احساس داسي پکښې ځايوي، چي د پښتونستان مجاهد ملت ته د ژوندانه ږغ دئ :

ستا د سوز و ساز پردو کي
سرې لمبې دي را خورې کړې
ستا سوري سوري کوګل کي
څو نغمې دي راخورې کړې
دا سره سره فضا دي
په نغمو لمبه - لمبه کړه
دا اوده - اوده دنيا دي
په دې بين نغمه - نغمه کړه
په دې چپه چپايي کي
غلبلې اودې پرتې دي
د دې ترو په ځولۍ کي
زلزلې اودې پرتي دي

په دې بين دي ګوتي کېده !
دغه غرونه په ګډا کړه
د خيبر د سر دپاسه
تندرونه په ګډا کړه
راشه پورته يو ټپه کړه
له دې سوي - سوي غره
اې بين ماره د خيبره !
اې شپونکيه د تور غره
راشه پوك وهه دا بين دي !

په دې بين کي راته واړوه
يوه داسي ګرمه لوبه
چي اوده زړونه راويښ کړي
له دې ډېره غرقه خوبه
لېونی اتڼ شروع کړي
ورته کاڼي بوټي ژاړي
په ګډا شي په نڅا شي
غرونه - غرونه، غاړي - غاړي
د دې بين له سوي سازه
سره بڅري رابهر شي
د سرې ويني رګونه
دلته بيا په ګډا سر شي
د دې ترو د رغو نه
بيا مستياني راپيدا شي
د واورينو سر درو نه

بیا بجلیاني را پیدا شي
لړزنده شي په دې ساندو !
هر خبر او ناخبره !
اې شپونکیه د خیبره !
اې بین ماره د تور غره !

راشه پوك وهه دا بین دي

د سندري په پای کي وایي :
د دې ټولو سوو زړو نه
شین لوګی پکښې لمبه کړه
ګني اور د غیرت واخله
دا خیبر پکښې لمبه کړه
بین ته داسي پوکی ورکړه
یو کړه لوړي او ژوري

په یو تار دي زړونه ګډ کړه
که نږدې وي او که لري
دغه شاړي - شاړي کندي
ټول خوره - خوره نغمه کړه
دغه جاړي - جاړي غر دي
یو پسته - پسته ورمه کړه
د آواز سره دي تاو کړه
د تنکو زلمو روحونه
د نغمو سره دي ګډ کړه
د نوخیزو قدمونه
پردې ټولي تار په تار کړه
که څو لر وي او که بره
اې بین ماره د خیبره !
اې شپونکیه د خیبره !

راشه پوك وهه دا بین دي

**پښتو نوی شعر په افغانستان کي :**

په افغانستان کي د استقلال له غورځنګه سره د ژوندانه نوی تحول په ښه توګه ليدل کيږي، د دې نوي حرکت تاداو تقريباً يو قرن پخوا د مرحوم امير شېر علي خان له زماني څخه د ستر سياسي مفکر سيد جمال الدين افغاني په ظهور او په بالاحصار کي د نوي مکتب په تأسيس او د شمس النهار په تنکيو پلوشو په خپرېدنګ ايښود سوئ و، خو دوهم جنګ او د استعمار هولناکو څپو دا ملي حرکت د فکري خوا څخه پر ځای ودراوه او زموږ ملت له استعمار سره په خونينه مبارزه لاس پوري کړ او تقريباً نيم قرن وروسته، چي کامل سياسي استقلال بيا مونده سو، نو هغه فکري تجلاوي بيا زموږ د وطن پر کوډغلو چي له استعمار سره په اول او دوهم جنګ کي بالکل وراني سوې وې بيا وځلېدې. موږ استقلال وګاټه، خو پنځوس کاله له فکري پرورښته او له نوي پيشرفته څخه تر شا پاته سوو. په اول او دوهم جنګ کي زموږ ملت دا ثابته کړه، چي موږ دا وطن ساتلای سو، او د خپل ملي موجوديت له پاره د دنيا له قويترين او غښتلي سازمانه سره هم ډغري وهلای سو او په هر حال کي خپل مرکزيت خوندي کوو.

مګر يو قوم چي د خپلي خاوري او خپل ملي موجوديت په دفاع کي يو قرن توره په لاس پر ډګر ولاړ وي او په سرو وينو کي رغړي، هغه خو د فکر او ادب او علم او پوهني، روزني ته ابداً فرصت نه مومي.

په پښتو ادب کي د شعر په شکل، نوي افکار او نوي محتويات په زاړه فورم او ډول، موږ لومړی پلا په سراج الاخبار کي وينو، چي عبدالعلي مستغني او غلام محی الدين افغان او پرېشان او مولوي صالح محمد او ملا محمد افغاني نويس ځيني اشعار نشر کړي دي په دغو ادبي ټوټو کي د وطن خواهۍ نوی احساس، د افغانيت او مليت نوی فکر او د عصري تجدد نوی حرکت ښکاري او دغه افکار وه، چي د استقلال د نهضت له پاره يې ډېره ښه زمينه برابره کړه.

زما ښه په يا دي، چي د استقلال تر جنګ درې څلورکاله دمخه ښاغلي پرېشان (اوسني داوي) د بلبل ګرفتار مسدس په فارسي ژبه نظم کړ او د استقلال له پاره يې د خپل ملت آمال د يوه ګرفتار بلبل په ژبه تصوير کړل او عين دغه ادبي ټوټه مرحوم مولوي صالح محمد په پښتو نظم کړه. دې دواړو ادبي ټوټو پر باسواده طبقه باندي داسي اثر وکړ، چي د بلبل ګرفتار منظومه به په کندهار کي له سراج الاخباره څخه ښځو هم لوسته. هغه وخت زه کوچنی وم، خط مي نه سوای لوستای، مګر دغه ادبي سندره مي اورېدلې وه، چي ښځو به په پښتو لوستله، خو سترګي به يې له اوښکو ډکي وي، ساړه اسويلي به يې له سينو څخه راختل، اما د وطن د آزادۍ قدر په دغو مجلسو کي پېژندلی و.

په دغه وخت کي ځيني نور پښتانه شاعران هم وو، چي د دوی آثار په سراج الاخبار کي نسته، مګر نوي افکار، او د وطن مينه، او ملي درد لري، لکه د کندهار سيد محسن آغا او ملا عبدالباقي افغان، چي خپل پښتو کتاب يې په تقريباً پنځه زره بيته کي د امير حبيب الله خان په نامه اهداء کړی دئ او ډېري اصلاحي او انتقادي او ملي برخي لري.

د وزن او ظاهري فورم په لحاظ خو د دغو شاعرانو په آثارو کي کوم نوی توب نه ښکاري، مګر په فکري لحاظ يې مضامين نوي دي، له نوي ژوندانه څخه ږغيږي، ملي دردونه بيانوي او غواړي چي شعر د ژوندانه سره ونښلوي، او په دې لاره کي مؤفق هم دي، ځکه چي هم د دغي ډلي مقبوله سعيه او نېکمرغه فکري حرکت و، چي د استقلال د بيا موندلو هنګامه يې توده کړه، او موږ کورټ د دوی دغه ادبي جهاد او زيار نه هېروو، او هم د دوی دغه فکري سلسله ده، چي په اوسني نسل پوري نښلي.

د استقلال تر بيا موندلو وروسته، موږ ډېر شاعران لرو، چي په فکري لحاظ نوي، او د فورم له خوا زاړه دي. مګر په دغه ډله کي مرحوم حاجي ولي محمد مخلص د خاص امتياز خاوند دئ. دې سړي په کندهار د پښتو شعر نوی مکتب پرانيست، ډېر اصلاحي او انتقادي اشعار يې و ويل. خو ده ځان د پخواني مکتب په قيد او وزن پوري پوره مقيد نه کړ. خپل افکار يې په داسي قالبونو کي واچول چي د عوامي ادب له اوزانو څخه اقتباس سوي وه.

مخلص د عصر او زمان سره ځيني تعابير او نوي استعارات هم وموندل، چي د ده شعر ته يې عوامي رنګ هم ورکړ، مثلاً په بين المللي لومړي جنګ کي چي عثماني ترکانو د اروپا حکومتونو ته د المان په طرفداري د جنګ اعلان ورکړ، مخلص له دغي واقعې څخه په عشقي دنيا کي الهام واخيست، او داسي تعبير يې ځني جوړ کړ :

تورکان سترګو دي بيا ماته اعلان کړی د جنګ
مژګان دي زما و قــتل ته ولاړ تيار يکرنـــــــــګ

په دغه ډله کي مرحوم سيد حسين سيد او رحمت الله پوپلزی، او ملا جانان کاکړ او خواجه محمد زهير هم د يادولو وړ دي، ځکه چي د دوي اشعار هم اصلاحي او وطني رنګ لري او مسلسلاً ما څوکاله په طلوع افغان کي خپاره کړي دي.

د اعليحضرت محمد نادرشاه غازي تر دورې وروسته، چي د پښتو ادب کوم انکشاف او پرمختګ موندلی دئ، دا تنکی نهال يې ښه روزلی دئ. پخوانی انجمن ادبي او اوسنۍ پښتو ټولنه د پښتو شعر او ادب روزنتون سو، او په هغه دوره کي موږ لکه : امين الله زمريالی، غلام جيلاني جلالي، قيام الدين خادم، صديق الله رښتين، عبدالرؤف بېنوا، ګل پاچا الفت، عبدالشکور رشاد او محمد ارسلان سليمي غوندي شاعران لرو، چي په فکري لحاظ خو بالکل نوي دي، اما د فورم له پلوه د دوی په ځينو آثارو کي د نوي توب څرکونه وينو.

د پښتو ادب په تاريخ کي دغه درنه ډله د پخواني کلاسيك مکتب او نوي مکتب تر منځ د منځګړو حيثيت لري. دوی د ګذشتګانو د ادبي رواياتو حامل دي او هغه زوړ ادبي ميراث يې نوي نسل ته رانقل کړی دئ او د پښتو ادب تاريخ هيڅکله د دوی مشکوره سعيه نه هېروي. دوی د خپل عصر او زمان سره مطابق په پښتو شعر کي نوي افکار داخل کړل. دوی نوی نسل له وطني او ملي حقايقو سره آشنا کړ، دوی د پښتو شعر تنکی نهال وپاله. په ادبي رواياتو کي چي کومه وظيفه د دوی پر غاړه وه، هغه يې په لکه غاړه اجراء کړه او د پېشقدمۍ عالی مقام يې وګاټه. مګر د زماني سير خو نه درېږي او په کايناتو کي د تجدد او تحول قوي لاس خپل کار کوي او د بشر فکري کاروان هر وخت روان ښکاري، نو که اوس د نوي نسل زلمي ځانته د نوي شعر نوې دنيا جوړوي، دوی هم په هغه اندازه حق لري لکه دېرش کاله پخوا چي موږ ځانونه له پخواني فکري جريانه څخه وايستل او په پښتو شعر کي مو اصلاحي او انتقادي او عصري مواد داخل کړل.

يو مثال : پنځوس کاله پخوا زمانه در په ياد کئ ! هغه وخت چا پښتو شعر نه وايه، او که به څوك په دې فکر کي و، هغه به د خوشحال او رحمان پيروي کوله، د تورو زلفو په شکنجه کي به نښتی او د بانړو په غشي به ژوبل و، د شعر موضوع او محتوی يو زرکاله دغسي راغلې وه او خلک هم پر دغه لار تلل، يو وار نابېره غلام محی الدين افغان د شعر مجراء بدله کړه او په (۱۳۳۳ هـ . ق) يې په سراج الاخبار کي دکوم خيالي محبوب د اوږدو زلفو او ښکلي مخ او هلال آبرو د ستايني پر ځای د وطن په حقيقي دلبر پوري داسي سندره وويله :

زړه زمـــا ډك دئ له ميني د وطـــــــــــــن
خپل وطن ماته عزيز دئ تر خپــــــل تن
هر يو ګل مي د وطن پر ما ډېر ګران دئ
تر کشميره، تر پاريسه، تر لــــــــــــندن
که څه ډېر دي په جـــــهان کي عــــــزتونه
ډېر عــــزت دئ په خـــدمت کي د وطن

دا موضوع اوس موږ ته نوې نه ښکاري او ښايي چي ډېر زلمي يې د بيان يو مبتذل او فرسوده طرز وبولي، او له فکري پلوه يې هم خوښ نه کړي، مګر په هغه وخت کي بالکل نوې وه، او ښايي چي شاعر به د پخواني خيال او د زاړه مکتب پيروانو ډېر غندلی وي، چي ولي د رحمان بابا لاهوتي فکر، په داسي زميني موضوع تبديلوي؟

نو که موږ په هغه وخت کي مرحوم افغان د دغه نوي فکر په راوړلو نه پړ کوو، بلکي د نوي عصر په فکري تحول کي دی د پيش قدمانو په ډله کي دروو، ښايي چي د اوسني عصر نوي شاعر ته هم دغه حق ورکو.

**تر پنځه ويشت کلن سير وروسته :**

ما دمخه وويل چي په پښتو شعر کي د فکري تحول نوي دوره له (۱۳۱۰) شمسی کال څخه شروع سوې وه، او دا د يوه قرن څلورمه برخه تر ۱۳۳۵ ش پوري زه د منځګړو دوره ګڼم ځکه چي دغه دوره د پښتو دکلاسيك شعراو نوی غورځنګ تر مينځ د يوې منځنۍ دورې حيثيت لري.

په دې دوره کي د پښتو شعر فورم او قالب هغه د خوشحال او رحمان او د دوی د ملګرو په څېر و. خو فکر يې نوی و. د شعر محتوی اوښتې وه. وګورئ ! پيرمحمد کاکړ د بېلتانه سندره په داسي قالب کي اچولې وه :

هجران انبار کړه پر مـا غـــمونه
ضعيف نحيف سوم په تن زبـــونه
اور مي بيا بل سو د زړه په خـونه
ګهی ژړا کړم، ګهی آهــــــــــونه
اوښکي مي څاڅي له ځيګرخونه
رنځ مي زياتيږي له دې تاخـــونه

ښاغلي الفت په همدغه پخواني قالب کي نوی فکر ځای کی، او وې ويل :

ګرانه وطنه ! څومره زيبا يې!
جنت د ځمکي، زړه د دنيا يې!
ښاغلی تاج ته، د ايشيا يې!
وړ د ستايلو ته په رښتيا يې!
لعل وګوهر شته ستا بدخشان کي
تمدن خور شو، ستا په جهان کي

پنځه ويشت کاله پښتو شعر د پخواني فورماليزم په غولي کي خالپوڅي وکړې او د منځګړو تر ډلي وروسته په دې وروستيو پنځو شپږو کلو کي يوه زلمۍ ډله شاعران راووتل، چي دوی په فکري خوا کي له منځګړو سره لږ و ډېر مشترك دي. خو د شعر فورم او قالب او تعابير او د اداء طرز يې نوی ښکاري. له دې ډلي څخه ښاغلی سليمان لايق د خاص استعداد او ادبي ذوق خاوند دئ او د ده نوی کلام د پښتو شعر د نوي غورځنګ شمله ده. هم فکري ښکلا لري، او هم د فورم او آهنګ په ايجاد کي ګړندی ښکاري. لايق لکه نوی زلمی چي دئ افکار يې هم زلمي دي، کوم هيجان، کوم تلاطم او غورځنګ او نڅا چي د ده په اشعارو کي د اورنيو احساساتو سره ښکاري، د ده د شعر او نوي فورم او آهنګه سره اوږه پر اوږه ځي او زه داسي ګمان کوم چي د آرامو زړو او مړاو احساساتو خاوندان به هم له خپله شعره سره خوځوي، او په خپله شعري نڅا کي يې له ځانه سره ملګري کوي.

دلته به زه د نمونې په توګه د ده يو پيغام راوړم. وګورئ څوني څپان، او څوني متلاطم او څوني تود دئ، دی وايي :

تېر به شي کلونه مګر نه به شي
زما دغه رنګيني ترانې هېرې
محوه به شي ګور زما
کلی زما کور زما
مړ به نه شي اور زما
تل به زه ږغېږمه شعرونو کي له کامه سره

دا د بيدارۍ او ناپوهۍ څپې
زما هنر او مينه غرقوی نه شي
تل به د افغان بچي
پورته د باميان بچي
ښکته د سيستان بچي
لولي زما سندري له آغاز او له انجامه سره

زما ولس به يو شي هيوادونو ته
زما د ترانې ښکلي رنګين ګلان
تل به د پښتو ژبه
دا د لويو غرو ژبه
دغه د درنو ژبه
ساتي زما شعر له فکرونو او مرامه سره

د شعر په پای کي لايق د زلميتابه تودې هيلي د خپل هنر د ښکلا له پاره رابولي. د ده يقين دئ چي دا هنر نه مړه کېدونکې او جاويدانه او پايېدونکې پديده ده او هرو مرو به دا ږغ د فضا په تېپدونکې څپه کي آيندګانو ته رسېږي او خپل اثر به کوي، او وايي:

اې زما د ځوانۍ تودو هيلو !
ننوزئ د شعر ابدي کــور ته !
يوسئ ولولې زما
پټي زلـــزلې زمـــا
اوښکي قافلې زما
وروسته زمانو ته د دې عصر له پيغامه سره

بېنوا خو ما د منځګړو په ډله کي شمار کی، خو دی کله په نوي اتڼ هم کښېوزي او د فورم او فوند په لحاظ نوی شعر هم وايي. د ده يوه خوره او د شعر ښکلې ټوټه په خپله د دغه تجدد او نوي توب حکايت کوي، او د زمانې نوی رنګ او نوی څېر راښيي. دی وايي :

نسيم و وې د ګل غوړ کي :
بدل ســــــو د يارانې رنګ

غـلی شـــــانته انقلاب دئ
بدلـــــوي د زمـــانې رنګ

ورســـــــــره نوي رنګـــــــونه
رنګا رنګ تحـــــــولـــــــونه
کړي سمسور به راغ راغـونه
موسم بل دئ هـم بـــــل سوی
د بلبل د ترانې رنـــــــــــګ

دړي وړي زوړ ربـــــــاب دئ
زړو مطرب خانه خــــراب دئ
زوړ آهنګ د روح عذاب دئ
نوی ساز نــــــــوی آواز دئ
هم سو نوی د نغـــــــمې رنګ

هنر تل له صفا او سپېڅلتوبه سره مل وي. د ښکلا سره تړول وي او هر څوني چي دغه سپېڅلتيا او ښکلا ولري هغومره يې فني ارزښت زياتيږي، نو هنرمن تل په ځيرو سترګو د زمانې کرغېړنو ته هم ګوري او نه غواړي چي د هنر ښکلې او ځلانده څېره په ځينو تورکنو آلوده او ککړه سي. ښېنوا د نوي نسل توجه دې نکتې ته هم راګرځوي، او وايي :

طلايي جام کي د دور
شراب زهر دي په دور
نوشېدل يې غواړي غور
ای سرمست زلميه پام کړه!
بل راز سو د ميخانې رنګ

په دې ډول په پښتو شعر کي زموږ د نوي شاعر کار ډېر نوی دئ او دا ښکاره ده چي نوی شاعر خپل پراخوالی او نضج ته نه دئ رسېدلی او دا يې د صباوت او کوچنيتوب دوره ده، مګر د کانټ په قول د هر هنر ايجاد د هنرمن په ظريف استعداد پوري اړه لري او انساني دماغ د نوي روش او نوي لاري د پيدا کولو يو خارق العاده استعداد هم لري. نو که زموږ زلمي شاعران او د نوي طرز لېوالان په آينده کي د فورم او فوند په لحاظ د نوي شعر نوزاد وړونکي په ښه ډول وروزي ګمان کيږي، چي پښتو به په ادب کي د نوي هنر له پلوه هم يوه غني ژبه سي. د اوسني پښتو نوي شعر د تنکي بڼ يو بل غوړېدلی ګل فاراني دئ. دی په فارسي کي هم د دغه مکتب له پيروانو څخه دئ په پښتو خو لږ شعر وايي، اما هغه لږ يې هم ښه ښکاري. فاراني په نوي مکتب کي د فورم په لحاظ پخواني اساليب نه هېروي، او د وزن او حتی قافيې په ساتلو کي محتاط او متوسط ښکاري. د ده يوه ټوټه شعر د غرو غروب نوميږي خو زه يې د نتيجې له پلوه عنوان د تېر يادونه بردم. په دې پاړکي کي شاعر د پښتني عوامي ژوند مناظر پېش کوي او بيان يې هم خوږ دئ، د فکري جولان ساحه يې بالکل وګړنی ده او د فوند په لحاظ هم دا ټوټه بې ارزښته نه ده، دی وايي :

د سپينو دنګو غرونو شـــــاته
زيړی لمر ورو - ورو پټيږي
ځما هېر او مړه يـــــــــادونه
بيا مې زړه کې ژوندي کيږي

مازيګر وږمه چليږي
رپوي وحشي ګلونه
سردرو کې انګازه کړي
د زړو شپنو ږغونه

د کږدۍ مېرمني پيايي
سيرلکي په شنو وښو کې
يو کمکی ماشوم ويده دئ
کيږدۍ لاندي په ځانګو کې

د نښترو ګڼ ځنګله کې
ګړونکي سندري وايي
صحرايي ښايسته پيغله
يو جونګی اوبو ته بيايي

د نښترو څانګي باندي
ځنګلي مرغان چغيږي
د تور تم راتګ نږدې دئ
ګوندي دوی ورنه ډارېږي

د شفق وروستۍ وړانګې
مچوي اوچت ښاخونه
زه لا هسي چرت کې ناست يم
زوروي مې تېر يادونه

د همدغه نوي مکتب يو بل شاګرد شپون دئ، دا زلمی هم د نوي فکر استعداد لري او د خپل فکر د ښکاره کولو له پاره د بيان نوې لاره پيدا کوي. د ده نظر د نوي شعر په شاوخوا کې د يوې نوي شعري ټوټې څخه ښکاري، چې همزولي شاعر ته خطاب کوي او داسي وايي :

ته د دنیا د کاروانو جرس
د تمدن د قافلو زنځیر
ستا له تېز بینو سترګو ډېره کوي
د هندوکش د آسمانونو کجیر
هو ! ته شاعر یې، قلم سم چلوه !

چي یې د چا د لاس رانجه خوړلي
د هغو بوغ ستا له ستوني راځي
چي په کړاو په بېکسۍ کي ومري
دا ستا قلم یې جنازې پسي ځي
چي یې چاړه په سینه ننوځي
ستا له قلمه ورته آخ وځي
هو ! ته شاعر یې، قلم سم چلوه !

شپون نوی شاعر، د نوي دنیا جوړونکی، او د نوي فکري تحول ښکاره کوونکی، او د سبا پر ژوندانه یو مؤثر عامل ګڼي، او د همزولي شاعر د خطاب په پای کي وایي :

د ژوند د ذوق پاکه هنداره ته یې
ته چي خنداکوې دنیا خاندي
ته نو چي خاندې رښتینی خانده!
که نه تاریخ به بیا پر تا خاندي
ستا د هري اوښکي په اثر
یو زرګلونه په سبا خاندي
هو ! ته شاعر یې، قلم سم چلوه!

د نوي شاعر د فکر یوازنۍ جولانګاه د خپل وطن ځمکه ده، دی که څه وایي، نو له خپله ژونده وایي د وطن له هري پرښې او بوټي څخه د میني الهام اخلي. د شپون د کوکچې سیند، یوه داسي سندره ده چي د نوي شعر د دغه مزیت نمایندګي ښه کوي او دا وطن جنت ورته بریښي دی وایي :

کوکــــچه زما د آرزوګانو د اســــــــــــــــــرو سیند دئ
چي څاځکي څاځـکي د پامیر له سپینو څوکو رغړي
په هر یو څــاځــــکي کي د دې وطــن هســــتي غوټه ده
وچه یې مه کـړې، دغه څاځــکي دي همېش بهــــېږي
په هر یو مـــــــوج او هر شـــکن کي یې رازونه ګـــــورم
او تا ته وایم : د اســــــــــــــرو او امـــــــیندونو ربه !
زه خــــــــبر نه ومـــه، چي مــــــاته دي جنت راکــړی

د نوي شاعر نهايي آرزو دغه ده، چي د يو لوی افغاني مليت په تکميل کي لوړنی وي. د ده پخوانی تاريخ مخي ته پروت دئ، او زلمی نسل د دغو پاڼو لوستونکی ګڼي.دی غواړي چي تل دغه ځاځکي د يوه بهاند سيند په څپر سره راټول و ويني او هيڅ ځاځکی د لوی افغان د فياض او عظيم سيند له غيږ څخه وتلی نه وي، نو د دې سندري په پای کي دغه هيله داسي د شعر په څپو کي راوړاندي کوي:

چيرته د زړه د کوم يو ګوټ نه مي لمسون غوندي دئ
چي ، هه ! شپونکيه له دې ګاري ځان لاهو کړه سيند ته
بيا چي لاهو شې لمبو مه وهه کرار پرېوځه
يوه قطره شه غاړه ورکړه د همزولو سره!
زه وايم سينده ! صبر وکړه، زه خوبونه ګورم
او تا ته وايم : د اسرو د اميندونو ربه !
زه خبر نه ومه چي ماته دي جنت راکړی

داسي ښکاري چي د نوی شاعر متلاطم او څپان احساس د يوې ورکي آرزو په تلاښ کي دئ، او زلمی نسل د يوه زړه خوځوونکي خوب تعبير ته لالهانده دئ. دغه هيله، دغه آرزو او دغه ښکلې غايه څه ده؟ د دې نېکي آرزو تعبير د نوي مکتب د يوه بل ملګري ښاغلي شفيق له خولې واروئ، چي په څه قوت او ټينګار يې په ښکاره کولو کي بريالی سوی دئ :

پاکي جذبې د زړه انګړکي د وحدت لـــــــــــــرم
مخکي ځراغونه بل د دين او د ملت لـــــــــــــــرم
زه يم چي مغزو کي رڼايي د حــــــــــــــقيقت لرم
اوس مي که لاس تش دئ نور څه نشته يو همت لرم
شته ده په تاريخ کي د مېړاني افســـــــــــــانه زما
ما کي ټګي نشته هـــــــــــو مي هو او نه ده نه زما
کور مي د زړه تود دئ په تودو جذبو د قام د عشق
زه د قام په مينه کي ختلی يم پر بام د عشق
ميني دي پښتونه ! نښلولی يم په دام د عشق
غواړم په قومي عروج رڼا،تياره ماښام د عشق
ګرزم سرګردانه لی په لی قومي اختر پسي
ځان سره چي راوړي سعادت هغه سحر پسي

ټينګ اميد کېدای سي چي زلمی شاعر به دغه ملي اختر ضرور وويني، او د ده هنر به و دغه لوړي معراج ته د رسېدلو له پاره د يوه محرك په ډول رهبري وکړي. هيله ده چي نوی شاعر به تل د خپل کاروان سره د يو خوږ ږغي حادي په ډول د ملي سعادت پر لوري ملګری وي او د ده تودې نغمې به تل د تلونکو په زړو کي ګرمي پيدا کړي او دا به يې يقين وي، چي د ده هنر په ملي يون کي د لاري روښانه ځراغ، او په زړه پوري توښه ده او ښاغلي الفت ډېر ښه ويلي دي چي :

ښه آهنګ چي په هر ساز کي وي موزون وي
که رباب وي، که شپېلۍ وي، که داريا وي

ننـــــــــدارو او تماشـــــــو ته بـــه ورځـــــمه
د هـــــر چـــــا په ساز چي ښـكلي په ګڼا وي

د دې څېړني په پای کي زه د يوه بل نوي معاصر شاعر ښاغلي رشاد يو بل شعر هم راوړم. دی بالکل نوی فکر لري مګر قالب يې هغه پخوانی دئ، ځکه چي د ده آثار فکري ارزښتونه لري نو د نوي شعر په صفت کي ښه ځای نيسي او د ده هنر د هنر له پاره دئ نه مجرد هنر :

پيره !

پيره ! ته شمع زموږ د تورو شپو يې
شمع څه چي زموږ کسی د لېمو يې
بويه دا چي دي د ښو خاوري رانجه کړو
وايي: ته مسيح د جهل د ړندو يې
وايي: ژوی ستا په دم د غفلت مړی
وايي: ته حکيم د زړونو د رنځو يې
وايي: ته د بغل ځای په مينه نيسې
وايي: ته خضر د دې تورو تيارو يې
وايي: ته ايسته کوې کين له کوګلو
وايي: ته پوه د ناولو زړو په ولو يې
وايي: ته ښايسته کوې صفا زړونه
ته صيقل د دې زنګنو آئينو يې
وايي : ته د بدبينۍ د لچ توتيا يې
ته اکسير د خودخواهۍ د مرضو يې
چي جنون د مال و جاه و نسب بيايې
وايي : ته عامل د هغو اورادو يې
چي پېښيږي د حرص و سودايي ته
وايي : ته دافع د هغو اندېښنو يې
چي ترې زيږي خرخښې نفاق جنګونه
ته ماهر د هغو بدو رواجو يې
وايي : ستا په لاس بې لاري پر لار کيږي
وايي : ته مصلح د کينو او کړو يې
وايي : ستا په خوله دښنه سره رغيږي
وايي : ته د دوستۍ تومنه د تربرو يې
وايي : ستا په تلقين زړونه سره نښلي
مکمل د عشق د ټولو طريقو يې
وايي : ستا له ساه سيځي ريښې د رخي
ته طبيب د ورو سترګو تنګو زړو يې
زړونه کاږې د دني مينو له ږغومو[1]
وايي : نوح د نفسانيو توپانو يې
وايي : ستا په تربيت بخل ورکيږي
وايي : ته مصدر د رحم او پېرزو يې

وايي : ته ژړوې سترګي پر مظلومو
په زړه غوڅ د نامېندۍ له اسوېلو يې
وايي : ستا د خولې ګوله ده په شريکه
ته خواخوږی د بېوزلو بې اسرو يې
وايي : ته د خدای پر پار د حق له پاره
تېر د ځان تر هر مطلب هري ارزو يې
نه د مال تمه لرې نه د سر بېره[۲]
وايي : ته آزاد له دې ټېټو قيدو يې
ته د هر نمرود ميرخي تمه لېځي غړې
په طلب د حق راضي په سرو لمبو يې
وايي : سر نه کړوې طاغي طاقت ته
ته قاطع د ظلم او جبر د ريښو يې
وايي : ته د باداری له نامه بد وړې
ته له کبره تښتېدونکی په مزلو يې
وايي : ستا سره همېش دا کرامت سته
چي خارق د رياکارو د پردو يې
د رښتيني سړيتوب مزله تې بيايې
ته هادي د ژوندانه د قافلو يې
که رښتيا وي دا چي وايي ستا په باب کي
رارسيږه ! ته مهدي د دې قومو يې
په جلو کي دي اصلاح ځي د ټولنو
ته خاوند د بختورو قدمو يې
موږ به ستا تر قدم لاندي ايږدو سترګي
ته رهبر د دغو ورکو کاروانو يې
موږ به ستا مخ ته سرونه نذرانه بړدو
ته لايق پيره ! د لوړو دروږو يې
او کنه نو خوشي ټګ يې نور څه نسته
ټولوونکی د نذرو د شکرانو يې
غوړولي دي دامونه د سلوک دي
ته صياد د څو سپېدلو پښتنو يې
د عزت او د ارام بتان په زړه کي
په دې څه سي چي محراب ته پر سجدو يې
چي له ښې ارشو دي زړه بل لور ته نه ځي
د نس ميني بتر کړی تر ښاروو يې
د خداي ميني ته دي زړه په څه فارغ سي
ته چي غرق د مال په مينه تر غوږو يې
شپه و ورځ پر تسپو شمېرې غوا و غېلي
په لمانځه کي په تلاښ د ښايستو يې

نه د ذکر په پلمه پټوې سترګې
ډوب په فکر د پټو د پالېزو يې
په ښکاره مراقبه له خلګو ګوښې
پټ اخته د شکرانو په حسابو يې
په ښکاره وچه ګوله په اوبو نغړې
پټ سېځلی تر سړمو په نعمتو يې
په ښکاره ژغورې نظر له خپلو ښځو
پټ لګيا د نامحرمو په ورنو يې
ښکاره نورو ته غندې د دنيا مينه
پټ مخکښ د دې ليلا د لېونو يې
ته په سپينه ورځ لوټې کلي کورونه
په جامه کې د پېرې مشر د غلو يې
خدای دې وساتي قومونه ستا له غدره
ته پير نه يې مبتکر د شعبدو يې